# ثالث عمر

د اسلامي امارت د مؤسس عاليقدر امير المؤمنين

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله

مستند تاريخ



ليكوال

قاري عبدالستار سعيد

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

﴿وَ اِذۡ یَمۡکُرُ بِکَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا لِیُثۡبِتُوۡکَ اَوۡ یَقۡتُلُوۡکَ اَوۡ یُخۡرِجُوۡکَ وَ یَمۡکُرُوۡنَ وَ یَمۡکُرُ اللّٰهُ ؕ وَ اللّٰهُ خَیۡرُ الۡمٰکِرِیۡنَ﴾ [الانفال ۳۰]

ژباړه: او کله چې تا ته کفارو دسیسې جوړولې، چې بندي دې کړي، یا دې ووژني یا دې (له مکې) وباسي. او چلونه يې جوړول او الله تعالی هغوی ته تدبیر جوړاوه او الله تعالی تر ټولو ښه تدبیر جوړوونکی دی.

# ثالث عمر

د اسلامي امارت د مؤسس عالیقدر امیر المؤمنین

ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله

مستند تاریخ

لیکوال

قاري عبدالستار سعید

د کتاب مشخصات

نـــــوم: ثالث عمر

ليكـــوال: قاري عبدالستار سعيد

خپرندوی : المجاهد خپرندويه اداره

ډيزاين او د پښتۍ طراحي: حافظ نخبت الله زاهد

د چاپ کال: ۱۴۴۲ هجري قمري/ ۱۴۰۰ هجري شمسي

د چـاپ وار: لومړی

تیـــراژ : ۱۰۰۰۰

بسم الله الرحمن الرحيم

Twitter: @kareem_achakzai

✓ که هر ورور کوم اعتراض لري ده ټويټر له لاري پر دغه اکونټ دي اړيکه ونيسي.

# لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

# د پيل خبرې

الحمد لله رب العلمين والصلوة والسلام على خير خلقه محمد وآله واصحابه أجمعين وبعد:

د افغانستان اسلامي امارت زمونږ د هيواد (افغانستان) او اسلام په تاريخ کې يو مهم سياسي او جهادي جريان ګڼل کيږي، چې تر ډيره به د مؤرخينو او ليکوالانو د څيړنې موضوع وي. د دې خوځښت مؤسس او مشر مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد له هغو مهمو او تاثيرګذارو شخصيتونو څخه دی چې له يادونې پرته به يې د دې عصر تاريخ نيمګړی وي.

د ملا محمد عمر مجاهد په اړه له دې وړاندې هم ځينو کورنيو او بهرنيو ليکوالو کتابونه ليکلي دي. خو اکثر دغه کتابونو د تبليغاتي مقاصدو او دښمنانه سياسي اغراضو په اساس ليکل شوي دي. ځينو په لوی لاس د ملا صاحب د واقعي شخصيت د تشويه او ناسم معرفي کولو هڅه کړې او ځيني بيا د کره معلوماتو او مستندو منابعو د نه شتون له امله په غلطه تللي دي.

د دې کتاب د ليکلو مقصد دا دی تر څو د اسلامي امارت د زعيم ملا محمد عمر مجاهد ځانګړې ديني او سياسي کړنې د اوسني او راتلونکي مسلمان نسل لپاره يوه ښه بيلګه او د اقتداء نمونه وګرځي. دغه راز د مرحوم ملا صاحب په اړه لومړی لاس، واقعي او مؤثق معلومات تر لوستونکو ورسول شي. تر څو د تاريخي پيښو څيړونکي او عام لوستونکي په خپلو قضاوتونو کې له همدې مؤثقو معلوماتو استفاده وکړي.

دلته به بې ځايه نه وي چې د کتاب لپاره د معلوماتو د راټولولو او کتاب ليکلو مختصر- جريان درسره شريک کړو.

د ۱۳۹۵ لمريز کال د قوس د مياشتې په شپږمه نيټه د مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد د تاريخ ليکلو په مناسبت د ده مرحوم د کورنۍ په نوښت يو مجلس دائر

شو چې د مرحوم ملا صاحب مشر زوی او د اسلامي امارت مرستیال مولوي محمد یعقوب مجاهد، د مرحوم ملا صاحب ورور او د رهبري شورى غړی ملا عبدالمنان عمري، د ملا صاحب مرحوم زوم قاري صدیق الله صاحب، د ملا صاحب مرحوم اخنبی مولوي عبدالرحمن صاحب، داسلامي امارت د مشرتابه د دفتر رئیس مولوي احمد جان احمدي، د اسلامي امارت پخواني ویاند مفتي لطف الله حکیمي،د فرهنگي کمیسیون مرستیال ملا احمد الله وثیق،د نظامي کمیسیون اداري مسؤل بخت الرحمن شرافت، د کتاب لیکوال قاري عبدالستار سعید او څو تنو نورو ملگرو لیکوالو په کې گډون درلود.

دا مجلس چې دوه ورځې یې جریان درلود د مرحوم امیر المؤمنین د تاریخ لیکلو په اهمیت او ضرورت یې بحث وکړ او وروسته یې د دې کار لپاره یوه اجمالي لارنقشه وټاکله چې په لومړۍ مرحله کې باید معلومات را ټول او وروسته یې د لیکلو او تدوین کار پیل شي. د معلوماتو د راټولولو لپاره د معلوماتي منابعو په حیث لسگونه کسان مشخص کړای شول چې باید مخامخ ورسره مرکې وشي او د مرحوم امیر المؤمنین د ژوند د بیلابیلو مراحلو په اړه مؤثق معلومات ترې را ټول کړای شي. په مجلس کې د معلوماتو د راټولولو لپاره یوه کمیټه هم وټاکل شوه چې مشر یې د ملا صاحب زوم قاري صدیق الله او مرستیال یې قاري عبدالستار سعید (د دې کرښو لیکوال) تعین شو.

په دې ډول د مرحوم امیر المؤمنین رحمه الله د ژوند او کارنامو په اړه د معلوماتو د راټولولو کار پیل شو. د معلوماتو د راټولولو په کار کې د کمیټې د مشر او مرستیال نه علاوه د کمیټې نورو غړو لکه مولوي احمد جان احمدي، مفتي لطف الله حکیمي، ملا احمدالله وثیق، ملا عبدالاحد جهانگیروال، ملا بخت الرحمن شرافت، ملا عتیق الله عزیزي او ډاکټر محمد طاهر صاحب هم مهم نقش درلود او له لسگونو کسانو سره مصاحبې وشوې.

څو میاشتې وروسته چې یوه اندازه مواد راټول شوي وو یو ځل بیا د کمیټې غونډه دائره شوه. په غونډه کې فیصله وشوه چې د راټولو شویو موادو نه په استفاده دې د کتاب متن لیکل پیل شي. دا چې د کتاب متن باید څوک ولیکي په مجلس کې بحث وشو.

وروسته د متن ليکلو مسؤليت د دې کرښو ليکونکي (قاري عبدالستار سعيد) ته راوسپارل شو او فيصله په دې وشوه چې زه به د اونۍ په جريان کې د کتاب متن ليکم او د اونۍ په پای کې به درې کسيزه کميټه (چې اعضاء يې مولوي احمد جان احمدي، مفتي لطف الله حکيمي او قاري عبدالستار سعيد وو) دغه متن له نظره تېروي. کره کتنه به ورباندې کوي او لازم اصلاحات به په کې راولي.

په دې ډول د کتاب ليکنه پيل شوه او څو مياشتې يې دوام وکړ. د ښه تحقيق، توثيق او کله ناکله د اضافه معلوماتو د موندلو په تلوسه د کتاب نهايي کولو تر اتکل زيات وخت واخيست او بالاخره دغه متن تيار شو چې ستاسو په لاس کې دی.

تيار شوی متن لومړی څو اهل نظر کسانو ته د کتنې لپاره ورکړل شو او په وروستي ځل د مرحوم امير المؤمنين د کورنۍ د غړو لکه د ملا صاحب مشر زوی او د اسلامي امارت مرستيال مولوي محمد يعقوب مجاهد، د ملا صاحب ورور او د رهبري شورى غړي ملا عبدالمنان عمري، د ملا صاحب زوم قاري صديق الله او د ملا صاحب خاص کاتب ملا عبدالسلام لخوا له نظره تېر او اصلاحات په کې راوستل شول. تر دې چې کتاب يو مخ نهايي او چاپ ته آماده شو.

بايد ووايو چې د دې کتاب حجم د هغو تحقيقي او توثيقي هڅو په نسبت کوچنی دی چې د خامو موادو د راټولولو او ترتيب په مرحله کې ترسره شوې دي. د ملا محمد عمر مجاهد او اسلامي امارت د قيام او واکمنۍ په اړه د واقعي معلوماتو د راټولولو لپاره په هره برخه کې هڅه شوې چې له لومړي لاس منابعو څخه استفاده وشي. د وقائعو او بيلابيلو جرياناتو له عيني شاهدانو سره مخامخ مرکې شوي او له توثيق او بيا بيا ارزونې وروسته په کتاب کې ځای شوي دي.

ځينې شهرت ته رسيدلي وقائع که څه هم د ملا صاحب په حق کې به و، خو دا چې په مؤثق ډول نه دي ثابت شوي نو پرېښودل شول. د ملا صاحب په اړه د ده د ملګرو، د اسلامي امارت د منسوبينو او ځينو نورو شخصيتونو خاطرات، تأثرات او د سترګو ليدلي حالات د پيښو د روايت کوونکو په استناد کټ مټ را اخيستل شوي.

که څه هم د ملا محمد عمر مجاهد او اسلامي امارت په هکله به څه موافق یا مخالف کتابونه تر دې پخوا هم لیکل شوي وي خو د دې کتاب د لیکلو موخه دا ده چې هغه حقائق رابرسیره شي چې د دروغو تر غبار لاندې پټ ساتل شوي دي. نو بناء دا کتاب د پخوانیو کتابونو تکرار نه، بلکې د پټ پاته حقائقو د رابرسیره کولو هڅه ده.

په پای کې د الله تعالی شکر اداء کول پر ځان واجب ګڼم چې د دې کتاب د لیکلو توفیق یې راکړ. لله الحمد والمنة

په تلو تلو کې د کتاب له هغو مینه والو بښنه غواړم چې د دې کتاب د چاپ او مطالعې لپاره یې اوږده موده انتظار وکړ. خو تقدیر د کتاب نهایي کیدل او چاپ ته برابریدل تر دې وخته ځنډولي وو.

دا چې ملا محمد عمر مجاهد د الله تعالی د دین یو مخلص او فداکار ساتونکی و او د نوموړي د تاریخ له لیکلو مو غرض د مؤمنو رجالو د کارنامو خوندي کول او له ورکېدو ژغورل دي. الله تعالی ته سوال کوو چې دا هڅه د یو دیني خدمت په حیث په خپل عظیم دربار کې قبوله او زموږ لپاره د آخرت توښه وګرځوي.

په همدې ستره هیله

قاري عبدالستار سعید

د میزان دیارلسمه ۱۳۹۹هجري شمسي

## موضوع ته ورتګ

### له عمره تر عمره لنډ تاريخي سرګذشت

د اسلام د مشهور خليفه عمر فاروق رضی الله عنـه د خلافـت وروسـتي کلونـه وو چـې د اسلامي لښکر دوه سپهسالاران د لويديځ لخوا د اوسني افغانسـتان خـاورې تـه را داخـل شول. احنف بن قيس تميمي رضی الله عنه د فارس د تښتيدلي ساساني پاچا يزدګـرد پـه لټون د ايران د ختيځې سيمې بيرجند او طبسين لـه لارې فـراه تـه ننـوت او ورپسـې يـې هرات فتح کړ، څه موده وروسته عبدالله بـن عـامر رضـی الله عنـه د اميـر المـؤمنين عمـر فاروق رضی الله عنه په امر په سيستان بريد وکړ او د نيمروز او هلمند له نيولو وروسته تـر کندهاره ورسيد.

له هماغه وخت( ۲۳ هجري قمري) څخه د اسلام او افغانستان نوم سره پيوند شو، داسـې پيوند چې بيا يې کله هم انفکاک قبول نکړ، له هماغه وخته دا هيواد او ولس د اسلام پـه نوم ساه اخلي، اسلام يې په رګونو کې د وينې په شان ځغلي او اسلام ورتـه د آب و هـوا په شان د ژوند او پايښت سبک ورکوي.

د دې جغرافيې خلک لکه څنګـه چـې پـه پخوانيـو بـاورونو ټينـګ ولاړ وو او د مؤرخ استاد عبدالحی حبيبي په وينا په درست افغانستان کې د اسلام خپريـدلو تـر يـوې پيـړۍ زيات وخت ونيو، د اسلام لـه منلـو وروسـته يـې د دغـه ديـن رسـۍ هـم خـورا محکمـه ونيوله، داسې محکمه چې دا جغرافيه يې نړۍ ته د اسـلام د نـه ماتيـدونکي سـنګر او نـه تسخيريدونکې کلا په حيث ور معرفي کړه.

په لومړيو دوو هجري پيړيو کې افغانستان لومړی د اموي او ورپسې د عبـاسي خلافتونـو مربـوط و. د دريمـې هجـري پيـړۍ لـه پيـل سره چـې د عباسـيانو افـول پيـل او ورسره د مستقلو سلطنتونو سلسله پراخه شوه، پر افغانستان د طاهري،صفاري او ساماني شـاهانو د واکمنۍ دوره راغله. د څلورمې هجـري پيـړۍ لـه نيمايـي پـه دې سـيمه غزنـوي دولـت رامنځته شو چې حدود يې د ايران تر غرب، منځنۍ آسـيا، هنـد او عربـو بحيـرې پـورې

رسیدل. دا په لومړۍ هجري زریزه کې د افغانستان د تاریخ تر ټولو ویاړمن دور و. غزنوي شاهانو نه یوازې د سیمې په سطحه تر ټولو ځواکمن سلطنت را منځته کړ، بلکې د دوی په دور کې د افغانستان له لارې د هند نیمې وچې ته د اسلامي دعوت او فتوحاتو لړۍ وغځېده چې ورسره د شمال او لویدیځ هند پراخې پرګنې د اسلام په مبارک دین مشرفې شوې. سلطان شاه محمود غزنوي یوازې سیاسي واکمن نه و، بلکې لوی عالم، عابد او د اسلام د لارې سرسپارلی مجاهد و. د تاریخي روایاتو له مخې د نوموړي د ژوند ډیره برخه د في سبیل الله جهاد په لار کې د آس پر شا تېره شوه. هغه لکه څنګه چې ځان د مسلمانانو سیاسي مشر باله همداسې د ولس دیني هویت ساتنې، د باطلو فرقو ټکولو او د ولس اصلاح او فکري رهنمایي ته هم متوجه و.

د همداسې صالحو حاکمانو تر سیوري لاندې که د دې هیواد غازیان او مجاهدین په فتوحاتو کې پیشقدم ول علماء او ادیبان یې د علم او فرهنګ د ډګر مخکښان ول. په لومړیو پیړیو کې د خراسان علماوو د احادیثو له جمع کولو علاوه د علم التفسیر، فقه، بلاغت، ادب، حکمت، طب او نورو مروجه علومو په برخه کې د پام وړ خدمتونه وکړل او د اسلامي تمدن او فرهنګ په وده او احیاء کې یې مرکزي نقش درلود.

د غزنویانو له سقوط وروسته د غوریانو، سلجوقیانو او خوارزمشاهانو دورې هم د افغانستان د تاریخ زرینې دورې وې،په خاص ډول غوریان چې د غزنویانو لار یې تعقیبوله، په هند کې یې د اسلام د وړانګو خپرولو او اسلامي علم او فرهنګ د ودې په برخه کې مهم خدمتونه ترسره کړل.

خو په اوومه هجري پیړۍ کې د چنګیز یرغل د اسلامي نړۍ د ځینو نورو برخو په شان زموږ هیواد ته هم درانه ټکانونه ورکړل. چې ورسره افغانستان پخوانی ځواکمن وجود بایلود. له دې وروسته د څو پیړیو په جریان کې به دا هیواد کله په کوچنیو واکمنیو تقسیم و او کله به په ګاونډ کې د لویو واکمنیو لکه (د هند ګورګاني، د ایران صفوي او د منځنۍ اسیا شیباني) سلطنتونو تر اغیز لاندې و.

دا چې د اسلام غونډې د خپلواکۍ غوښتنې احساس هم د دې جغرافیې د اوسیدونکو په وینه کې ګډ و، نو څکه د تاریخ له توپاني حالاتو سره سره د دې هیواد خلکو

همیشه د ځان راټولولو او خپلواکۍ لپاره لاس او پښې وهل. د چنګیز، تیمور، بابري شاهۍ او صفویانو په وړاندې د افغانستان د ولس مقاومت او پاڅونونه د دې مدعا نغد شواهد دي.

په دوولسمه هجري پیړۍ کې په افغانستان کې دوه مهمې سیاسي پیښې وشوې. د میرویس خان نیکه په مشرۍ پاڅېدلو افغانانو په ۱۱۲۰ هـ ق کال د صفویانو اشغال ختم کړ چې په پایله کې نه یوازې د افغانستان جنوبي او لویدیځې سیمې له دې اشغاله خلاصې شوې، بلکې صفوي واکمني چې څه باندې دوه پیړۍ یې په ټوله سیمه سیوری پروت و،ونړیده او پر مرکز اصفهان یې د افغانانو بیرغ ورپېد.

خو د افغان ولس دغه خپلواکه واکمني درې لسیزې وروسته د داخلي نزاع او نادر افشار د یرغل په پایله کې ونړېده. د نادر افشار له مرګ وروسته په ۱۱۶۰ هـ ق کال کې دوهمه ستره پیښه رامنځته شوه او هغه دا چې د اوسني افغانستان مؤسس احمد شاه ابدالي په کندهار کې د یوې نوې خپلواکې واکمنۍ بنسټ کیښود، چې ډېر ژر یې په سیمه کې د یو ځواکمن اسلامي سلطنت په حیث بروز وکړ او پولې یې د ایران له مشهد ونیسه بیا په ختیځ کې تر سرهند په جنوب کې تر عرب سمندرګي او په شمال کې تر منځنۍ آسیا ورسیدې. احمد شاه بابا هم د سلطان محمود غزنوي په شان یو عالم او فاضل پاچا و. د سلطنت یوه لویه ځانګړنه یې د الله په لار کې جهاد، د مسلمانانو مدد او د اسلام لوړتیا وه. نوموړي د هند وروستی اسلامي حکومت (مغلي دولت) د مرهټه هندوانو په لاس له سقوط څخه وژغوره او د هند د لوی عالم شاه ولي الله دهلوي په بلنه یې د هند د مسلمانانو مرستې ته ودانګل.

د افغانستان یاد شوي سلطنتونه د نورې اسلامي نړۍ د مستقلو پاچاهیو په شان له ځینو نیمګړتیاوو سره سره اسلامي واکمنۍ وې. ډیرو خو یې د اسلامي وحدت د ساتلو په مقصد عباسي او عثماني خلفاوو ته هم ارادت درلود او د اسلامي نړۍ د سیاسي مرکز په حیث یې ورته کتل. مؤمنو شاهانو ځانونه د امامت کبرې په مقام کې لیدل چې د سیاسي واکمنۍ ترڅنګ یې د ولس مذهبي رهبري هم کوله. هر سلطان به لویې پریکړې د دیني عالمانو د فتوی او مشورې په اساس کولې، په لښکرو کې به یې دیني

عالمانو، صوفيانو او مصلحينو تـه ځـانګړې رول او مسؤليت ورکـاوه. پـه مجموع کې اسلامي عقيدې ته تعهد، د ديني علم، ادب او فرهنګ خپرول، ديني علماوو، صوفيانو او مدرسينو ته د ټولنې د مهم قشر په نظر کتل، د کفارو پـه مقابـل کـې جهـاد، د خپـل ولـس لـه دينـي هويـت څخـه دفـاع، د ټـولنې اصـلاح تـه توجـه، د کمزورو مسلمانانو لاسنيوی او اسلام ته فکري او عملي ژمنتيا د افغانستان د پخوانيو واکمنو هغه مشترکات دي چې د يوه متدين ولس په حيث يې د افغان ملت په ټولنيز تشکل او رشد کې مهم رول لوبولی دی. خو د وروستيو پيړيو نړيوال تحول د نورې اسلامي نړۍ پـه شـان د افغانستان واکمن هم متأثر کړل چې ورسره نوي بحرانونه او ټکرونه راپورته شول.

د احمد شاه بابا د عصر له مهمو نړيوالو جريانانو يو يې هم د اروپايي استعمار پراختيا او وروسته د تيمورشاه په عصر کې د فرانسې انقلاب و. د اروپايانو استعماري هڅو کـه د مسلمانانو ځمکې، سـمندرونه او مـادي منـابع تهديـدول، بـل اړخ تـه پـه اروپـا کـې د رنسانس تر نوم لاندې نوي تحول مسلمانانو ته په فکري، اجتماعي او سياسي برخو کې لوی ګواښ رامنځته کړی و. ډېر وخت ونه ووت چې د دې زلزلې ټکانونه تر افغانستان را ورسيدل. انګريزانو چې د ختيځ هند کمپنۍ په توسط يـې پـه هنـد کـې مداخلـه پيـل کړې وه، د احمد شاه بابا د لمسيانو په دور کې يې افغانستان ته هـم د توطئـو لاسـونه را اوږده کـړل، چـې د سـدوزو او وروسـې محمـدزو شـاهانو خپلمنځي اختلافـاتو يـې د دسيسو کاميابۍ ته زمينه برابروله.

د ۱۹ مې ميلادي پيړۍ په لومړۍ نيمايي کې انګريزانو افغانستان تـه د داسـې سيمې پـه نظر کتل چې په يوه يرغل سره نيول کيدای او د انګريزي مستعمراتو په لست کې اضافه کيدای شي. نو ځکه يې د شاشجاع په ملتيا پـه افغانسـتان لـوی يرغـل وکـړ. د افغانستان ولس چې هميشه يې له خپل هيواد څخه په ميړانه دفاع کړې وه، يو ځل بيا يـې د جهاد بيرغ پورته کړ او انګريزي پوځيانو ته يې عبرتناک شکست ورکړ.

د ۱۹ ميلادي پيړۍ په وروستۍ نيمايي کې د افغانستان په تـاريخ کـې پـه لـومړي ځـل د سياسي واکمنو او ديني قشر لار سره بيله شـوه. د هيـواد سـياسي واکمـن چـې پخـوا بـه هميشه د ولس د ديني تشخص د دفاع متصديان ول او د خپل تخت و تـاج پـه شـان بـه

يې د ديني تشخص، استقلال، خپلواک حاکميت او معنوي ارزښتونو ساتل هم خپل فرض ګڼه، دا مهال يوازې د خپل موروثي اقتدار د ساتنې په فکر کې شول او د ځاني سياسي ګټو لپاره يې له انګريزانو سره د دوستۍ لاره ونيوله. په دې ډول د ولس د ديني هويت ساتنې او استقلال داعيه بې څښتنه پاتې شوه، چې بالاخره ديني علماوو او د ولس مذهبي قشر همدې مسؤليت ته اوږه ورکړه.

په ۱۸۷۹ ميلادي کال له انګريزانو سره د ګندمک د شرمناک تړون له امضاء وروسته بيا تر اوسه پورې د افغانستان اکثره واکمن د دې پر ځای چې په خپل ديني او تاريخي تشخص قانع واوسي د پرديو افکارو او اقدارو د راوړلو او ترويج په تلاش کې دي چې په وړاندې يې د افغانستان مذهبي قشر د خپلو ديني او معنوي ارزښتونو د دفاع توغ رپاند ساتلی دی. حقيقتا په افغانستان کې د وروستۍ يوې نيمې پيړۍ د بحرانونو يو له سترو عواملو همدا دی چې وروستيو واکمنو د خپلو وياړمنو اسلافو غزنوي، ابدالي او نورو لاره پريښوده، خپلو ديني ارزښتونو ته يې شا کړه او د تجدد تر عنوان لاندې يې د پرديو نظرياتو ترويج پيل کړ. بالمقابل د افغانستان مذهبي قشر چې د خپل ولس د ديني هويت دفاع او له فسق او ګمراهيو څخه ساتل يې ديني او وجداني دنده ده پرلپسې يې د واکمنو د انحرافاتو په وړاندې مقاومت جاري ساتلی.

د امير عبدالرحمن خان سره د ملا مشک عالم، غازي محمد جانخان، ملا عبدالکريم اندړ، د کندهار مولوي عبدالرحمن او نورو مجاهدينو مخالفت په دې سبب و چې امير عبدالرحمن د ګندمک تړون تائيد کړی او افغانستان يې د انګريز نامرئي اشغال ته پرې اينبی و. وروسته بيا د امير حبيب الله خان د استبداد په وخت کې ديني مصلحينو او منورينو لکه مولانا محمد سرور واصف کندهاري، مولانا محی الدين افغان، مولوي عبدالرؤف خاکي دغه راز نورو دردمنو علماوو او مبارزينو د انګريز د نامرئي اشغال، درباري فساد او تولنيز رکود په وړاندې د لومړني مشروطيت تر عنوان لاندې اصلاحي غورځنګ پيل کړ چې بالاخره د انګريز په مستقيمه قومنده د وخت حاکمانو په بې رحمۍ سرکوب کړ.

امیر امان الله خان چې لـه انگریـز څخـه د استقلال او د اسـلامي اخـوت او عـدالت پـر اساس د واکمنۍ جوړولو داعیه یې راپورته کړه، د افغانستان ټولو مبارزو علماء کرامـو او مجاهدینو یې کلک ملاتړ وکړ. د هغه تر مشرۍ لاندې په درې جبهاتو کـې لـه انگریـز سره وجنگېدل او استقلال یې واخیست، خو وروسته چې امـان الله خـان بیرتـه لـه غـربي افکارو متأثر شو او د ریفورم تر عنوان لاندې یې د غـربي فرهنـگ تـرویج پیـل کـړ، نو ځکه یې علماء او روحانیون هم مخالف شـول. د امـان الله خـان پـه وړانـدې د پکتیا د شهید مـلا عبـدالله پـاځون، دغـه راز پـه کابـل کـې د شـهید قـاضي عبـدالرحمن او نـور المشائخ فضل عمر مجددي مخالفت او په پای کې د حبیـب الله کلکـاني پـه مشـرۍ د لوی قیام پیل د امان الله خان د همدې انحراف پایله وه چې د نومـوړي پـروني ملاتـړي یې ورته په مخالفینو واړول.

د نادر خان له ځینو سیاسي نیمګړتیاوو سره سره لویه هوښیاري دا وه چې د افغـان ولـس د دیني تشخص رعایت او تحفظ ته یې توجه درلوده. نومـوړی د افغانسـتان پـه متـأخرو پاچاهانو کې له متدینو اشخاصو ګڼل کیږي. همدا لامـل و چـې د نومـوړي او د هغـه د ورونو د واک په مرحله کې افغانستان د مسجد او تخت د ټکـر بیلګـه نـه لـري. امـا کلـه چې یې زوی محمد ظاهر شاه او وراره محمد داود خان ته واک په لاس ورغی، هغـوی یو ځل بیا زړې تجربې تکرار کړې. په هیواد کې یې د اروپایي لیبرالیـزم د تـرویج هڅـه پیل کړه، کمونیستي افکارو ته یې د خپریدلو مخـه ورکـړه چـې ورسره د هیـواد د مؤمنـو پرګنو او په خاص ډول مذهبي قشـر د دیني غیـرت احسـاس یـو ځـل بیـا راوپاریـد او د شاهي تخت په مقابل کې له مساجدو او منبرونو د اعتراض غږونه راپورته شول.

د ظاهر شاه د حکومت په منځنیو کلونو کې په کندهار ښار کې د سـینما د جوړیـدو پـه وړاندې د دیني عالمانو پـه مشـرۍ ولسي-احتجـاج چـې پـه زبردسـتۍ وځپـل شـو، د همدې ټکر یوه بیلګه وه. د دموکراسۍ پـه لسـیزه کـې چـې ګونـدونو تـه آزادي ورکـړل شوه. د افغانستان علماوو د خدام الفرقان تنظیم، ګهیځ او نـدای حـق جریـدو لـه لارې د کمونیزم او بې دینۍ پر خلاف مبارزه کوله، دغه وخـت کـه څـه هـم چـارواکو د بیـان د ازادۍ خبـره کولـه، خـو پـه واقعیـت کـې ظـاهر شـاهي سـلطنت د اسلامپالو پـه نسـبت

کمونیستانو ته میلان درلود، د کابل په پل خشتي مسجد کې د زرګونو علماء کرامو د سوله ییز احتجاج په وړاندې د چارواکو توهین آمیز چلند د دې مدعا ثبوت دی.

د داود خان د واکمنۍ په مهال کمونیستان تر هر وخت ډیر د اقتدار منصب ته ورلنډ شول. سردار داود خان که څه هم په وروستیو کې د کمونیستانو پر ضد عاجل اقدامات وکړل خو دغه وخت اوبه تر ورخ تېرې وې نو ځکه وربانډې کمونیستانو د یوې خونړۍ کودتا په ترڅ کې غلبه وکړه.

د کمونیستي انقلاب او شورویانو له یرغل سره د حق او باطل فکري ټکر په مخامخ مسلحانه برخورد واوښت او د کمونیزم پر ضد جهاد پیل شو چې دیني عالمانو په کې مهم او کلیدي نقش درلود.

د کمونیزم پر ضد د افغان ولس جهاد دوه هدفه درلودل، له هیواد څخه د شوروي یرغلګرو او کمونیستي مفکورې محو کول او په افغانستان کې د یو داسې واقعي اسلامي نظام جوړول چې د دې مؤمن او مجاهد ولس د تاریخي دیني هویت او تشخص نمایندګي وکړای شي.

د کمونیست رژیم له سقوط او د جهاد له بریا وروسته په جهاد بوخت دیني علماء یو ځل بیا خپل مسجد او مدرسې ته ستانه شول او د نظام جوړولو کار یې هغو مبارزینو ته پریښود چې ځانونه یې د عصر له غوښتنو آګاه او د نظام سازۍ په چارو پوه ګڼل. خو فاجعه دا پیښه شوه چې دغو د اقتدار شوقیانو د واک او تخت په هوس کې د جهاد ارمانونو ته شا کړه، حتی ډیرو خپل اسلامي او جهادي تشخص هم هیر کړ. دوی چې پخوا د اسلامي اخوت شعار بدرګه کاوه دغه وخت د نشنلستانو په شان قومي، ژبني او سمتي تعصباتو په مخه کړل. د مقدس جهاد ارمانونه، د یو نیم میلیون شهیدانو د وینو نتیجه او د مجاهد او مهاجر ولس هیلې یې ټولې هیرې کړې او یوازې د اقتدار لاسته راوړل یې مهم هدف وټاکه.

دا چې د افغانستان د اقتدار تخت یو او مدعیان یې ډېر وو نو ځکه خبره جګړې ته ورسیده، هغه د اسلامپالنې دعوه داران چې تر پرونه د کمونیزم پر ضد د یوه سنګر

ملګري ول اوس يې د خپل مؤمن او مجاهد ورور د وژلو لپاره له کمونيستانو سره ائتلافونه وکړل او د تنظيمي جګړو خونړۍ اور يې بل کړ.

د افغانستان ديني عالمانو په تنظيمي جګړو کې برخه نه درلوده، بلکې ځينو يې مسلسل هڅه کوله چې د جګړه مارانو تر منځه روغه جوړه وکړي. خو د قدرت پر سر جګړه کوونکو د هيچا خبر نه اوريده،تر دې چې نه يوازې د جهاد ثمره له خطر سره مخامخ شوه، بلکې ټول هيواد او د ملت راتلونکې له ګواښ سره مخامخ و. ښارونه لوټ او ملي شتمنۍ تالا ترغه شوې، ظلم، قتل و قتال او فساد اوج ته ورسيد، د هيواد د تجزيې نقشې تيارې شوې او هره ورځ د بلې په نسبت ولس د تباهۍ پر لور روان و.

که پخوا به د افغانستان مذهبي قشر يوازې د معنوي ارزښتونو د دفاع لپاره پاڅون کاوه دا ځل د ولس معنوي او مادي شتمنۍ دواړه له خطر سره مخامخ وې، نو بناء دا پر ديني، عقلي، تاريخي او هر لحاظ منطقي خبره وه چې د ولس د ديني تشخص ساتونکي ( عالمان، مجاهدين، طالبان، منورين او نور مصلحين) يو ځل بيا د هيواد او خلکو د نجات لپاره صحنې ته راووځي. د ګړنګ پر ژۍ ولاړ افغانستان د سقوط له خطر ځخه وژغوري او د مطلقې ګمراهۍ او زوال پر لار روان ولس د نيکمرغۍ، اتحاد او اسلامي واکمنۍ پر لور رهبري کړي.

د داسې يو نوراني پاڅون او ولسي غبرګون لپاره ټول تاريخي مقدمات بشپړ شوي وو. خو تقدير دغه کارنامه د ملا محمد عمر مجاهد په نوم ليکلې وه. د فساد، ګډوډۍ او هرج و مرج په اوج کې ملا محمد عمر مجاهد د الله تعالی د لارې د بلونکي او مجاهد په حيث د فساد د محو کولو غېز پورته کړ. د افغانستان تقريبا ټول علماء، طالبان او واقعي مجاهدين د نوموړي ملګري شول او د جهادي ارمانونو د خونديتوب، اسلامي حاکميت د احياء او د ولس د ديني تشخص د ساتنې مبارزه يې پيل کړه.

د لوړو مقدماتو په اساس د ملا محمد عمر مجاهد د قيام او اسلامي امارت په اړه هغه اساسي پوښتنه په ډېر واضح ډول خوابيرې چې د ملا محمد عمر مجاهد د پاڅون وجودي فلسفه څه وه؟ نوموړی له کومې خوا د افغانستان سياسي صحنې ته راغی؟ او ولې راغی؟

دا چې د افغان مؤمن ولس د ایمان او وجدان له ژورو د را پاڅیدلي دغه نوراني پاڅون سرلاری څوک و؟ څرنګه یې دغه پاڅون رهبري کړ؟ د اسلام او مسلمانانو لپاره یې څه وکړل او په وړاندې یې نړیوالو څه غبرګون وښود؟ راتلونکی متن د همدې او ډېرو نورو اړوندو پوښتنو په ځواب کې درسره مرسته کوي.

*****

# لومړی فصل

## له زیږېدو تر ځوانۍ

**زیږېدنه**

ملا محمد عمر مجاهد په ۱۳۷۹هجري قمري کال چې له ۱۹۶۰ میلادي کال سره سمون خوري د افغانستان په جنوب کې د کندهار ولایت د خاکریز په ولسوالی کې دنیا ته راغی.

**د زیږېدو سیمه**

کندهار ولایت د افغانستان په جنوب کې واقع دی چې مرکز یې (کندهار ښار) دی او د افغانستان دوهم تر ټولو ستر ښار بلل کیږي. کندهار په سیاسي لحاظ د افغانستان یوه مهمه او مردخیزه سیمه ګڼل کیږي. د معاصر افغانستان مؤسس احمدشاه بابا د خپلې واکمنۍ اساس په همدې ولایت کې ایښی و او له همدې ځایه یې د هند، ماوراء النهر او فارس پرخوا لښکرکښۍ کولې. تر هغه وړاندې د میرویس نیکه په مشرۍ د پاڅون مرکز هم کندهار و چې په پایله کې یې له افغانستانه د صفوي یرغل تغر ټول او د افغانانو مستقل دولت رامنځته شو. د صفوي اشغال د محو کولو او خپلواکۍ د اخیستلو له امله افغانان میرویس خان هوتک خپل ویاړمن ملي مشر بولي او د (میرویس نیکه) په احترامانه نوم یې یادوي. دغه راز هوتکي دولت چې د صفویانو له زوال وروسته یې ځوکاله په افغانستان او ایران سلطه درلوده د اسلامي تاریخ یو ویاړمن باب ګڼل کیږي.

کندهار د معاصر افغانستان لومړنۍ پلازمینه وه چې وروسته د تیمورشاه په دوره کې پایتخت کابل ته انتقال شو.

د کندهار ښار شمال ته په پنځوس کیلومترۍ کې د خاکریز ولسوالي پرته ده. ملا محمد عمرمجاهد د همدې ولسوالۍ په (چاه همت) قریه کې دنیا ته سترګې وغړولې

نوموړی د خپل پلار او مور دریم اولاد و، تر ده دوې مشرانې خویندې او یو کشر ورور یې په ماشوموالي وفات شوي دي.

**ټبر او کورنۍ**

ملا محمد عمرمجاهد د پښتنو د هوتکو د قوم له تومزی ښاخ څخه دی. هوتک د پښتنو له مشهورو قبیلو څخه دي چې د میشت اصلي سیمه یې د افغانستان په جنوب کې د زابل ولایت دی.

څرنګه چې پښتانه بعضی وختونه د بیلابیلو اقتصادي او اجتماعي دلائلو له امله له خپلو اصلي مېنو نورو ځایونو ته انتقال شوي دي، د ملا محمد عمر کورنۍ هم ډېر کلونه وړاندې د زابل ولایت څخه د کندهار خاکریز ولسوالۍ ته انتقال شوې. د ملا محمد عمر مجاهد پلار مولوي غلام نبي صاحب د خاکریز ولسوالۍ د ناصرو په کلي کې دنیا ته راغلی. د ملا محمد عمر مجاهد نیکه مولوي محمد رسول صاحب، غور نیکه یې مولوي محمد ایازصاحب او له هغه پورته آباء او اجداد یې ټول د دیني علومو پوهان، ملا امامان او مدرسین وو، چې د دیني علومو زده کړه، تعلیم، تدریس او امامت یې د ژوند اساسي مشغله وه. د ملا محمد عمر مجاهد پلار مولوي غلام نبي صاحب د خپل پلار مشر زوی و چې د مولوي محمد انورصاحب، ملا عبد الولي صاحب،ملا محمد حنفیا صاحب او مولوي محمد جمعه صاحب په نومونو یې څلور نور کشران وروڼه درلودل. د دوی کورنۍ د افغانستان د اکثریت عامو اوسیدونکو په څیر غریبانه ژوند درلود. په کندهار کې یې کوم معلوم جایداد، ځمکه او مالداري نه درلوده، د نورو علماء کرامو او طالبانو په شان په خپل غریبانه ژوند قانع وو او د دنیا او مال د جمع کولو په ځای یې ډېره توجه د علم او دیني خدمت خواته وه.

ملا محمد عمر مجاهد په همدې علمي او متدین خاندان کې په ۱۳۷۹هجري قمري کال کې (چې له ۱۳۳۸ هجري شمسي-او ۱۹۶۰میلادي کال سره برابر دی) وزیږید، مور یې په قوم ناصره او د خاکریز ولسوالۍ د ناصرو د کلي یوه متدینه او عبادت ګذاره میرمن وه. ملا محمد عمر مجاهد ایله د دوو کلونو و چې پلار یې د کندهار ښار ته نږدې د ډنډ ولسوالۍ په نوده کلي کې د یوه مسجد امام شو او خپل کور یې له خاکریز

څخه نودې کلي ته را انتقال کړ. ملا محمد عمرمجاهد د ماشومتوب د عمر درې کلونه همدلته د پلار تر سیوري لاندې تیر کړل خو لا ماشوم و چې ژوند یې له ستونزو او درنو مصائبو سره مخامخ شو.

## د خویندو، کشري ورور او پلار وفات

د ملا محمد عمر مجاهد والده شریفه (چې اوس هم ژوندۍ ده)حکایت کوي، چې له خاکریز نه کله د کندهار د ډنډ ولسوالۍ (نوده) کلي ته لاړو، نو دلته د ملاصاحب پلار امامت کاوه او له خپلو اولادونو سره یې غریبانه ژوند درلود. د دوی کورنۍ له پلار او مور، دوو لوڼو او دوو زامنو څخه عبارت وه. د ملا محمد عمر دوه خویندې تر ده مشرانې وې او ورور یې چې شیرعلي نومیده تر ده کشر و.

ملا محمد عمر په خپلو ماشومو خویندو ډېر گران و او دده پالنه به یې کوله، خو یو وخت په سیمه کې د خپرو شویو مرضونو له وجې یې خویندې یو په بل پسې وفات شوې. چې دا د څلور کلن محمد عمر په ژوند کې لومړنۍ او خورا درنه ابتلاء وه. مور یې حکایت کوي چې ملا محمد عمر د خپلو خویندو په فراق ډېر ځوریده ځکه چې د ماشومتوب په دنیا کې تنها شوی و.

خو تر دې پیښې یو کال وروسته چې په ده کومه ابتلاء راغله هغه خورا درنه او سخته وه، د ملاصاحب مور د دې واقعې حکایت داسې کوي.

ملا محمد عمر د پنځو کلونو په عمر و چې پلار یې سخت مریض شو. د ملا صاحب[1] تره مولوي محمد انور صاحب دغه وخت طالب و او په کندهار ښار کې یې درسونه ویل، په دې ورځو کې د ملاصاحب کشر ورور چې د غیبرې ماشوم و هم

(۱) په کتاب کې ډېر ځله له ملا محمد عمر مجاهد څخه یوازې په (ملا صاحب) تعبیر شوی دی. ملا صاحب په افغاني ټولنه کې یو احترامانه نوم دی. چې هغه دیني عالم ته ویل کیږي چې تعلیمي سلسله یې تکمیل کړې نه وي. امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد هم د خپلو ملگرو تر منځ په همدې لقب شهرت درلود.

مریض و. د ملاصاحب تره مولوي محمد انور راغی، د ملاصاحب پلار یې د علاج لپاره کندهار ښار ته بوت او د کور سرپرستي یې د ملاصاحب بل تره ملا محمد حنفیا ته چې د ملا محمد عمر د مور رضاعي ورور هم کېده، پرېښوده.

څو ورځې بعد د ملا صاحب د کشر ورور شیرعلي مرض زیات شو، مور او تره یې د علاج لپاره د کندهار ښار خواته روان کړ، دوی پیاده روان وو خو چې د میربازار سیمې ته ورسیدل، د ماشوم بدن بې حسه شو او سر یې د مور په اوږه ولګاوه، دوی چې د ماشوم دا حالت ولید بېرته کور ته راوګرځېدل، کور ته په رسیدو یې لیدل چې ماشوم وفات شوی دی. په دې ډول پنځه کلن محمد عمر یو مخ تنها شو.

د ملا صاحب تره د ماشوم له تدفین وروسته کندهار ښار ته لاړ تر څو د ملاصاحب د پلار پوښتنه وکړي. هلته چې ورغی هغه لا هم مریض و خو له ده څخه یې د کوچني ماشوم پوښتنه کوله، ده یې له وفاته خبر نکړ بلکې د روغتیا ډاډ یې ورکړ، د ملاصاحب پلار چې په ښار کې دخپل طالب ورورسره په حجره کې اوسیده څو ورځې بعد یې مرض سخت او ورپسې وفات شو. وروڼو او نورو طالبانو یې تکفین او جنازه وکړه او د کندهار ښار د طالبانو په نامه مشهوره هدیره کې یې خاورو ته وسپاره.

د ملاصاحب تره ملا محمد حنفیا د خپل وفات شوي ورور کالي او پاتې شیان په څادره کې غوټه کړل، کور ته په رسیدو یې دا زړه ونکړای شو چې د دې درانه مصیبت خبر د ملا محمد عمر مور ته واوروي نو ځکه یې یوازې دغه غوټه د کور په دروازه کې کېښوده او لاړ. د ملاصاحب مور فکر کاوه چې شاید خاوند به یې روغ شوی وي او لږ وروسته به راځي خو وروسته یې چې غوټه خلاصه کړه ورمعلومه شوه چې د ملاصاحب د پلار وروستي اغوستي کالي، لنګوټه او صدرۍ په کې تړلي دي نو په دې پوه شوه چې خاوند یې له دنیا رحلت کړی دی.

په دې ډول له ټولې کورنۍ څخه یوازې مور او یو زوی یې ملا محمد عمر د یتیمتوب او بې سرپرستۍ له درنو غمونو او مصائبو سره پاته شول. وروسته د مصلحت په اساس د ملا محمدعمر مجاهد د والدې شریفې نکاح د ده له تره او پالونکي مولوي محمد انورصاحب سره وشوه.

### د تره لخوا تربیت

وړاندې وویل شول چې د ملامحمد عمر مجاهد کورنۍ له پخوا څخه د علم او دینداری خاندان وو. د نوموړي ترونه او نور نږدې خپلوان زیاتره د ددیني علومو عالمان وو چې د امامت او تدریس په چارو بوخت وو. دوی نه یوازې په خپل اصلي میشت ځای (خاکریز ولسوالۍ) کې د امامت او تدریس وظیفه ترسره کوله بلکې د کندهار په نورو شاوخوا سیمو کې یې هم وخت په وخت دغه سپیڅلې وظیفه سرته رسوله.

لکه څنګه چې د ملا محمد عمر پلار د امامت اوتدریس د وظیفې د پاللو لپاره له خاکریز څخه ډنډ ولسوالۍ ته تللی و، ترونه یې مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه د کندهار په شمال کې د روزګان ولایت دهراود ولسوالۍ ته د امامت او تدریس لپاره لاړل او خپل یتیم وراره یې له خپلي مورسره یوځای له ځان سره دهراود ولسوالۍ ته بوتلل. کوچني محمد عمر له همدې ځایه د خپل تره تر سیوري لاندې ژوند پیل کړ او د کفالت او روزنې چارې یې د عالم تره مولوي محمد انور صاحب په غاړه وې،، ملا محمد عمر مجاهد د ځوانۍ تر وخته د روزګان په دهراود کې واوسېد.

### د ماشومتوب د ژوند چاپیریال

ملا محمد عمر مجاهد په پنځه کلنۍ د روزګان دهراود ته لاړ او د خپلو ترونو مولوي محمد انور او مولوي محمد جمعه تر سیوري لاندې یې ژوند پیل کړ. د نوموړي ترونه دواړه د دیني علومو پوهان یا په دودیزه اصطلاح ملایان وو. ملا یا مولوي د دیني عالم مرادفه اصطلاح ده خو په افغانستان کې ټولنیز نقش او اغیز ته په پام سره د دیني عالمانو یا ملایانو نفوذ د نورې نړۍ په نسبت په مراتبو زیات دی.

په افغاني ټولنه کې ملا یا عالم یوازې د امامت او تدریس دنده نه ترسره کوي، بلکې په دیني او ډېری اجتماعي امورو کې د یوه معتبر مرجع حیثیت لري چې د ټولنې د رهبرۍ، اصلاح، د منازعو د حل و فصل، له بې لاریو او ګمراهیو څخه د خلکو د ساتنې، ددیني شعائرو د ژوندي ساتلو او حتی د حکومت او سیاسي مرجعیت د تنبیه او اصلاح دنده هم د دیني عالمانو له مسؤلیتونو ګڼل کیږي.

په افغاني ټولنه کې د ديني عالم يا ملا اساسي دنده د مسجد امامت دی. ډېری مساجد په خپله احاطه کې يو يا تر يوه زيات اطاقونه هم لري چې درس يا دائره ورته وايي او د ديني علومو طالبان په کې اوسي. شايد له مسجد سره يو ځای د درسگاه دغه دود د صدر اسلام له نبوي مسجد څخه اخيستل شوی وي چې په څنگ کې يې د صفې په نوم د اوسيدو ځانگړی ځای درلود او هغه صحابه کرام (رضی الله عنهم) به په کې اوسيدل چې له لرې سيمو به د ديني علم او شرعي احکامو د زده کړې لپاره مديني منورې ته راغلي وو.

څو لسيزې وړاندې چې په افغانستان کې منظم ديني مدارس لږ وو او د حکومتونو لخوا هم ديني زده کړو ته کومه توجه نه کيدله، د هيواد په لراوبر کې د ديني علومو نږدې ټولو طالبانو په همدې کليوالي مدرسو (حجرو) کې زده کړې کولې. ملا او طالب يا استاد او شاگرد چې د ټولنې په زړه کې اوسيدل، پنځه وخته له عامو خلکو سره په يوه صف کې دريدل او د عام ولس په هر غم او ښادي کې يې ځان شريک باله د وخت په تيريدو يې له ټولنې سره ځانگړی نه شليدونکی پيوند جوړ شوی و چې دغه تړون تراوسه پاتې دی.

ملا محمد عمر مجاهد د ولس او علماوو د همدې صميمانه تړون په کليوالي چاپيريال کې را ستر شو، د لاربښودو استادانو او طالبانو څخه يې د ژوند لومړني اداب زده کړل. راسخ ايمان، پاکې عقيدې، ديانت او سوچه مسلمانی يې په زړه کې ريښې وکړې. د ولس په منځ کې اوسيدو ورته سوچه عادات، ژبه، غيرت، ميلمه پالنه، خواخوږي، شرافت او د افغانولی نور مشخصات تلقين کړل. د يتيمتوب او غريبانه ژوند سختيو يې روح او بدن صيقل او محکم کړل او د ژوند په اوږدو کې د سختو آزمونونو زغملو ته يې اماده کړ.

د دهراود هغه سيمه چې ملا محمد عمر مجاهد په کې له ۵ کلنی بيا تر يوويشت کلنی پورې د خپل عمر مهم او شخصيت ساز کلونه تير کړي يوه کليواله سيمه ده. همدا لامل و چې نوموړی د يوه سوچه مؤمن افغان په حيث را ستر شو او نه ماتيدونکی ديني

صلابت یې د فطرت برخه وګرځید چې بیا د ژوند تر پایه له هماغه راسخې عقیدې، ساده ژوند، صمیمانه چلند، ساده لباس او سوچه عاداتو سره پاته شو

نوموړي د قریبانو په قول ملا محمد عمر په کوچنیوالي خاموش مزاج درلود خو په عین حال کې متحرک و او خپل کارونه یې په جدیت ترسره کول. له ماشومتوبه یې دا ځانګړنه درلوده چې کار او فعالیت یې د خبرو په نسبت ډیر و. صداقت او اخلاص چې د نوموړي مثالي صفتونه یادیږي له ماشومتوبه یې درلود. دیني چارو په خاص ډول لمانځه ته یې له ډیر ماشومتوبه بشپړه توجه درلوده او حتی په لمانځه کې خو له هماغه پیله دومره جدي و چې که به په هرکار مصروف و خو چې د لمانځه او جماعت وخت به شو کار یې په ځای پریښود او مسجد ته یې ځان رساوه. نوموړي په ډېر کم عمر د خپل مسجد په دائره کې ژوند پیل کړ او د دیني علومو زده کړو ته یې ملا وتړله، دا چې د خپل کور مشر ماشوم و نو د کور په کارونو کې یې هم برخه اخیسته خو ډیره مشغولا یې په درس او سبقونو وه.

هغه محیطي عوامل چې د ماشومتوب او ځوانۍ په وخت کې یې د ملا محمد عمر مجاهد په ژوند اغیز درلود ټول داسې څه وو چې په ده کې یې مثبت او نیک خصلتونه را ژوندي کول او روزل. نوموړی د یوه صالح پلار او دینداري مور زوی و چې له نسبه نسب سره یې تعلق درلود. د کور چاپیریال یې د علم، دینداری او عبادت چاپیریال و. ژوند یې غریبانه و او همیشه یې له داسې روزي تغذیه کوله چې حلاله او له شبهاتو څخه پاکه وه. له کور بهر یې د ماشومتوب او ځوانۍ د وخت چاپیریال د مدرسې او مسجد ماحول و. چې د ټولنې تر ټولو متدین قشر طالب العلمان او لمونځ ګذاره کلیوال په کې اوسیدل. ملا محمد عمر مجاهد د علم، ذکر، عبادت، کتاب او تدریس په چاپیریال کې وزیږېد، په همدې چاپیریال کې یې خاپوړې وکړې، د ژوند لومړنۍ الفباء یې زده کړه او په همدې ماحول کې د ځوانۍ ترعمره ورسېد.

## دیني زده کړې

په افغانستان کې مروج د دیني زده کړو نصاب د هغه تعلیمي نظم یو ډول دی چې له دوهمې هجري پیړۍ را هیسې د پخواني خراسان (اوسني افغانستان) په تعلیمي مراکزو

کې دود شوی.دغه تعلیمي نظام چې وخت په وخت په کې لازم تغیرات راوستل شوي د هند، پاکستان او افغانستان په مدارسو کې اوس هم تدریسیږي چې د اسلامي نړۍ په سطحه د دیني تعلیماتو یو مهم او تاثیرگذاره تدریسي سیستم بلل کیږي.

په دې تعلیمي نظام کې د دینې زده کړو طالب له ماشومتوبه عربي الفبا او د مفرداتو زده کړه پیلوي، ورپسې د قرانکریم لوست زده کوي او بیا د لمانځه او نورو ضروري عباداتو اړوند فقهي احکام او لومړني عقائد زده کوي. له هغه وروسته حنفي فقه، عقائد، عربي صرف او نحو، فارسي او عربي ادب او نور ضروري علوم زده کوي. وروسته په دې سلسله کې اصول الفقه، معاني، بدیع، بیان، عروض، منطق، هیئت، علم التفسیر او نور علوم هم ور اضافه کیږي او د احادیثو د صحاح ستة په لوست سره دغه تعلیمي سلسله پای ته رسیږي.

ملا محمدعمر مجاهد دینې زده کړې له پنځه کلنی څخه له خپل عالم تره څخه پیل کړې، لومړني ضروري کتابونه یې په خپل کور او مسجد کې ولوستل، په دهراود کې د دوی د اوسیدو کلی شهرکهنه بولي. شهرکهنه د دهراود ولسوالی پخوانی مرکز دی چې د ولسوالی مقام او محلي حکومتي ادارات هم پخوا همدلته وو. د ظاهر شاه د حکومت په منځنیو کلونو کې په دهراود کې د حکومتي پلان له مخې نوی ښار جوړ شو او له شهرکهنه څخه ورته حکومتي ادارات رانقل شول چې تراوسه د ولسوالی مرکز دی.

د ولسوالی په پخواني مرکز شهرکهنه کې یوه مدرسه وه چې د طالبانو د ډیروالي له امله په دهراود کې په (لویه دائره) مشهوره وه. ملا محمد عمر مجاهد په اته کلنی کې همدې مدرسې ته داخل شو چې د کمونیستانو او شوروي یرغلگرو په خلاف د جهاد تر وخته یې په همدې مدرسه کې زده کړو ته دوام ورکړ.

له ملا صاحب نه که څه هم د شوروي ضد جهاد د اضطراري حالاتو له امله د زده کړو سلسله نیمگړې پاته شوه. خو تر دې مهاله یې کافي اندازه دیني علوم زده کړل. په عربي ژبه د مطالعې او او استفادې استعداد یې ومونډ چې وروسته به یې ډېر وخت تفاسیر او نور دیني معلوماتي کتابونه مطالعه کول. نوموړي د کمونیزم ضد جهاد له بریا

وروسته د کندهار په سنگ حصار سیمه کې مدرسه جوړه کړه چې ده په کې په یوه وخت د تعلیم او تعلم دواړه سلسلې تعقیبولې. خو د هرج او مرج او فساد په وړاندې په قیام سره یې د زده کړو دغه دوهم پړاو هم قطع شو. ملا صاحب د علم ژور شوق درلود. مدارسو، علماء کرامو او طالب العلمانو ته یې خورا زیات قلبي احترام درلود او همیشه یې د مدارسو او علمي خدماتو د پراختیا هڅه کوله.

*****

# دوهم فصل

## د کمونیزم پرخلاف جهاد

### افغانستان او د کمونیزم فتنه

افغانستان د امپراطوریو قبرستان او د تاړاکګرو معبر بلل کیږي. د یوې څیړنې له مخې د دې خطې د پنځه زره کلن تاریخ تر نیمایي زیات کلونه په نارامیو او بحرانونو کې تېر شوي دي. د افغانستان په معاصر تاریخ کې د سولیز ثبات او استقرار تر ټولو اوږده موده د شلمې پېړۍ منځنۍ لسیزې وې. د آل یحی (نادرخان، ظاهرشاه او داود خان) د پنځوس کلنې واکمنۍ په مهال افغانستان له استقرار څخه برخمن و. او د همدې مودې آخري کلونه د ملا محمد عمر مجاهد د ماشومتوب او نوې ځوانۍ وخت و.

د سړې جګړې په دې کلونو کې افغانستان چې له ډېره وخته یې په نړیواله کچه د ناپېلتوب دریځ ساتلی و، د وخت د حاکمانو د بېغورۍ او یا هم غلطو پالیسیو له امله د شمالي کمونیست ګاونډي شوروي اتحاد خواته ورمات شو. شورویانو د دوستۍ او مرستو په لفافه کې افغانستان ته د کمونیزم دهري مفکوره راوړه. د معارف، مطبوعاتو او اردو په شمول په بیلابیلو بنسټونو کې کمونیستانو نفوذ وکړ. افغاني کمونیستان چې د شوروي اتحاد بشپړ ملاتړ ورسره و د وخت حاکمانو یې په وړاندې د تسامح دریځ غوره کړی و او حکومت یوازې د هغو اسلامپالو څپلو ته کار وایه چې افغان ولس یې د کمونیزم له خطراتو خبراوه.

په دې مرحله کې د کمونیزم په وړاندې مبارزه د دیني علماء کرامو او ځینو پوهنتوني اسلامپالو له خوا پر مخ وړل کېدله. کلیوالو ملایانو، مدرسینو او خطیبانو که څه هم یو سراسري او منظم تشکیل یې نه درلود، وخت په وخت یې د دعوتي غونډو، تظاهراتو او لیکنیزو تبلیغاتو په توسط ولس د کمونیزم له خطرونو خبراوه. هغه وخت چې ملا محمد عمر مجاهد لس کلن و او په دهراود کې یې دیني کتابونه لوستل، د افغانستان ملایانو د کابل په پل خشتي مسجد کې یوه ستره او هیواد شموله اجتماع رابللې وه تر

ځو د کمونیستي مفکورې او نورو انحرافاتو د مخنیوي په مقصد په حکومت فشار واچوي.

د پل خشتي د جامع مسجد اجتماع چې د ۱۳۴۹ لمریز کال په جوزا میاشت کې رابلل شوې وه او ځو اونۍ یې دوام وکړ د افغانستان له ټولو ولایاتو په کې سلګونو ملایانو ګډون کړی وو. په تأسف باید ووایو چې د وخت حاکمانو په ځای د دې چې د سلګونو علماء کرامو د سوله ییز احتجاج درنښت وساتي او ارزښتمنو دیني مشورو او غوښتنو ته یې لبیک ووایي، پرته له دلیله یې د دغو مصلحو علماء کرامو په خلاف له زور او کوتک څخه استفاده وکړه، علماء کرام یې په برقي ډنډو له وهلو او بندي کولو وروسته د هیواد بیلابیلو لرې پرتو سیمو ته وشړل تر څو د بل ځل لپاره سره پیدا نه کړای شي.

د پل خشتي له پیښې څلور کاله وروسته د ظاهرشاه د تره زوی داود خان د خپلو کمونیستو ملاتړو په مرسته ظاهر شاه له واکه لرې کړ او خپله یې ځان د تش په نامه جمهوریت مشر وټاکه. د داود خان په واکمن کیدلو سره افغاني کمونیستان یو ګام نور هم خپل هدف ته ورنږدې شول، دا ځل کمونیستانو په حکومت کې رسما ځای وموند او له فرصت نه په استفاده یې د خپلو مخالفینو (علماء کرامو او نورو اسلامپالو) د ځپلو کار پیل کړ. د داود خان د واکمنۍ لومړني کلونو د افغانستان د دیني قشر لپاره تر ټولو سخت او له خطره ډک کلونه وو، ډیری دیني مبارزین له هیواده وتلو اوګاونډیو هیوادونو ته په هجرت اړ شول او په سیاسي اصلاحي فعالیت یې بشپړ بندیز ولګېد.

کله چې کمونیستانو د داود خان د واکمنۍ په مهال په حکومت کې دننه نفوذ پراخ او پښې ټینګې کړې نو یې د داود خان د پرځولو او بشپړ کمونیستي حکومت د تأسیس خطر پوه شو او د کمونیستانو د ځپلو لپاره یې ځینې عاجل اقدامات هم وکړل خو دا وخت نور اوبه له ورخه تیرې وې. کمونیستانو د ۱۳۵۷ لمریز کال د ثور په اوومه نیټه د

یوې خونړۍ کودتا په توسط د داود خان رژیم ونړاوه او په افغانستان کې یې د مارکسیزم ـ لنینزم په فلسفه ولاړ یو کمونیستي رژیم اعلان کړ.

**له مدرسې د جهادي سنگر پر لور**

د ملا محمد عمر مجاهد د میشت سیمه (دهراود ولسوالي) د افغانستان یوه له لرې پرتو او غرنیو سیمو شمیرل کیږي. پخوا چې د اړیکو وسائل ډېر نه وو خلک به په ډېر ځنډ له حکومتي تغیراتو او سیاسي پېښو خبریدل. له کمونیستي انقلاب وروسته په ښاري سیمو او یا ښار ته نږدې ولسوالیو کې ډېر ژر جهادي خوځښت پیل شو. خو په لرې پرتو سیمو کې د کمونیزم په خلاف د جهادي قیام پیل یو څه وخت واخیست.

د ثور له کودتا یو کال وروسته د ۱۳۵۸ لمریز کال په پسرلي کې د روزگان په دهراود ولسوالۍ کې هم جهادي خوځښت شروع شو. د سیمې دیني پوهانو، مخورو او د کمونیزم له خطر څخه آگاه اشخاصو ولس د کمونیستي فتنې له خطراتو خبر کړ او د نوي دهري رژیم په خلاف یې پاڅون ته وهڅاوه. په دهراود ولسوالۍ کې جهادي خوځښت زور واخیست، مجاهدینو به د رژیم په ملاتړو کمونیستانو بریدونه کول، د هغوی مراکز به یې تر بریدونو لاندې نیول او زیانونه به یې وراړول.

د همدې کال د جدي په میاشت کې د کمونیزم ضد جهاد هغه وخت نور هم پراخ او سرتاسري شو کله چې د شوروي اتحاد یرغلگرو ځواکونو په افغانستان پوځي یرغل وکړ او خپل گوډاگی ببرک کارمل یې د واک په گدۍ کیناوه. دا وخت نو افغان ولس په منظم او قاطعانه ډول مقدس جهاد ته متې رابډوهلې او د جهادي عملیاتو د نظم لپاره د جبهو، گروپونو او محاذونو د تشکیل لړۍ پیل شوه.

د ۱۳۵۸ لمریز کال په وروستیو کې په دهراود کې د همدې سیمې د یوه اوسیدونکي مجاهد (قومندان ملا میرحمزه) لخوا جهادي جبهه تاسیس شوه چې مرکز یې د دهراود په میاندو سیمه کې و او اکثره په کې کلیوال طالبان راټول شوي وو. دې جبهې په لومړیو کې له کوم تنظیم سره رسمیت نه درلود. هر مجاهد له ځان سره ټوپک راوړ او

یا یې هم د چنديې او پور په پیسو څو میله وسلې پیدا کړې تر څو د شوروي د ځواکمن پوځ مقابله ورباندې وکړي.

د دې جبهې له تأسیس څو اونۍ وروسته د ملا معاذالله اخند په نوم یو ځوان طالب د جهاد په نیت له جبهې سره وصل شو. ملا معاذ الله د دهراود د شینغولي د کلي اوسیدونکی و، د دوی کلی د ملا محمد عمر مجاهد له کلي (شهر کهنه) سره څنګ په څنګ پروت و. ملا معاذ الله او ملا محمد عمر آخند (چې دغه وخت دواړو د شهرکهنه په مدرسه کې سبقونه ویل) سره همځولي وو. دوی د کوچنیوالي له وخته لا سره ملګري وو او څو کاله په کتابونو کې سره همدرسه پاته شوي وو. د همدې صمیمانه ملګرتیا له مخې څو اونۍ وروسته ملا معاذ الله خپل ملګری ملا محمد عمر مجاهد چې دا وخت اتلس کلن ځوان و هم له ځان سره جهادي جبهې ته راووست. په دې ډول ملا محمد عمر مجاهد چې تردې وخته د یوې کلیوالې مدرسې طالب و د جهادي سنګر مجاهد شو. همدا د نوموړي د جهادي ژوند سرآغاز و چې بیا د عمر تر پایه د یوه فعال او نه ماتیدونکي مجاهد په حیث د اعلاء کلمة الله او د کفر او فساد د تکولو مبارزې(جهاد) ته ژمن پاته شو.

## د جهادي ژوند لومړني کلونه او تېې کیدل

ملا محمد عمر مجاهد په دهراود کې د طالبانو په جبهه کې شامل شو. هغه وخت مجاهدین د وسلو او امکاناتو له اړخه له ډیرو مشکلاتو سره مخامخ وو. ددوی جبهې یوازې یو میل اتوماتیکه وسله (کلاشینکوف) درلود چې هغه د جبهې له مشر سره و، نور نو د دوی د جهادي ابزار له ښکاري ټوپک،ګلتې او نورو یو ټکه وسلو څخه عبارت وو. دوی به جهادي عملیات د ولسوالۍ په مرکز کول چې په شاوخوا یې د کمونیست رژیم پوځي تاسیسات او امنیتي پوستې را ګرځیدلې وې. وروسته چې داخلي کمونیستانو او شوروي یرغلګرو په اطرافي سیمو او ولسوالیو باندې پوځي یرغلونه پیل کړل او د مجاهدینو د خپلو لپاره یې قواوې را ایستلې د دهراود مجاهدینو به د روزګان د مرکز لخوا د راغلې لارې په اوږدو کې د کوتل مورچې په غرنۍ سیمه کې د دښمن قواوو ته کمینونه نیول او بیا به یې ورباندې ناڅاپي بریدونه کول.

کوتل مورچه سيمه چې د روزګان د مرکز او دهراود ولسوالۍ تر منځ د الحاق نقطه ده د غرني جوړښت، شېلو، کمرونو او پټن ځایونو د درلودو له امله د مجاهدینو لپاره مناسب کمین ځای و. ملا محمد عمر مجاهد په دې سیمه کې د شورویانو او داخلي کمونیستانو په وړاندې په ډیرو مخامخ جګړو کې شرکت وکړ او په جهادي بهیر کې لومړی ځل ټپي هم هغه وخت شو کله چې د کوتل مورچې په سیمه کې له یوې سختې جګړې وروسته یې د شوروي یرغلګرو د هاوان مرمۍ له خوا سره ولګېده.

ملا محمد عمر مجاهد چې د ځواکمن بدني جوړښت او په جګړو کې د استقامت او ثبات له امله یې ډېر ژر د خپلو ملګرو تر منځ د یوه مخکښ مجاهد نوم خپل کړ، په دهراود ولسوالۍ کې یې په ټولو جهادي بریدونو کې ګډون کاوه. دهراود ولسوالۍ ته په کال کې دوه یا درې ځله د داخلي او خارجي دښمنانو قواوې راتلې چې خپلو محاصره عسکرو ته به یې اکمالات کول او یا به یې هم په کلیوالو ساحو کې د مجاهدینو د ځپلو پلان درلود، ملا محمد عمر مجاهد له دې قواوو سره د جګړو همیشنی او مخکښ برخوال و.

د ۱۳٦۱ لمریز کال په وروستیو کې د دهراود مجاهدینو د ولسوالۍ په مرکز د پریکنده عملیاتو فیصله وکړه. د دهراود ولسوالۍ مرکز په روزګان کې د رژیم یو له مهمو مراکزو ګڼل کیده، دلته په ملکي اداري سربیره ددښمن لوی تعداد پوځي قوت هم پروت و. د ولسوالۍ په شاوخوا د امنیتي پوستو کمربند راګرځیدلی و چې د مجاهدینو د بریدونو په مخکې لوی خنډ و. د دهراود مجاهدینو د ولسوالۍ د فتحې په هدف د لویو عملیاتو لپاره له ګاونډي ولایت هلمند څخه هم مرسته وغوښته چې د هلمند ستر مجاهد ملا محمد نسیم اخندزاده ورته لسګونه مجاهدین د کومک لپاره راولیږل. په ولسوالۍ له برید وړاندې مجاهدینو پوځي تشکیلات او تقسیمات وکړل. دا وخت چې د ملا محمد عمر مجاهد د جبهې قومندان ملا میرحمزه کندهار ته تللی و د جګړې په مهال د دوی د ملګرو مشري ملا محمد عمر مجاهد ته وسپارل شوه، د عملیاتي اړخونو د تقسیم په مهال ملامحمد عمر مجاهد او ملګرو ته یې د ولسوالۍ شمال اړخ ته د دښمن یوه پخه مورچه په نښه شوه چې د مجاهدینو تر منځ یې په (سره خزه)

شهرت درلود. د دښمن دغه مورچه په یوه غونډۍ پرته وه او پرې ورختل له خطر څخه خالي نه و.

د عملیاتو له پیل سره ملامحمد عمر مجاهد او ملګرو یې هم په دښمن عملیات پیل کړل، دوی د مسلسل پرمختګ په مټ وتوانیدل چې دښمن شاتګ ته اړ کړي، ملا محمد عمر مجاهد او ملګري یې ملا عبدالقیوم له خزې څخه د دښمن د تیښتې په تعقیب یاد مورچل ته وروختل خو نور پرمختګ یې ځکه ونکړای شو چې د دښمن په متقابلو ډزو دواړه ټپیان شول. ملا محمد عمر مجاهد د دښمن د کلاشینکوف په مرمۍ په ورانه کې ولګېد او له وړاندې تګ څخه پاتې شو. ډاکټر امیر خانجان چې په دهراود کې یې د ټپي مجاهدینو علاج کاوه د ملا محمد عمر مجاهد زخم یې پانسمان کړ، د ملا محمد عمر مجاهد زخم که څه هم ژور و خو د پښې هډوکي ته یې زیان نه و رسیدلی نوموړی بیا کندهار ته د تلو تر وخته د دې زخم له امله نګوښېده تر دې چې د وخت په تیریدو یو مخ جوړ شو.

د دهراود جبهه چې ملا محمد عمر مجاهد په کې جهاد کاوه د درې کلونو په تیریدو لا هم له کوم تنظیم سره رسمي نه وه، کندهار ته د ملا محمد عمر مجاهد له تګ وروسته یاده جبهه د مولوي محمد نبي محمدي له تنظیم (حرکت انقلاب اسلامي) سره ثبت شوه او د (جبهه طلباء) په نوم یې رسمیت پیدا کړ.

دا مهال اګر که په روزګان کې هم جهادي عملیات روان وو، خو د کمیت او کیفیت له اړخه د څنګلوري کندهار ولایت جهادي ډګر ډېر فعال و. که د روزګان په دهراود کې له شورویانو سره مخامخ جنګونه په کال کې یوازې څو ځله پیښېدل په کندهار کې بیا له شورویانو سره مخامخ جنګ د ورځې او اونۍ خبره وه. مجاهدینو په لویه لاره د شورویانو کتارونه په نښه کول او هره ورځ به یې درانه تلفات ور اړول.د دهراود یو شمیر مجاهدینو چې په خپله سیمه کې یې په جهادي عملیاتو تنده نه خړوبېده د جهاد په نیت یې کندهار ته مخه کړه. ملا نیک محمد، ملا فداګل، ملا شاولي، ملا برادر آخند او نور د دهراود هغه طالبان وو چې له وړاندې یې د کندهار تودو جهادي سنګرونو ته ځانونه رسولي وو. په ۱۳۶۱ لمریز کال کې د ملا محمد عمر مجاهد تر

ټول نږدې ملګري ملا معاذ الله هم کندهار ته لاړ چې وروسته ملامحمد عمر مجاهد هم د دهراود په ځای کندهار د جهادي سنګر په حیث غوره کړ.

## کندهار ته راتګ

### د فیض الله آخندزاده جبهه

د شوروي یرغلګرو له راتګ سره د نور افغانستان په شان په جنوبي ولایاتو کې جهاد یوه نوي پړاو ته داخل شوی و. کندهار چې شورویانو په کې د افغانستان د جنوب په سطحه تر ټولو ستره اډه درلوده او یو له کلیدي سیمو شمیرل کیده د جهاد په یوه مهم او ټاکونکي ډګر بدل شوی و.

په کندهار ولایت کې د کمونیستي کودتا په تعقیب جهادي تحرکات پیل شوي وو، دغه تحرکات لومړی په ختیځو ولسوالیو معروف او ارغسان کې شروع شول، مګر وروسته مجاهدین کرار کرار د ښار مضافاتو او ورنږدې ولسوالیو لکه ډنډ، پنجوایي، ارغنداب او میوند ته هم ورښکته شول.

د ۱۳۵۹ هجري شمسي کال اوړی چې روسانو په افغانستان کې لومړنی جنګي فصل تجربه کاوه په کندهار کې هم د خونړیو جګړو کال و، د مجاهدینو متحد شویو تنظیمونو هڅه کوله چې په دې ولایت کې د جهادي جبهاتو شمیر زیات کړي تر څو د شورویانو په وړاندې د مقاومت توازن برابر او د یرغلګرو تر پښو لاندې ځمکه سره کړي.

د مولوي محمد نبي محمدي په مشرۍ حرکت انقلاب اسلامي تنظیم چې زیاتره منسوبین یې دیني علماء او طالبان وو د نور افغانستان په څیر یې د جنوب زون په سطحه هم پیاوړی جهادي رول درلود. د جنوب زون په سطحه د دې تنظیم یو وتلی جهادي مشر امیر ملا موسی کلیم د ۱۳۵۹ لمریز کال د اسد د میاشتې په ۲۰ مه نیټه شهید شو. د نوموړي له شهادت لږ موده وړاندې د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم په تشکیلاتو کې دکندهار لپاره یوه نوې جبهه پرانیستل شوه، چې مشر یې فیض الله اخند

زاده او لومړنی نظامي قومندان یې عبدالکریم حیدري و. ملا عبدالغني آخند (چې وروسته په ملا برادر اخند مشهور او د اسلامي امارت د مرستیالۍ تر مقامه ورسید) د دې جبهې له لومړنیو تأسیسي افرادو څخه و.

دغې جبهې خپل لومړنی جهادي فعالیت په داسې وضعیت کې د کندهار ښار ته نږدې د محله جات په سیمه کې پیل کړ چې لا هم په دې سیمه کې مجاهدینو علني حضور نه درلود، بلکې چریکي فعالیت یې کاوه. په لومړي کال د دې جبهې مهم او د یاد وړ عملیات د پنجوایي په ولسوالۍ برید و چې د نورو جبهو له مجاهدینو سره په ګډه د عبدالکریم حیدري په مشرۍ تر سره شول.

د ۱۳۶۰ لمریز کال په پسرلي کې د جبهې نظامي قومندان عبدالکریم حیدري له دې جبهې جلا شو چې په ځای یې د جبهې د مشر فیض الله اخندزاده یو قریب خان عبدالحکیم د جبهې نظامي قومندان وټاکل شو. نوموړی که څه هم په رسمیاتو کې د جبهې نظامي قومندان و خو د جګړو په مهال عملا د مشرۍ او قومندانۍ چارې هغو بااستعداده مجاهدینو پر مخ وړلې چې په جنګي امورو کې یې ښه تجربه درلوده. په همدې کال د جبهې مرکزیت هم له محله جات څخه د میوند ولسوالۍ (سنګ حصار)[1] سیمې ته انتقال شو.

روسان چې د افغانستان په شمال او مرکزي سیمو کې د مجاهدینو پرلپسې بریدونو وربانده‌ې د اکمالاتو لنډه لار (مزار ـ کابل) تړلې وه او له کابل څخه د افغانستان جنوب ته اکمالاتي کتارونه یې هم پرلپسې د مجاهدینو تر بریدونو لاندې راتلل، دا یې غوره وبلله چې د افغانستان جنوب ته د اکمالاتو لپاره نسبتا اوږده خو پرأمنه لار ومومي.

---

(۱) سنګ حصار یا سنګیسار د کندهار ښار لویدیځ ته یوه ګڼ میشته سیمه ده. دا سیمه پخوا د میوند ولسوالۍ مربوط وه، په وروستیو کلونو کې د میوند او پنجوایي له ځینو مربوطاتو ژړۍ ولسوالي رامنځته شوه، سنګ حصار اوس د ژړۍ ولسوالۍ اړوند ګڼل کیږي.

له ترکمنستان څخه هرات او بیا کندهار ته غځېدلي لار که څه هم اوږده ده خو ډېره برخه یې له دښتو او ریگزارو تیرېږي چې مجاهدینو پرې د کمین نیولو لپاره ډېر مواقع نه درلودل. په ۱۳٦۰ لمریز کال کې له هرات څخه د کندهار په خوا د روسانو اکمالاتي او پوځي کتارونه را پیل شول چې ورسره په کندهار کې د جهادي عملیاتو څرنگوالی هم له بنسټه تغیر شو. څکه پخوا په کندهار کې جهادي عملیات په ښار او ولسوالیو کې په ثابتو اهدافو بریدونو او چریکي حملو کې خلاصه کیدل. خو د شوروي کتارونو له پیل سره په کتارونو د بریدونو، کمینونو او له شوروپانو سره د مخامخ جگړو مرحله پیل شوه.

په همدې کال د فیض الله اخندزاده جبهې ته له روزگان څخه یو مجاهد راغی چې وروسته یې د خپل اغیزناک جهادي کردار له امله د جبهې د نارسمي نظامي مشر په حیث شهرت وموند. دا مجاهد ملا نیک محمد نومیده، د روزگان د چارچینو ولسوالی د خوني د کلي اوسیدونکی و چې د ملا برادر اخند په شناخت له دې جبهې سره یوځای شوی و.

ملا نیک محمد د خپل مبتکرانه جهادي کردار په مټ دغه جبهه یو نوي عملیاتي پړاو ته داخله کړه، نوموړي د نورو جبهاتو د مجاهدینو په ملتیا د کندهار ـــ هرات لارې په اوږدو کې د کندهار ښار او میوند ولسوالی تر منځ سیمه کې د شوروي اکمالاتي موټرو او پوځي کتارونو د له منځه وړلو په موخه د پریکنده جگړو او کمینونو یوه داسې لړۍ پیل کړه چې وروسته یې د شورویانو د یو مخیزې تیښتې تر کلونو دوام وکړ او په نتیجه کې یې شورویانو ته خورا درانه زیانونه ورسیدل. په دې جهادي پړاو کې مجاهدینو له ډول ډول تاکتیکونو په استفاده د لویې لارې په امتداد کې په پنجاو، نظرجان باغ، اشوغو، پاشمول، سنگ حصار او نورو ځایونو کې په شوروي لښکرو بریدونه کول، د هغوی ټانگونه، پوځي او اکمالاتي موټر یې له منځه وړل. ترڅو چې شورویان مجبور شول په دې لاره د تیریدو لپاره هم داسې امنیتي تدابیر وسنجوي لکه د هیواد په ځینو نورو مهمو لارو کې چې ورته اړ شوي وو.

د هغه وخت د یوه مجاهد په وینا چې په دې لاره د مجاهدینو بریدونو کمونیست چارواکي او شوروي ملاتړي یې دومره اندیښمن کړي وو چې ډېر ځله خو به یې له هراته د کتار له را روانولو مخکې د لارې له عامو مسافرو او موټر چلوونکو څخه پوښتنه کوله چې ملا نیک محمد په سپین مسجد و او که نه و.[1]

د مجاهدینو پرلپسې بریدونو او د شورویانو تلفاتو بالاخره شورویان په دې مجبور کړل چې د کتار له تیرولو مخکې د کندهار لخوا د زرهي ټانگونو امنیتي قوه دغې سیمې ته راولي تر څو د لارې امنیت ونیسي. خو مجاهدینو به په همدې امنیتي ټانگونو هم سخت بریدونه کول او په دې توگه به که څه هم اکمالاتي کتار تر یوه حده محفوظ شو خو د کمونیستي ځواکونو د تلفاتو کچه نه کمیدله.

ملا نیک محمد څه کم درې کاله له ۱۳۶۰ نه تر ۱۳۶۲ پورې د سنگ حصار په سیمه کې له شورویانو سره مخامخ جگړې وکړې، نوموړي نه یوازې د کمونیست دښمن په وړاندې د اغیزناک مقاومت او پریکنده جگړو بنسټ کیښود بلکې له ځان سره یې په خونړیو جگړو کې تکړه ملگري لکه ملا لعل محمد، ملا عبدالغني برادر، ملا معاذالله او نور هم وروزل چې له ده وروسته هر یوه په جهاد کې ستره ونډه ترسره کړه.

د ۱۳۶۲ لمریز کال ژمی د سختو جگړه شاهد و، په همدې ژمي نه یوازې ملا نیک محمد شهید شو بلکې د دوی جبهې تر ۳۵ زیات تکړه مجاهدین له لاسه ورکړل. د ملا نیک محمد له شهادت وروسته بل هغه مخکښ جهادي مشر چې سترگې وراوښتې ملا لعل محمد و چې زیاتره وخت یې دکندهار ښار ته نږدې د پنجاو په سیمه کې ددښمن په قواوو بریدونه کول او د جبهې یو له وتلیو سرگروپانو څخه و.

ملا لعل محمد د کندهار د شاولیکوټ ولسوالۍ اوسیدونکی و، چې د شهید ملا نیک محمد په څیر یو له باتجربه او پُرکاره مجاهدینو گڼل کیده. د ملا لعل محمد د گروپ د

---

(۱) سپین مسجد د هرات او کندهار پر لویه لار د سنگ حصار په حدودو کې د یو ځای نوم دی چې د مجاهدینو مهمه کمین گاه وه او د شورویانو ډېر اکمالاتي کتارونه په کې وسوځیدل.

مجاهدینو له جملې یو هم ملا معاذ الله د ملا محمد عمر مجاهد د ماشومتوب او مدرسې ملګری و چې د روزګان له دهراود څخه دلته جهاد ته راغلی و. په ۱۳۶۲ لمریز کال کې هغه مهال چې ملا محمد عمر مجاهد په روزګان کی زخمی شوي و، د علاج لپاره د پاکستان کوټې ته ځي. دغه وخت تصادفا همدا ملا معاذ الله هم زخمي شوی او کوټې ته د علاج لپاره وړل شوی دی. وروسته د دوی د جبهې ملګری ملا لعل محمد د تنظیم له مشرانو سره د لیدو او تېپیانو د پوښتنې لپاره کوټې ته ځي. چې هلته ملا معاذ الله او ورسره ملګری یې ملا محمد عمر دواړه ویني. د همدې ملاقات په مهال ملا معاذالله ورته ملا محمد عمر معرفي کوي چې تکړه مجاهد دی او په ځانګړي ډول د آر پي جي راکټ په ویشتلو کې ښه مهارت لري.

ملا لعل محمد ملا محمد عمر مجاهد ته وایي چې زموږ په سیمه همیشه د شورویانو کتارونه تیریږي. ډېر تکړي ملګري مو شهیدان شول او د راکټ مسلکي ته ضرورت لرو. که تاسو زموږ جبهې ته راشئ کیدای شي دلته ډېر خدمت وکړای شئ.

ملا محمد عمر مجاهد له ملا لعل محمد سره ژمنه وکړه چې وطن ته له ستنیدو وروسته فقط یو وار کور ته ځم او بیا ستاسو جبهې ته درځم. په حقیقت کې همدا ژمنه د هغه ستر پاڅون او تاریخي آغاز پیلامه شوه چې د دهراود زخمي طالب ملا محمد عمر مجاهد یې نړی ته د امیرالمؤمنین په حیث وروپیژاند. د همدې ژمنې په بنسټ ملا محمد عمر د روزګان دهراود ولسوالي پریښوده او د کندهار د میوند په سنګ حصار کې میشت شو، همدلته یې جهاد وکړ،همدلته د مسجد امام او د مدرسې طالب شو او له همدې ځایه یې د شر او فساد د محو کولو او اسلامي امارت د تأسیس مبارزه پیل کړه.

**کندهار ته تګ**

ملا محمد عمر مجاهد له معالجې وروسته د روزګان په دهراود کې خپل کور ته ستون شو. په کور کې یې په شمار څو شپې تیرې کړې او بیا په داسې حال کې چې د زخمیتوب له امله په پښه نګوښېده او لا پوره نه و جوړ شوی د خپل ملګري ملا معاذالله سره یو ځای د کندهار په خوا روان شو. مخکې له دې چې دوی کندهار ته ورسیږي

ملا لعل محمد سرپوزي ته نږدې د دښمن په ذخیره د حملې پر مهال د مقابل لوري په درنه مرمۍ ولګېد او ځای په ځای په شهادت ورسید.

ملا محمد عمر مجاهد چې د نوموړي له تدفین یوه ورځ وروسته راورسید، خپله ژمنه یې پوره کړه خو د ملا لعل محمد ملګرتیا یې نصیب نه شوه. په همدې ورځو کې د سنګ حصار سیمې ته درنه قوه راووته، ملا محمد عمر مجاهد او د ملا لعل محمد پاتې ملګري له پنجاو سیمې څخه سنګ حصار ته نقل شول او همالته یې د جبهې له نورو ملګرو سره په ګډه د کمونیستانو د درنې قوې په وړاندې جګړه پیل کړه.

شورویانو چې د مجاهدینو پرلپسې بریدونو ډېر په تنګ کړي وو او د کتارونو د امنیت لپاره یې امنیتي قواوو هم ډېره نتیجه ورنکړه نو یې پریکړه وکړه د لویې لارې په امتداد کې دایمي پوستې جوړې کړي تر څو د مجاهدینو د حملو مخه ونیسي. د همدې لپاره شوروي پوځیانو او داخلي ملګرو یې سیمې ته لوی قوت راویوست تر څو سیمه له مجاهدینو تخلیه او امنیتي پوستې په کې جوړې کړي. شوروي عسکرو نه یوازې د لارې په امتداد کې ګڼې پوستې جوړې کړې بلکې د لارې له څنګ سره ځینې دیوالونه یې هم ونړول او ویالې یې ډکې کړې تر څو مجاهدین ترې د کمین په مهال د ځان پټولو لپاره استفاده ونکړي. په داسې حال کې چې د مجاهدینو بریدونه وربانده روان وو شوروي عسکرو محکمې پوستې جوړې کړې او په ځینو سیمو کې یې د پرسونل ضد ماینونو کمربندونه هم پرې راوګرځول تر څو په پوستو د مجاهدینو د ورختلو مخه ډب کړي.

مجاهدینو د شورویانو د دې تاکتیک په مقابل کې د بالمثل تاکتیک نه استفاده وکړه. د بیلابیلو جبهو مجاهدینو په ګډه د دښمن د هرې پوستې په مقابلې کې داسې د خاړ مورچلې او پوستې جوړې کړې چې هره شیبه یې په پوستو کې ددښمن حرکات څارل او ددښمن عسکر یې د ښکاره کیدلو او له پوستو د راوتلو په وخت تر برید لاندې نیول.

مجاهدینو نه یوازې شورویان او ملګري یې د سپکو وسلو په توسط تر برید لاندې نیول بلکې د هاوان، هشتادودو او نورو درنو وسلو بریدونه یې هم پرې کول. په وروستو

کې مجاهدینو بې اېم ۱۲ دستګاه هم پیدا کړه او پرلپسې یې د شوروېانو مراکز وربانديې ویشتل.

قومندان ملا محمد صادق چې د کندهار یو له مشرانو مجاهدینو څخه دی وایي چې په دې جګړو کې د ملا محمد عمر رول بارز و، د ده په خبره د ملاصاحب تخیلي یا د اندازه ګیرۍ قوه ډېره ښه وه چې هاوان او هره درنه وسله به یې ددښمن مرکز تـه برابره کړه نو هدف یې نه خطاء کیده، د شوروېانو پـه مراکزو او پوستو چې د درنو وسلو مستقیم ګوازرونه ډېر مؤثر نه و، ملا صاحب به ورته هشتادودو په قوس وتاړه او پـه دې توګه به یې د دښمن پوستې په ډېره دقیقه توګه هدف ګرځولې. د بریدونو دا لړۍ نه یوازې د دښمن د تحرکاتو او اکمالاتو په مخکې خنډ وه بلکې په پوستو کې پـه میشتو شوروي او داخلي عسکرو یې هم خوب حرام کړی و.

### د شهید ملا نیک محمد نعم البدل

د اسلام او جهاد تاریخ ثابته کړې چې الله تعالی د خپل دین د ساتلو او پاللو لپاره همیشه رجال او کارنامه ساز میړني پیدا کوي. که د جهاد پـه لاره کې کوم مخکښ او تکړه مجاهد شهید کیږي الله تعالی یې استعداد او برکت نه ضائع کوي بلکې پـه نورو مجاهدینو یې پېرزو کوي. نو ځکه خو د جهاد سنګرونه کله هم په شهادتونو لـه اتلانو نه دي خالي شوي.

وړاندې د شهید ملا نیک محمد یادونـه وشوه چې د کندهار ـ هرات د لارې پـه اوږدوکې یې د روسانو کتارونه سوځول، نوموړی په ۱۳٦۲ لمریز کال کې شهید شو. خو لا یې په شهادت کال نه و اوښتی چې همدې سیمې تـه لـه روزګان څخه دملا محمد عمر مجاهد په نوم د ټانګ ضد وسلې ( آر پي جي راکټ) یو ماهر مجاهد راغی. ملا محمد عمر مجاهد په همدې سیمه او جبهه کې د ملا نیک محمد سنګر پـه داسې ډول وپاله چې وروسته به د جبهې مشر (فیض الله اخندزاده) ویل چې د ملا نیک محمد آخند که څه هم شهرت زیات و خو ملا محمد عمر مجاهد تر هغه پـه جهادي فعالیت کې زیات دی او کم نه دی.

د لويې لارې په اوږدو کې د پوستو جوړولو، ماينونو کرلو او امنيتي کمربند له استحکام سره سره شورويان ونه توانيدل چې د مجاهدينو د بريدونه مخه ډب کړي. مجاهدين د پوستو تر منځ لويې لارې ته وتل او د يرغلګرو په کتارونو او پوځي قواوو به يې بريدونه کول. ملا محمد عمر په دې جګړو کې هغه مجاهد بلل کيده چې د راکټ ګوزار يې خطا نه ځي. د همدې مرحلې يو مجاهد وايي چې په دې جګړو کې په مجاهدينو د دښمن مهمه برتري د ټانګونو او زغروالو وسايطو درلودل و چې د مجاهدينو عادي مرميو وريانديې اغيز نه درلود، خو که په کومه جګړه کې به له موږ سره ملا محمد عمر ملګرى و نو بيا مو له ټانګه ډيره سترګه نه سوزېده.

آر پي جي راکټ د ځواکمنو متيو د خاوند ملا محمد عمرمجاهد د لاس هغه وسله وه چې نوموړي په تخنيکي او نظري ډول نه وه زده کړې، بلکې په عملي تجربه او پرلپسې کارولو يې داسې زده کړې وه چې ډيره نادره به وه چې ګوزار يې له هدف څخه خطاء کيده. د نوموړي د همدې جګړو يو ملګرى ملا عبدالرحمن وايي چې ملا صاحب دغه مهال په ډيرو جګړو کې شرکت وکړ، د شوروي يرغلګرو کتار ته به چې کمين نيول کيده دى به په کې برخوال و، نوموړي بيا بيا ددښمن ټانګونه وويشتل حتى يو ځل داسې وشول چې د ملا صاحب د مرمى رسان محمد فاضل په وينا ملا صاحب د ورسره مرميو په شمير ټانګونه ويشتلي وو چې ځينې يې مکمل سوزيدلي او ځينې يې زيانمن شوي وو.

د روس ضد جهاد په مهال به مجاهدينو دې ته حساب نيو چې فلان مجاهد ډېر ښه راکټچي دى او تراوسه يې دومره ټانګونه ويشتلي دي. خو ملا برادر اخند چې د ملا صاحب نږدې ملګرى پاته شوى وايي ملا صاحب په بيلابيلو جګړو کې دومره روسي ټانګونه ويشتلي و چې له ملګرو يې حساب ګډوډ شوى و.

ملا برادر آخند د يوه داسې جنګ کيسه کوي چې خپله يې له ملا صاحب سره په کې ګډون کړى دى. نوموړى وايي يوه ورځ زه او ملا صاحب له سنګ حصار څخه د

پنجوایي نلغام ته لاړو، هلته د ملا محمد صادق آخند د جبهې مجاهدین اوسیدل. د دوی نظامي مشر ملا عبیدالله آخند[1] و (چې وروسته په اسلامي امارت کې د دفاع وزیر و) غرمه مهال د دوی اطاق ته ورغلو خو چې د ډوډۍ وخت شو، غږ شو چې قوه را روانه ده. ملا صاحب وویل: درځه چې ځو، د شورویانو په کتار د جنګ لپاره بیرته سنګ حصار ته راوګرځیدو. چې اطاق ته راغلو نو ملا صاحب نور ملګري هم تیار کړل، تقریبا ۱۳ کسه ملګري شوو. او ځانونه مو په بیړه د پاخه سړک له بغل سره ویالې ته ورسول او همدلته مو کمین ونیو.

د شورویانو د اکمالاتي کتار په سر کې یو محاربوي ټانګ روان و. ملا صاحب چې په راکټ ویشتلو کې یې خاص مهارت درلود، لومړی یې په همدې ټانګ وار وکړ، محاربوي ټانګ ولګید او له لګیدو وروسته تاو شو او په ساره په سړک ودرید چې لاره یې بنده کړه. په دې سره د کاروان نور موټر هم ودریدل، ځکه په خامه کې له ماینونو ډاریدل. وروسته د کاروان اکمالاتي موټر، خو زري پوښونه او د تیلو ټانګر هم راورسیدل چې مجاهدینو وربانديې سخت برید پیل کړ.

---

(۱) ملا عبیدالله آخند دملا فتح محمد زوی په ۱۳۸۸ هـ ق کال کې د کندهار ولایت د ژړی ولسوالی د نلغام په سیمه کې زیږیدلی و. د کمونیزم ضد جهاد په مهال یې په کندهار کې د ملا محمد صادق آخند په جبهه کې د نظامي قومندان په حیث دنده اجراء کوله. نوموړی د طالبانو د اسلامي تحریک له تأسیسي-افرادو ګڼل کیږي، د پلازمینې کابل له فتحې وروسته د دفاع وزیر وټاکل شو او بیا د امریکایي یرغل تر وخته په همدې وظیفه پاته و. د امریکایانو په خلاف د جهاد له پیل سره نوموړی ملا صاحب د خپل مرستیال په حیث وټاکه، د ۲۰۰۷ میلادي کال د جنوري په میاشت کې د پاکستان په بلوچستان کې د پاکستاني استخباراتو لخوا ونیول شو. ملا عبیدالله آخند څو کاله د پاکستان په کراچۍ کې د پاکستان په مخفي زندان کې بندي وو، په دې موده کې یې د قران کریم حفظ هم وکړ تر دې چې د ۲۰۱۰ م کال د مارچ په پنځمه په زندان کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید او جسد یې د پاکستان په کراچۍ کې خاورو ته وسپارل شو.

په دې جګړه کې زه او د زعفران ماما په نوم بل مجاهد له ملا صاحب سره نږدې و، له ملا صاحب سره د راکټ مرمۍ کمې وې نو ځکه یې کوښښ کاوه چې هغه جنګي وسایط په نښه کړي چې سپکې وسلې پرې تاثیر نلري. د محاربوي ټانګ له ویشتو وروسته ملا صاحب یوه زري پوښ ټانګ وویشت چې اور یې واخیست او مکمل وسوزید.

مجاهدین که څه هم شمیر یې لږ و خو د الله تعالی په مرسته وتوانیدل چې د شورویانو لوی کتار ته درونه زیان واړوي، د شورویانو کتار څو اکمالاتي موټر هم ولګیدل او دودونه یې پورته شول. مجاهدین تر هغو وجنګیدل چې ورسره مرمۍ یې ټولې وویشتې، وروسته کرار کرار شاته شول او د خپل مرکز پر خوا یې عقب نشیني وکړه. تر مازدیګره روسان د خپلو تلفاتو په ټولولو او د کاروان په سمبالولو بوخت و چې له ډیرو موټرو یې لوګي لوړیدل. کله چې روسان لاړل مجاهدین بیا سیمې ته ورغلل. په سیمه کې د روسانو د تلفاتو اثار موجود و، دغه راز مجاهدینو ته یوه اندازه وسلې هم په لاس ورغلې.

ملا عبدالرحمن وايي د دښمن عسکرو د یوې پوستې پر سر شلکا لګولي وه دا چې مرمۍ یې تر ډېر لرې تلې مجاهدین یې ډېر په عذاب کړي وو. مجاهدین د ورځې د پوستې په لوري نه شوای ورتلای او د شپې به د دښمن عسکرو د شلکا میل خلاص کړ تر څو یې مجاهدین هدف ونه ګرځوي. یوه وخت چې د روژې ماښام و ملا صاحب راکټ ورسره واخیست او د دښمن د شلکا د ویشتلو په نیت ووت، پوستې ته نږدې یې سنګر ونیو او په لومړني ټک یې د شلکا ګهواره یا پایې وویشتې او له منځه یې یوړې چې مجاهدین یې د تل لپاره له جنجاله خلاص شول.

له ۱۳۶۳ نه تر ۱۳۶۵ لمریز پورې کلونه د شوروي یرغلګرو د تر ټولو سختو بریدونو او تهاجمي عملیاتو کلونه بلل کیږي. د افغانستان د چارو د یوه لویدیځ څېړونکي او مؤرخ (اولیوه رای) د وینا له مخې په دې موده کې د شورویانو لخوا د جګړې شدت دوه عوامل درلودل. د اندروپوف له مرګ وروسته سره پوځ یو ځل بیا په خلاص مټ د خپلو جنګي ستراتیژیو د مخته وړلو فرصت وموند او د (اوسپنیز سوک) تر عنوان

لاندې پخوانۍ ستراتيژي يې را برسيره کړه. بله دا چې شوروي پوځ فرصت ومونـد چـې د خپل نه پرمختـګ عوامـل ارزيـابي او د (ضـد چريکـي جنـګ) پـه برخـه کـې نـوي ميتودونه اختراع او تجربه کړي. د سختو جګړو له امله خـو همـدا مرحلـه د شـورويانو د درنو تلفاتو کلونه هم وو. ۱۳۶۳ لمريز کال چې د شوروي پوځ د احصـائيو لـه مخـې لـه دوه زره زيات شوروي عسکر په کـې ووژل شـول د اشـغال پـه مرحلـه کـې د سره پـوځ لپاره تر ټولو خونړی کال وبلل شو.

په دې مرحله کې د نور افغانستان په څير په کنـدهار کـې هـم لـه شـورويانو سره سـختې جګړې رواني وې، چې ډېر زور يې د کندهار ښار ته نږدې د محله جات، ژړی، ميونـد، ارغنداب او پنجوايي په سيمو و. څکـه دا سـيمې کـه لـه يـوه اړخـه د کنـدهار ښـار او د روسانو مهمې اکمالاتي لارې ته ورڅيرمه وې، بل اړخ ته يې د ستر او اخفـاء لپـاره ګـڼ باغونه او کښتونه درلودل چې مجاهدينو په کې ښه مقاومت کولای شوای.

ملا محمد عمر مجاهد له شورويانو سره د سختو جګړو په همدې کلونو کې ټولـه مـوده په همدې جهادي سيمه کې و، نوموړی يو ځـل د خپـل ملګـري مـلا معـاذ الله او خپـل مرمی رسان ملا احمد الله مطيع ( چـې اوس پـه مولـوي نـاني صـاحب شـهرت لـري) د پوښتنې لپاره (چې زخميان شوي او په روغتون کې بستر وو) د پاکسـتان چمـن ښـار تـه لاړ خو شل ورځې بعد بيرته جبهې ته را وګرځېد.

### د سترګې شهادت

د فيض الله اخندزاده د جبهې مرکزي قرارګاه او ډيپو (چې د هغه مهال مجاهـدينو ورتـه کمپ وايه)د ميوند په ګرماوک سيمه کې و، خو د مجاهدينو اصلي جهادي سيمه يـې د ميوند د سنګ حصار سيمه وه، همدلته دوی څو اطاقونه يا ميشت ځايونه درلـودل چـې له ۲۰۰ تر ۲۵۰ پورې مجاهدين په کې اوسيدل. ځينـې مجاهـدين د کيشـانو د کـلي پـه مسجد کې اوسيدل، ملامحمد عمر مجاهد هم د همدې مجاهـدينو لـه جملـې څخـه و. همدا مسجد چې د شوروي ضد جهاد پـه مهـال د نومـوړي د اوسـيدو ځـای و وروسـته نوموړي په کې د څو اطاقونو په اضافه کولو مدرسه جوړه کـړه تـر دې چـې د طالبـانو د اسلامي تحريک قيام يې هم له همدې مسجد نه پيل کړ.

د ۱۳٦۵ لمریز کال په ژمي کې شورویانو او داخلي کمونیستانو د سنګ حصار سیمې ته لویه قوه را وایسته، قوه چې ګڼ ټانګونه هم په کې وه د ژړۍ په دښت ودرېده او کلي یې د درنو وسلو تر بریدونو لاندې ونیول. مجاهدین چې سپکو وسلو یې په دښمن اغیز نه درلود د توغندیو په ورتوغولو یې قوې ته ځواب وایه.

ملا محمد عمر مجاهد له خپلو ملګرو سره د باغونو په ساحه کې شوروي یرغلګرو ته په کمین کې و چې کله پیاده عسکر را مارش کړي دوی به ورسره جګړه وکړي. د جګړې په دوهمه ورځ شورویانو په کلي درانه بریدونه پیل کړل او ورسره یې کرار کرار د کلیو په خوا حرکت هم وکړ، یوه ډله پیاده شورویان د کلیو له څېلو وروسته په سیمه ورګډ شول خو ناڅاپه د مجاهدینو تر سخت برید لاندې راغلل.

په دې جګړه کې ملا محمد عمر مجاهد او ملګرو یې شوروي پیاده سرتیرو ته د سر درونه زیان واړاوو او ځینې وسلې او نور غنائم یې هم له دښمن څخه ونیول. شورویانو له تلفاتو لیدلو وروسته له سیمې شاتګ وکړ خو څو شیبې لا نه وې تیرې چې روسي جنګي الوتکې په فضاء کې ښکاره شوې او په کلیو یې درنه بمباري پیل کړه.

ملا محمد عمر مجاهد له جګړې وروسته خپل میشت ځای(د کیشانو د کلي مسجد) ته راستون شو. په داسې حال کې چې په هوا کې روسي الوتکې ګرځېدې او بمونه یې غورځول نوموړی په مسجد کې د یوې ستنې تر شا ولاړ او په ښۍ سترګه یې د بمبار ننداره کوله. همدا وخت مسجد ته نږدې یو دروند بم وغورځید او پرچې یې لور په لور والوتې، د بم یوه پرچه د ده په هغه سترګه برابره شوه چې د ستنې له اړخ نه را ښکاره وه او ده ورباندې سیمې څارله.

له لګیدو وروسته، په داسې حال کې چې ښۍ سترګه یې یو مخ له منځه تللې وه او د سترګې په ځای کې یې اوسپنیزه پرچه بنده وه، نوموړي د سخت درد په زغملو په خپل لاس له سترګې پرخچه را وایسته. وروسته نور مجاهدین دده مرستې ته راغلل، د سترګې یې معمولي پانسمان وشو خو زخم یې په سمه توګه صفا او معالجه نه شو. په دې ورځو کې چې پرلپسې جنګونه روان وو نوموړی تر یوې میاشتې پورې په همدې زخمي

حالت کې همدلته پاته و. په زخمي حالت کې که څه هم د وسلې د چلولو نه و خو نور جهادي خدمتونه يې کول او حتی له مجاهدينو سره کله ناکله عملياتو ته هم تلو.

د روس ضد جهاد په وخت کې څرنګه چې جهادي سنګرونو ته ډېرې وسلې له جنوبي اوختيځو سرحداتو رسيدلې، شورويان يې دې نتيجې ته ورسول چې که د مجاهدينو دغه اکمالاتي لارې بندې نه کړي، جګړه نه شي ګټلی. شوروي پوځ د داخلي استخباراتو (خاد) په مرسته له پاکستان سره د ۲۴۳۰ کيلومتره اوږدې کرښې په اوږدو کې د مجاهدينو په اکمالاتي لارو څار زيات کړ او پرلپسې يې د مجاهدينو اکمالاتي کاروانونو ته کمينونه نيول او حملې يې پرې کولې. په ۱۳۶۵ لمريز کال کې د مجاهدينو لاس ته د ستينګر ميزايلو رسيدو د دې مسئلې حساسيت نور هم زيات کړ او شوروي يرغلګرو د داخلي کمونيستانو په ملاتړ د مجاهدينو په اکمالاتي لارو بريدونه زيات کړل، تر دې چې د احصائيو له مخې شورويان وتوانيدل چې مجاهدينو ته د راتلونکو وسلو دريمه برخه په نيمه لار کې ولجه يا له منځه يوسي.

جهادي تنظيمونو د خپلو اکمالاتي کاروانونو د امنيت لپاره داسې ترتيب جوړ کړ چې جهادي جبهات به په نوبت سره د اکمالاتي لارو امنيت نيسي او په ټاکلي موده کې به يې همدا اصلي جهادي دنده وي. د ملا محمد عمر مجاهد له زخميتوب يوه مياشت وروسته د دوی جبهې ته د کندهار په سرحدي سيمه کې د شنه نري او ارغسان څه د راتيرې اکمالاتي لارې د امنيت ساتلو نوبت ورسيد. د دوی د جبهې مجاهدينو چې په دې سفر کې يې مشري د ملا محمد عمر مجاهد نږدې ملګري ملا معاذ الله کوله له ميوند څخه د ارغسان ولسوالی سرحدي سيمو ته د تګ اراده وکړه. له همدې فرصت نه به استفاده يې ملا محمد عمر مجاهد او يو بل ته زخمي مجاهد هم له ځان سره واخيستل تر څو يې پاکستان ته د اساسي علاج لپاره وليږي.

د ژمي په سخت يخ کې دوی ارغنداب ته واوښتل او له هغه ځايه يې د ارغسان په خوا سفر پيل کړ، په نيمه لا ريې د ترنک رود په ژورو اوبو کې موټر بند شو. ملا معاذ الله او څو نور ملګري د تراکتور په پيدا کولو پسې لاړل. او نور مجاهدين وتوانيدل چې همدا د زخميانو انتقالوونکی موټر له رود تير کړي. ملا محمد عمر مجاهد د علاج لپاره

چمن او له هغه ځایه کوټې ته لاړ خو همدا یې له خپل پخواني ملګري ملا معاذ الله اخند سره وروستي لیدل شول. ځکه ملا معاذ الله اخند د همدې جهادي مسؤلیت په مهال چې د مجاهدینو د لارې امنیت یې ساته د شوروي کوماندویانو له کمین سره مخامخ او له څو تنو ملګرو سره په شهادت ورسید چې جسد یې د ارغسان ولسوالی په شناختې کلي کې دفن شو.

د ملا محمد عمر مجاهد د سترګې عملیات د بلوچستان په کوټه کې په هغه روغتون کې ترسره شول چې د زخمي مجاهدینو معالجه یې کوله. له عملیاتو شپږ ورځې وروسته له روغتونه رخصت شو، د روغتون لخوا ملا صاحب ته مصنوعي سترګه هم ورکړل شوه تر څو د ښې سترګې په تشه زیرمه کې یې کیږدي خو نوموړي دغه مصنوعي سترګه چې له ظاهري ښایست پرته یې بله ګټه نه درلوده هیڅکله په سترګه نکړه.

### د شوروي یرغلګرو له تیښتې وروسته

د ۱۳۶۵ لمریز کال په اوړي کې د شوروي اتحاد مشر میخایل ګورباچوف له افغانستانه د خپلو عسکرو د ایستلو پریکړه اعلان کړه او ویې ویل چې د همدې کال تر پایه به د شوروي پوځ شپږ غنډونه له افغانستانه ووځي. د ګورباچوف له اعلان دوه میاشتې وړاندې پر کابل د واکمن کمونیست رژیم په رهبري کې هم ژور تغیرات راغلي و، د خلق دموکراتیک ګوند د خپل اتلسم پلینوم په غونډه کې د واکمن رژیم د استخباراتو (خاد) مشر ډاکټر نجیب الله د ببرک کارمل په ځای د ګوند د عمومي منشي په حیث وټاکه. د شوروي پوځ د وتلو پیل او د کمونیست رژیم په رهبرۍ کې تغیر د جګړې په وضعیت باندې ژور اغیز وکړ. د جګړې له ډګره د شورویانو په شاته کیدلو سره کمونیست رژیم تهاجمي موقف له لاسه ورکړ او په دې یې کار پیل کړ چې څرنګه د لویو ښارونو او مهمو سیمو دفاع پیاوړې کړي. د ډاکټر نجیب د سیاست دوه نور مهم عناصر د رژیم د دفاع لپاره د ملیشه ځواکونو رامنځته کول او د ده په تعبیر د ملي مصالحې د سیاست اعلانول و.

د درست افغانستان غونډې دې ژورو تغیراتو د کندهار ولایت په نظامي وضعیت هم اغیز وکړ، په کندهار کې د عصمت او جبار ملیشو رول تر پخوا پیاوړی شو. کمونیست رژیم چې د پخوا غونډې د عملیاتو او بریدونو توان یې بایللی و د ځان د دفاع لپاره یې په کندهار ښار او مهمو ولسوالیو امنیتي کمربندونه را وګرځول.

ملا محمد عمر مجاهد د سترګې له معالجې وروسته خپل کور روزګان ته لاړ او بیا په کندهار کې خپلې جهادي جبهې ته ستون شو. څه موده بعد بیا خپل کورروزګان ته لاړ، په همدې مرحله کې یې واده وکړ او کله چې په ۱۳٦٦ لمریز کال کې بیرته کندهار ته راغی نو دلته د پخوا په نسبت جهادي وضعیت بدل شوی و. اوس د مجاهدینو په وړاندې اهداف د دښمن هغه کمربندونه او پوستې وې چې په خپلو مراکزو یې راګرځولي وو. د دوی په جهادي سیمه کې یو د محله جات په ساحه کې هغه کمربند و چې د کندهار ښار د دفاع لپاره کمونیست رژیم جوړ کړی و او بل هم د میوند ولسوالی د دفاع لپاره د کشک نخود پوستې او کمربند وو چې سیمیزو مجاهدینو به وړاندې تعرضي عملیات کول.

په دې مرحله کې د دوی مرکزیت په سنګ حصار سیمه کې وو خو د تعرضي عملیاتو لپاره به په نوبت سره کله د کندهار ښار کمربند او کله هم د کشک نخود اړخ ته تلل. حتی کله خو یې د هلمند ګرشک او نهر سراج ته هم له نورو مجاهدینو سره ملګري لیږل تر څو په جهادي عملیاتوکې ګډون وکړي.

د پخوانیو جګړو په نسبت په دې مرحله کې که څه هم مجاهدین په تعرضي دریځ کې وو مګر بیا یې هم تلفات درلودل او د دښمن په پوستو ورختل اسانه نه و. ځکه د رژیم عسکرو په ډیری سیمو کې د مجاهدینو د مخنیوي لپاره ماینونه کرلي وو چې د مجاهدینو د پرمختګ په وړاندې لوی خنډ و. ملا محمد عمر مجاهد په دې مرحله کې هم ډېر وخت په خپله جبهه کې و او په نوبتي شکل یې په عملیاتو کې برخه اخیسته. نوموړي د دې لپاره چې خپلو جهادي وظائفو ته ښه رسیدګي وکړای شي وروسته یې خپل کور هم دې سیمې ته راانتقال کړ او په سنګ حصار کې میشت شو.

د کندهار ښار د کمربند په جګړو کې د ملا صاحب رول د پخوا په شان بارز و، د ملا غازي په وینا یو ځل کمونیستي عسکرو د کندهار ښار ته نږدې د میربازار په ساحه کې د مجاهدینو د ځپلو په نیت قوه را وایسته، چې تر مخ یې ټانګونه او وروسې ګڼ پیاده عسکر او نظامي وسایط را روان وو په دې جګړه کې د قوې د سر دوه ټانګونه د ملا محمد عمر مجاهد لخوا وویشتل شول چې په همدې سره په دښمن وارخطایي ګډه شوه او قوه یې بیرته په شا وګرځېده.

**د مستقلې جبهې د مشر په توګه**

په ۱۳۶۹ لمریز کال کې د ډاکټر نجیب د ده په اصطلاح د ملي مصالحې پروسه د هر وخت په نسبت په زور کې وه. د مجاهدینو د بریدونو په وړاندې مقاومت او د جلال اباد په جنګ کې د رژیم بریا د حکومت په ځان باور زیات کړی و. بل اړخ ته د شورویانو له وتلو وروسته په مجاهدینو بهرنۍ مرستې قطع شوې وې او د مجاهدینو خپلمنځي اختلافات په اوج کې و. په همدې مرحله کې د مجاهدینو په جبهاتو کې د مایوسۍ فضاخپره وه او حتی ځینو کم عزمه خلکو خو له تش په نامه حکومتي اړخ سره د معاملې او پټو اړیکو هڅه هم کوله. ملا محمد عمر مجاهد او څو تنه ملګري یې چې تقریبا ټول د دیني علومو طالبان او د جبهې په سطحه تکړه مجاهدین بلل کیدل په دې دلیل له خپلې جبهې څخه جلا شول چې د جبهې اړوند ځینو کسانو له حکومتي اړخ سره پټ لیده کاته کول او د مجاهدینو قربانیو ته یې په کمه کتلي وو، دغه راز یې ځینې نور داسي اعمال هم ترسره کول چې د جهاد له اهدافو سره په ټکر کې وو.

دوی له خپل مرکز څخه پرته له وسلو لاړل او په سیمه کې د نورو مجاهدینو په قرارګاه کې یې واړول، څو ورځې په دې مشورو ورباندې تیرې شوې چې څه کوو او خپل جهاد ته څرنګه دوام ورکوو. وروسته د سیمې یو تن تکړه عالم او روحاني شخصیت مولوي محمد موسی چې په مجاهدینو کې یې په نیکۍ او بزرګۍ شهرت درلود، دغو ملګرو ته یې ملا محمد عمر مجاهد د مشر او ملا برادر اخند د معاون په حیث ور انتخاب کړ او مشوره یې ورکړه چې مستقله جبهه جوړه کړئ تر څو جهاد در څخه پاته نه شي.

دوی هم همدا مشوره غوره وبلله، دا وخت چې د جهادي تنظیمونو مرکزي دفترونه او مشران په پاکستان کې میشت و نو ملا محمد عمر مجاهد، ملا برادر اخند او ملا یارانه د پاکستان کوټې ته لاړل تر څو د حرکت انقلاب اسلامي په تنظیم کې خپله مستقله جبهه رسمي کړي. د کندهار ولایت ځینې نور مجاهدین چې د دوی له فعالیت څخه خبر وو د دوی د غوښتنې ملاتړ یې وکړ نو ځکه د جنوب غرب حوزې لپاره د حرکت تنظیم مشر مولوي محمد سخي صاحب د دوی عریضه تائید کړه او د ۱۳۶۹ لمریز کال د جدي په میاشت کې یې جبهه ورته رسمي کړه. مولوي سخي دوی ته په دې دلیل چې د جهاد آخر دی او تنظیم وسلې او نور امکانات په لاس کې نلري ډېر څه ورنکړل خو یو خط یې ورکړ چې د کندهار په دیمراسي کې به د تنظیم له وسلو څخه ۹ میله وسله ترلاسه کړي. د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ دې نوې جبهې همدا ۹ میله وسله ترلاسه کړه او ځینو نورو نږدې جبهو ورسره د یو او دوه میله وسلو د مرستې یا قرض په شکل همکاري وکړه تر دې چې د دوی ملګري چې شمیر یې د ۲۰ او ۲۵ ترمنځ و مسلح شول. دوی د سنګ حصار د کیشانو د کلي په هم هغه مسجد کې چې مخکې هم په کې اوسیدلي وو اطاق جوړ کړ او همدا یې جهادي مرکز شو.

په دې ډول ملا محمد عمر مجاهد د کمونیزم ضد جهاد په وروستیو کلونو کې مستقله جبهه جوړه کړه. دا جبهه که څه هم د مجاهدینو شمیر یې کم و خو د کندهار او شاوخوا سیمو په ټولو مهمو عملیاتو کې یې شرکت کاوه. د ۱۳۶۹ هجري لمریز کال په ژمي کې هغه وخت چې د رژیم قواوو د زابل ولایت د مرکز قلات د محاصرې ماتولو لپاره د جبار ملیشې زابل ته ولیږلې او بیا مجاهدینو په پریکنده بریدونه دغو ملیشو ته دروند زیان واړاوه، د نورو مجاهدینو تر څنګه د ملامحمد عمر مجاهد د جبهې مجاهدین هم په دې عملیاتو کې برخوال وو، دغه راز وروسته چې د دوستم له قواوو سره په زابل کې جنګونه وشول هم د دې جبهې مجاهدینو په کې شرکت کړی و.

د زابل له عملیاتو وروسته د میوند په فتحه او د ګرشک په جنګونوکې هم د ملا صا ب د جبهې مجاهدینو ګډون درلود په دې ډول دوی تر هغه وخته خپل مقدس

جهاد ته ادامه ورکړه ترڅو د ۱۳۷۱ لمریز کال په ثور میاشت کې رژیم نسکور او کمونیستي حاکمیت پای ته ورسید.

## د تنظیمي هرج و مرج په دوران کې

هغه ګډوډي، فساد او ذات البیني جګړې چې د کمونیستي نظام له سقوط وروسته رامنځته شوې که په ژور نظر یې وڅیړو نو د جهاد د وروستیو کلونو ځینې معاملې او مجاهدینو ته د واک د انتقال ناقصه پروسه یې د اصلي عواملو په حیث په ګوته کولای شو.

د ۱۳۷۱ لمریز کال د حمل وروستي او د ثور میاشتې لومړۍ اونۍ د کمونیست رژیم د تدریجي سقوط ورځې وې، ولایتي مراکز او لوی ښارونه یو په بل پسې د رژیم له لاسه وتل خو دا چې دا عملیه د پټو توطئو او ناروا ایتلافونو په اساس پرمخ وړل کیدله نو ځکه یې ولس ته د فتحې او ارامۍ په ځای د یوه بل بحران د پیل پیغام ورکاوه.

د جهاد په کلونو کې د مجاهدینو دوه ډوله جبهات وو. یوه هغه چې په اصلي معنی د حق د لارې مجاهدین وو، قومي او قبیلوي ګټې یې په نظرکې نه وې، د واک او څوکۍ ترلاسه کول، د بیت المال او غنیمت په خرڅلاو سره پیسې موندل او په جهاد باندې مادي امتیازات موندل یې هدف نه وو. بلکې اعلاء کلمة الله او د کمونیستي کفر شړل یې اساسي هدف و. په دې جبهاتو کې پرته له قومي او سیمیزو تړاونو د هر ځای واقعي مجاهدین را یوځای شوي وو. همدوی د جهاد لومړني پیلوونکي هم وو او تر پایه یې په عملي جهاد کې ونډه هم ډیره وه چې ښه مثال یې د ملا محمد عمر مجاهد جبهه او دغسې نوري ځینې په واقعي معنی جهادي جبهې وې.

خو دا چې بعضې جهادي تنظیمونو د جهادي جبهاتو د جوړولو لپاره تاکلي معیار او اصول نه درلودل او یا یې د خپلو اصولو د تعمیل توان نه درلود نو له موقع څخه په استفاده فرصت طلبه اشخاصو ته زمینه برابره سوه چې په نتیجه کې یې ډېر جبهات د قومي او تنظیمي عصبیتونو پربنسټ جوړ شول چې دغسې څو جبهات په کندهار کې هم وو. د مجاهدینو په نوم دغه دوهمه کته ګوری جبهات چې په کې یو شمیر بدکاره،

نشه یان او جهاد بدناموونکي اشخاص هم موجود وو، د جهاد په وروستیو کلونو کې هغه وخت چې د ډاکټر نجیب د سولې او پخلاینې تبلیغات شروع شول نو دوی د مادي گټو او قدرت ترلاسه کولو لپاره له کمونیستانو سره پټ روابط جوړ کړل.د خاد د استخباراتي چارواکو او دغو تش په نامه مجاهدینو تر منځ همیشه پټ لیده کاته کېدل او حتی حکومت ورته مرستې هم ورکولې.

کله چې د ۱۳۷۱ لمریز کال په ثور میاشت کې د کمونیستانو حکومت سقوط کاوه دغه وخت په کندهار کې د قول اردو قومندان چې د ولایت واک یې عملا په لاس کې و تورنجنرال اکرم و. نوموړي د دې لپاره چې واک واقعي مجاهدینو ته په لاس ورنشي-او دوی د خپل حکومت له سقوط وروسته هم په ښار کې په ارامه ژوند وکړای شي او د ولس او واقعي مجاهدینو له محاکمې او انتقامه یې ځان ژغورلی وي نو یې د همدغو تش په نامه جهادي جبهو له مشرانو سره په پټه موافقه وکړه او د یوه جوړ جاړي په ترڅ کې یې د واقعي مجاهدینو له خبرتیا پرته د کندهار ټول واک وروسپاره.

په دې ډول کمونیست رژیم وتوانید چې د افغانستان د نورو برخو په څېر په کندهار کې هم دا توطیه عملي کړي. دوی واقعي مجاهدینو ته د دې فرصت ورنکړ چې په فاتحانه ډول د ښارونو واک ترلاسه کړي. بلکې په جهادي صفوفو کې له خپلو ارتباطیانو سره په توافق یې واک هغه چا ته وسپاره چې په جهاد کې یې کوم د پام وړ رول نه و ادا کړی.

په دې ډول د کندهار د مهمو ادارو واک گل اغا، امیرلالي، ملا نقیب او نورو ته په لاس ورکړل شو او واقعي مجاهدین چې اکثر یې دیني علماء وو په ولسوالیو او پخوانیو جهادي سیمو کې له واک څخه بهر پاته شول.

دا چې جهاد پای ته رسیدلي و او واک هم د مجاهد په نوم نورو خلکو قبضه کړی و واقعي مجاهدینو ته له دې پرته بله لاره پاته نه شوه چې خپل تشکیلات لغو کړي او عادي ژوند ته ستانه شي. په همدې مهال د کندهار زیاتره جهادي جبهات منحل شول او مجاهدین یې کورونو ته ستانه شول. ځینو جبهه مشرانو په خاص ډول هغه چې علماء یا طالبان ول خپلې جبهې یې په مدرسو بدلې کړې. ملا محمد عمر مجاهد هم

په سنگ حصار کې خپله جبهه په مدرسه بدله کړه. د سنگ حصار د کيشانو مسجد چې په څنگ کې يې څو اطاقونه درلودل دوی په يوه اطاق کې خپله وسله ډيپو کړه، مسجد او نورو اطاقونه يې د درسگاوو او طالبانو د اوسيدو د ځای په حيث په مدرسه واړول.

مولوي عبدالحبيب، مولوي نور محمد، مولوي عبدالرحمن او مولوي محمد ابراهيم هغه مدرسين علماء وو چې په دې مدرسه کې يې طالبانو ته د ديني علومو تدريس پيل کړ. ملا محمد عمر مجاهد چې کور يې هم په همدې سيمه کې و، د مسجد د امامت او مدرسې د اهتمام په چارو سربيره يې خپله هم ديني کتابونه شروع کړل تر څو خپلې دينې زده کړې مکملې کړي.

## يو معنی دار خوب

د واک پر سر د تنظيمونو ترمنځ د اختلاف پيل د درست افغانستان په څير په جنوبي ولاياتو کې هم د هرج و مرج او خپل منځي جگړو پيلامه شوه. په کندهار کې د ملا نقيب، استاذعبدالحليم، سرکاتب او نورو تر منځ د جگړو سلسله شروع شوه او بل اړخ ته په هلمند کې د پخوانيو مجاهدينو تر منځ له وړاندې پيل شوي جنگونه لا نور تاوده شول د رئيس عبدالواحد، محمد رسول اخندزاده، مولوي عطاء محمد او نورو تر منځ جنگونو په داسې بڼه زور ونيو چې د ورځې په حساب په لسگونو کسان په کې قتليدل او د درنو وسلو د استعمال له امله کلي او کورونو ورانېدل.

د هلمند د جگړو يو برخوال قومندان چې په هلمند کې د خپلو رقيبانو لخوا ورباندې خمکه تنگه شوې او تيښتې ته مجبور شوی و، يو وخت يې هڅه او غوښتنه وکړه چې په سنگ حصار کې دې د قرارگاه جوړولو لپاره ځای ورکړل شي خو ځايي مجاهدينو ورسره موافقه ونکړه.

په همدې حال کې د ملا محمد عمر مجاهد د مدرسې يو طالب خوب ويني او په سبا يې خپلو ملگرو ته بيانوي. دی وايي بيگا مې خوب ليد چې د مدرسې تر څنگ زموږ

د وسله تون بام نړیدلی او یومخ له منځه تللی وي، تر دې چې د وسله تون منځ تـه لمـر رالویدلی او په وسلو د لمر رڼا راغلي وي.

ځینې طالبان ددې خوب په اوریدلو وارخطاء کیږي.خو طالب دغه خوب د سیمې یـوه په نیکۍ او دیانت مشهور سپین ږیري عالم مولوي موسی جان ته بیانوي، هغه د خـوب بل وړ معنی کوي او وایي: په وسلو د لمر رڼا راتلل دا معنی چې الله تعالی به پـه همـدې وسلو په ملک کې رڼا راولي او دا چې اسـلام یـوه روښـنایي ده الله تعـالی بـه د همـدې وسلو په توسط اسلام حاکم کړي. د خوب معبر مولوي موسی جـان څـه مـوده وروسـته وفات شو خو د خوب تعبیر یې ځو کاله وروسته هغه وخـت ښـه قابـل درک و چـې پـه همدې وسلو د عام شوي فساد په وړاندې لومړنی پاځون پیل شو.

## ملوک الطوائفي او هرج و مرج

په افغانستان کې د کمونیست رژیم له سقوط وروسته مجاهدین په دې ونه توانېدل چې یو متحد او معیاري اسلامي نظام رامنځته کړي. بلکې د مجاهدینو په نوم ځینـو د اقتـدار حریصانو له وړاندې لا له کمونیستانو سره پټې معاملې پیل کړې وې، کار لـه هغـه ځایـه خراب شو چې د یوې شومې معاملې یا ایتلاف له مخې د پلازمینې کابـل واک حـاکمو پرچمیانو یوازې د جمعیت اسلامي گوند ته وسپاره. نورو کمونیسـتانو د ځـان د دفـاع او په نوي لباس کې د ځان مطرح کولو لپـاره د هیـواد پـه شـمال کـې د جـنرال دوستم پـه مشرۍ د جنبش په نوم تنظیم جوړ کړ چې د پخواني رژیم ډېر پوځي امکانات یې هـم په خپل لاس کې وساتل.

د واک او ځواک د تصاحب په مسابقه کې فرصت طلبـه او د اقتـدار تـږي گروپونـه او ډلې وتوانیدل چې د هیواد په بیلابیلـو سـیمو قبضـه وکـړي او د خپلـې خوښـې واکمنـی رامنځته کړي. په دې ډول په هیواد کې یو بشپړ د ملوک الطوایفی حالـت رامنځتـه شـو. په کابل کې د مسعود، دوستم، مزاري، حکمتیار، سیاف، محسني او نـورو ډلـو مسـتقل حاکمیتونه جوړ شول. د هیواد په سطحه لغمان، لوگر او میدان وردگ د حکمتیار حـزب قبضه کړل. د کابل پـه دیپلوماتیکـه سـاحه سربیـره پـروان، کاپیسـا، تخـار او بدخشـان د رباني جمعیت ونیـول. مـزار، شـبرغان،سرپل او فاریـاب د دوسـتم شـول. پـه بـادغیس،

هرات او فراه کې اسمعیل خان خپل امارت جوړ کړ. بامیان او نږدې ټولې هزاره میشتې سیمې د مزاري حزب وحدت ونیولې د ننگرهار واک د حاجي قدیر په مشرۍ د مشرقي شورا په لاس کې واخیست او د بغلان مرکز د سیدمنصور نادري لخوا ونیول شو. په پاته نورو ولایاتو کې د مختلفو تنظیمي او خودسره قومندانانو لخوا د واک مستقلې جزیرې رامنځته شوې.

دغو د واک او قدرت تږو د یوه بل په وړاندې د سیاسي، تنظیمي، قومي او ژبنیو تعصباتو په بنیاد خونړۍ جگړې پیل کړې. دغه راز یې د هیواد د ملي شتمنیو چورتالان، خرڅول او تخریبول په منظم ډول پیل کړل. له ۱۳۷۱ لمریز کال نه بیا تر ۱۳۷۴ کال پورې زمانه د افغانستان په تاریخ کې د گډوډۍ، ظلم، قتل و قتال او وحشت هغه دوره بلل کیږي چې نه یې پخوا بیلگه لیدل شوې وه او نه به یې وروسته ولیدل شي. هغه چې وايي د ظالم حاکم په څو کلنه دوره کې دومره مظالم نه کیږي او نه دومره حقوق تلف کیږي لکه د بې نظامه حالت په یوه ورځ کې چې څومره ظلمونه ترسره کیږي دا خبره په همدې کلونو کې ښه ثابته شوه. که په لنډو ووایو افغانستان په دې شاوخوا دري کلنه موده کې د خپل معاصر څه باندې دوه سوه کلن نظام ټول هست و بود او هغه شتمني چې په پوځي، اقتصادي، تعلیمي، هنري، عمراني او نورو برخو کې یې ذخیره کړې وه له لاسه ورکړه.

خودسره ټوپکیانو د هیواد کارخانې، حکومتي تاسیسات، عام المنفعه ادارې او ملي شتمنی چور کړې او بیا یې د کباړ په بیه په گاونډیو هیوادونو خرڅې کړې. د افغانستان د اردو پراخ امکانات په خاص ډول ټانگونه، الوتکې، درنې وسلې، تخنیکي ورکشافونو او نورې مهمې شتمنی لومړی کباړ او بیا د اوسپنې په بیه خرڅې سوې. تعلیمي بنسټونه، د خدماتو ادارې او ټولگټې تأسیسات نه یوازې د فعالیت له اړخه توقیف شول بلکې ودانیو ته یې درانه زیانونه ورسیدل. د هیواد اقتصاد هم دروند گوزار ولید تردې چې پخوا یو امریکایي ډالر څلور سوه افغانۍ کیده مگر د جگړو په پایله کې ملي سکه داسې بې ارزښته شوه چې حتی یو ډالر په ۲۵ زره افغانیو تبادله کیده. د تاریخي اثارو قاچاق، د ځنگلونو وهل، د معادنو لوټ تالان د هر چا د وس کار وگرځېد.

د کابل ښار اتیا فیصده تاسیسات له یوې مخې ونړیدل او منقوله شیان یې لوټ شول، خو په دې مادي زیانونو سربیره هغه معنوي زیانونه چې جګړه مارو هیواد ته واړول اټکل یې نه شي کیدلای. د کابل له مختلفو کتابتونو څخه په زیات شمیر کتابونه ورک شول. موزیمونه، ارشیفونه، ګالرۍ او نندارتونونه چې د کلونو کلونو په اوږدو کې رغیدلي او په نایابه آثارو ډک وو لوټ او ارزښتناک آثار یې په ګاونډیو هیوادونو کې لیلام شول.

په دې ټولو ملي ناخوالو سربیره په اجتماعي او امنیتي لحاظ د افغانستان په خلکو یو داسې تور تم راغی چې کما حقه تعبیر یې شاید د لیکوال د وس کار نه وي. ښار په ښار، کوڅه په کوڅه او کلي په کلي ټوپکواکي او پاټکسالارۍ پیل شوې. ټوپکیان له یوه بل سره ونښتل او د خونړیو جګړو لړۍ پیل شوې چې تر ټولو ډېر زیان یې ولس ته رسېده. د محلي ټوپکیانو تر منځ په لنډمهاله او روزمره جګړو سربیره د هیواد په ځینو سیمو کې د تنظیمونو تر منځ مسلسلې او اوږدې جګړې پیل شوې. په کابل کې د حزب، جمعیت، جنبش، حزب وحدت، حرکت محسني او اتحاد تنظیمونو تر منځ د خونړیو جګړو سلسله پیل شوه. په کندز او بغلان کې د جمعیت، جنبش، حزب او نادري ملیشو تر منځ مسلسلې جګړې روانې وې. په شمالي ولایاتو په خاص ډول فاریاب او بادغیس کې دوستم او اسمعیل خان په جګړو بوخت وو. په هلمند کې د جمعیت، حزب او حرکت قومندانانو جګړې سره کولې او په نورو ولایاتو کې هم د اورنیو جګړو لمبې بلې وې. په دې جګړو کې نه یوازې د هیوادوالو سر او مال ته زیان رسیده بلکې هر ورځ په کې بې حسابه حقوق تلف کیدل، تجاوزات کیدل او وحشیانه اعمال ترسره کیدل.

جګړه مارانو د خپل ځان د اکمال لپاره به غلا او قطاع الطریقۍ سربیره پاټکسالارۍ ته لاس واچاوه، د هیواد په اکثرو لارو او سړکونو ګام په ګام پوستې جوړې او ځنځیرونه ولویدل. پاټکیانو چې له عامو مسافرو، موټر چلوونکو او سوداګرو څخه یې د حق العبور په نوم پیسې وړې علاوه یې د عامو بې وسه افغانانو وهل ټکول او سپکاوی هم کاوه او د پیسو نه ورکولو په صورت کې یې ډول ډول سزاګانې ورکولې.

د جګړو دوام، خودسري، د بدکارو ټوپکیانو حاکمیت او په عین حال کې د کار او تعلیم نشتوالي او عمومي بې بندوباري هیواد په هر اړخیز لحاظ د مطلق سقوط له خطر سره مخامخ کړ. نوی را پورته کیدونکی نسل له وضعیت څخه په تأثر همداسې بې بندوباره او جګړه مار روزل کیده. همدا لامل وو چې ډیرو کم عمره او تنکیو ځوانانو ټوپکماری ته مخه کوله او د پوستې او پاټک ژوند یې غوره کاوه.

په داسې هر اړخیز تورتم کې چې د سالم ژوند تیرولو ټول معادلات معکوس شوي وو، په اکثرو سیمو کي د ټولنې پریوتي او بدکار قشر د اقتدار مزی په لاس کې درلود او د ټولنې معزز غړي لکه واقعي مجاهدین، علماء کرام، معزز مشران، طالبان او د هیواد او ولس په درد دردمن هیوادوال د بې فرهنګه ټوپکیانو تر جبر لاندې د محکومیت ژوند تیرولو ته اړ شوي وو، افغان ولس له سختې ناهیلۍ سره لاس او ګریوان و. نړیوالو او ګاونډیانو د دې حالت ننداره کوله او یوازې د روان وحشت د راپورونو په خپرولو یې اکتفاء کوله.د ملل متحد، په اصطلاح د بشري حقوقو او نورو خیریه بنسټونو هم یوازینی کار دا و چې د حاکمو ټوپکیانو وحشتونه لیست کړي او بیا یې کلني او میاشتني راپوررونه خپاره کړي افغانانو له الله تعالی پرته هیچا ته امید نه درلود څکه له هر اړخه مایوسه وو.

کله چې ناروا او تجاوزات اوج ته ورسیږي، کله چې د جابرانو د ظلم چاړه د مظلوم په هډوکي ولګیږي او کله چې د مستضعفو بندګانو چیغې د عرش تر کنارو ورسیږي نو په داسې حالت کې بیا پر مظلومانو د الله تعالی رحم په جوش راځي او د ظالمانو د سزا لپاره یې د قهر توپانونه را الوځي. کله چې شپه تر وروستي حده تروږمې شي نو ورپسې د سهار ستوري ځلیږي او کله چې منی او ژمی د طبیعت ښکلا وخپي او د شنیلیو وروستی پاڼې هم ورژوي نو بیا د پسرلي وار را رسیږي.

په افغانستان کې د بې نظامی او وحشت پدیده د خپل شدت وروستي حد ته رسیدلې وه په دغسې حالت کې د یوه نوراني، اسلامي او سوله پال حرکت ظهور د قدرت او فطرت له قوانینو سره بالکل مطابق ضرورت و، چې باید ظهور یې کړی وای.

**په کندهار کې څه تېرېدل؟**

د هرج و مرج په کلونو کې د کندهار ولایت په خاص ډول کندهار ښار هم د نور په افغانستان په څیر د ګډوډۍ، جګړو، فساد، بې امنیتۍ او کوڅه واکۍ شاهد و. دا چې په کندهار ښار کوم تنظیمي جګړه مار بشپړه ولکه یا په سیالانو بالادستي نه درلوده نو څکه هر قومندان د خپل سر پاچا و او چې څه یې زړه غوښتل کول یې.

ملا نقیب چې د جمعیت غړیتوب یې درلود او په کندهار کې د رباني د رژیم نماینده بلل کیده، دا چې له کابله ورته وخت په وخت د پیسو اکمال کیده نو تر یوه حده یې له پاټکبازۍ ځان ساتلی و. نور نو په خپل منځي جګړو، اخلاقي نیمګړتیاوو او فساد کې د ده افراد د نورو قومندانانو تر افرادو کم نه وو.

کندهار ښار د واک او سلطې په اعتبار په بیلابیلو برخو ویشل شوی و. له ډنډ تر ولایته سیمه ملا نقیب نیولې وه. خپله ولایت، چارسو، ښکارپور دروازه او هرات بازار د ګل اغا شیرزي په واک کې وو. حضرت جي بابا، کابل دروازه او قشله جدید د امیرلالي په قلمرو کې راتلل. د کندهار هوایي ډګر د قومندان مغاش زوی احمد ولکه کړی و. له سرپوزې تر ډنډ او نظر جان باغه د استاد عبدالعلیم واکمني وه. باغ پل د سرکاتب په لاس کې و. د شاه اغا دوراهي او ناګهان د نادرجان قومندان سیمه وه، په سنځري او اشوغه د حبیب الله جان پاټکونه وو او دارو خان د کولک او سلوغي پر سیمه قبضه کړې وه. وړاندې وویل شول چې دغه قومندانان له کمونیستانو سره د جوړ جاړي په پایله کې په دې سیمو قابض شوي وو. له کمونیستانو سره د دوی د ایتلاف یو ثبوت دا هم بللی شو چې د واک له انتقال وروسته هم د جنرال اکرم په شمول د کمونیست رژیم لوړپوړې چارواکي په کندهار ښار کې ازادانه اوسیدل تر دې چې په خپله خوښه له هیواده ووتل. حتی د کمونیست رژیم د وختونو ځیني پوځي تشکیلات په تنظیمي دور کې هم په خپل حال پاته وو لکه د عصمت مسلم ملیشې چې د نجیب په وخت کې یې د کندهار ښار او بولدک تر منځ د لارې امنیت په غاړه و او په تنظیمي دور کې یې قومندان منصور د شوراندام او د غره کلي په ساحو کې د پخوا په څیر پوستې درلودې او د دې سیمو واک یې په لاس کې و.

په دې ډول کندهار ښار د ناهله ټوپکیانو تر منځ سیمه پر سیمه او کوځه پر کوڅه وویشل شو. مستقلې او موازي واکمنۍ په کې رامنځته شوې او واقعي مجاهدین له ښار څخه بهر په لرې پرتو ولسوالیو کې او کلیوالو سیمو کې پاته شول چې ډېرو یې د جهاد له پای ته رسیدو وروسته خپل جبهات منحل کړل.

دکندهار په ښار واکمنو ټوپکیانو د تنظیمي، قومي عصبیتونو او دولتي امکاناتو د لوټ تالان پر سر همیشه له یوه بل سره جګړې کولې. ټوپکیانو لومړی هغه ټانګونه او پوځي وسایط کباړ او خرڅ کړل چې په کندهار کې د شوروي له وخته پاته وو، له دې جملې یو لویه برخه ناکاره ټانګونه هغه وو چې د ډنډ ولسوالي په حدودو کې د کندهار هرات د لارې په اوږدو کې پراته وو، دغه ټانګونه چې له روسانو سره د لس کلنو جګړو په مهال د شهید ملا نیک محمد، ملا محمد عمرمجاهد، شهید لالا ملنګ، شهید طالب جان او نورو مجاهدینو لخوا ویشتل شوي وو شمیر یې دومره زیات و چې د لویې لارې په امتداد کې له کوکران نیولې بیا د پنجوایي تر دوراهي پورې حکومتي ځواکونو د لارې یوه اړخ ته د دیوال په شان په درولو سره فولادي حصار ترې جوړ کړی و چې په پناه کې به یې خپلو پوستو ته اکمالات کول. ټوپکیانو دغه د جهاد یادګار او د اتلانو په وینو ګټل شوی وياړ لومړی په بمونو ټوټه ټوټه کړل او بیا یې په پاکستاني تجارانو خرڅ کړل.

د جهادي غنائمو او دولتي امکاناتو له لوټ تالان او کباړولو وروسته ټوپکیانو د پیسو موندلو لپاره پاټک بازي شروع کړه.هر په نوم قومندان د عمومي لارې پر سر پوسته جوړه کړه او د پیسو اخیستلو لپاره یې پر لارو ځنځیرونه واچول. په کندهار کې د پاټکونو اصلي مسیر د افغانستان د حلقوي سړک هغه برخه وه چې د دې ولایت له منځه تیریږي. یعنې له هرات څخه تر کندهار ښار راغلې او بیا د کابل پرخوا غځیدلې لویه لاره. دغه راز د سرحدي ښارګوټي بولدک او کندهار ښار تر منځ لاره باندې هم ګڼ شمیر ځنځیرونه لیدلي وو.

که څه هم ملا محمد عمر مجاهد د خپل مرکز او مدرسې په شاوخوا کې ټوپکیان ځنځیر او پاټک ته نه پرېښودل خو د کندهار ښار څخه د هرات په خوا غځیدلې لار

باندې ګڼ شمیر څنځیرونه لویدلي و. د عیني شاهدانو له قوله په دې سیمه کې د ډیرو پاټکونو او د ټوپکیانو دظلم او اذیت له امله وروسته تجاران مجبور شول چې د هرات لخوا راغلي تجارتي توکي د عمومي لارې په عوض د ریګ د دښتو له لارې په ټیکټرو او نورو نقلیه وسایطو کې تر سرحدي ښار بولدک پورې انتقال کړي.

ټوپکیانو نه یوازې له خلکو پیسې اخیستې او د پیسو لپاره د شکنجو او قتل تر حده یې په هغوی ظلم کاوه بلکې پاټکونه د اخلاقي جرائمو ځالې هم وې. په پاټکونو کې ټول له ټولنې تبنتیدلې، بې تهذیبه، نشه یان، لوټماران، فاسق او فاجر اشخاص را ټول شوي وو چې بعضي یي په غلا او ظلم سربیره په زنا، لواطت، قماربازي او نورو ګناهونوهم ککړ وو.

حبیب الله جان چې په سنځري کی یې څنځیر درلود په خپل پاټک کې یې یو خروړی سپی ساتلی و، کله به چې چا دغه پاټکمار ته پیسې نه ورکولې نو له سپي سره به یې یو ځای تاړه تر څو د ځان د خلاصون لپاره پیسو ورکولو ته اماده شي.

د دغو پاټکیانو په اړه دا خبرې هم مشهورې وې چې د لارې له موټرو څخه ښځې ښکته کوي او زبرزنا ورسره کوي.ملا محمد عمر مجاهد چې د سنګ حصار په ساحه کې د خپل مسجد او مدرسې په چارو بوخت و که څه هم د خپل مدرسې په شاوخوا بې د لویې لارې پر سر پاټکیان نه پرېښودل خو د شاوخوا سیمو وحشت یې لید او روزانه به ورته زړه بوږنوونکي خبرونه راتلل.

د نوموړي یو شناخته د روزګان مولوي عبدالحنان چې یو ځل دده مرکز ته راغی نو کیسه یې وکړه چې له کندهار ښاره راتلم د کولک په سیمه کې د ټوپکیانو په پاټک مو موټر ودرول شو. یو ټوپکي راغی او کله چې یې په موټر کې له دروازې سره نږدې په یوې نجلی سترګې ولګېدې په پوره جرئت یې سینې ته لاس وروړ خو له ډاره هیچا هم عکس العمل ونه ښود.

یوه ورځ ملا محمد عمر مجاهد له خپلو ملګرو سره ناست و چې یو کس یې ولید چې منااې وهي، دوی ته نابلده ښکاره شو او غږ یې پرې وکړ، ځوان چې راغی ویل یې د

هرات یم، مور مې د علاج لپاره پاکستان ته بیولې وه، د بیرته راتلو پـه وخـت د پاشـمول په سیمه کې په پاټک ټوپکیانو له موټره کوز کړم، اته ورځې ورسره بنـدي وم اوس تـرې راخلاص شوم. دې ځوان اقرار وکړ چې په دې اتو شپو کې یې داسـې شـپه نـه یـادیږي چې دې ټوپکیانو دې هلکان او ښځې د جنسي-اسـتفادې لپـاره پـه پوسـته کـې نـه وي بندي کړې.

د ملا محمد عمر مجاهد یو ملګری او د مدرسې شاګرد مـلا سـعدالله کیسـه کـوي چـې یوه ورځ زه او ملا برادر اخند کندهار ښار ته تلـو او د مـوټر پـه چـت بانـدې ناسـت وو. کله چې د پاشمول د صالح پاټک ته ورسیدو نو ګورو چې یو کشـر هلـک چـې د فسـق نښې وریاندې ښکاره وې پـه پاټـک ناسـت و او د مـوټر لـه دریـدو سره سم یـې مـوټر چلوونکي ته ناموسي ښکنځل وکړل خو موټر چلوونکي لـه تحمـل پرتـه هـیڅ غبرګـون ونه ښود.

ملا سعدالله وایي په دې حال کې ما ملا برادر اخند ته وکتـل ګـورم چـې سـترګې یـې لـه اوښکو را ډکې شوې. ما پوښتنه ترې وکړې چې ولـې ژاړې؟ ده ځـواب راکـړ چـې هغـه زموږ د جهاد، قربانیو او شهادتونو نتیجه بالاخره دا راووته لکه دا اوس دې چې یـو مثـال ولید نو په داسې حال کې به ولې ژړا نه راځي.

دغه پرلپسې ظلمونو، ناخوالو او بوږنوونکو حـادثو کـه لـه یـوې خـوا مـلا محمـد عمـر مجاهد او نور بااحساسه مجاهدین د حالاتو په اړه تفکر او اندیښنې تـه اړ کـول لـه بلـې خوا یې له ټوپکیانو کرکه او د انتقام جذبه هم پرلپسې په سینو کې ذخیره کیدله.

*****

## دریم فصل

### د طالبانو د اسلامي تحریک بنسټ ایښودل

**د پاڅون پیل**

د ملا محمد عمر مجاهد د جهاد سیمه او میشت ځای (سنگ حصار) چې په اوسني اداري ویش کې د کندهار د ژړی ولسوالی مربوط بلل کیږي هغه وخت د میوند ولسوالی اړوند بلل کیده. د سنگ حصار او ورڅیرمه د پنجوایي د مربوطاتو لکه زنگاوات، تلوکان، مشان او نورو سیمو واک د ملا محمد عمر مجاهد، ملا محمد آخند، ملا حاجي محمد، ملا محمد صادق او ځینو نورو جبهو د مجاهدینو په لاس کې و. دوی حتی الوسع ددې سیمو امنیت ساتلی و او ټوپکیانو ته یې د فعالیت اجازه نه ورکوله. د سنگ حصار لویدیځ ته د میوند مرکز د کشک نخود سیمه د قومندان حاجي بشر او حاجي برگېټ تر تصرف لاندې وه. دوی هم له دغو مجاهدینو سره هماهنگي درلوده او تر ډیره یې سیمه له گډوډیو خوندي وه، دې ټولو پخوانیو مجاهدینو د خپلو سیمو د امنیت لپاره د کندهار ولایت پخوانی عمومي قاضي (مولوي سید محمد) چې په مولوي پاسني صاحب یې شهرت درلود د قاضي په حیث مقرر کړی و. نوموړي د پنجوایي په زنگاوات کې محکمه درلوده، چې شاوخوا ټولو جبهو به په نوبت سره مجاهدین ورکول او نوموړي به قضایي اجراآت کول.

د ټوپکمارو د هرج و مرج په دوره کې که څه هم د ملامحمدعمرمجاهد د مدرسې او پخوانی جبهې شاوخوا سیمې له پاټکونو، غلا او گډوډیو په امن وي خو له نورو ځایونو ورته مسلسل د ناخوالو خبرونه راتلل.د ولس ناخوالو او د ټوپکیانو ظلم او استبداد ټول اهل خیر مجاهدین او طالبان فکرمند کړي وو. په وروستیو کې په دې اړه مشورې او مجالس پیل شول چې د ټوپکیانو څخه د ولس دخلاصولو لپاره څه باید وشي.

د طالبانو د تحریک له عملي پیل وړاندې څو ځله په دې موضوع د سنګ حصار او شاوخوا سیمو طالبانو او پخوانیو مجاهدینو مجلسونه وکړل.سید عبد الله (تورک اغا) وایي یو ځل د ملا محمد عمرمجاهد په مدرسه کې مجلس جوړ شوی و، چې خپله ملا محمدعمرمجاهد، ملا برادر اخند، ملا محمد اخند او تر ۴۰ تنو پورې نورو طالبانو په کې ګډون کړی وو. د مجلس موضوع همدا وه چې موږ جهاد وکړ، قرباني مو ورکړې او مشقات مو ومنل د دې لپاره چې یو شرعي نظام راشي او ولس مو هوسا شي. مګر اوس ولس د بدکاره ټوپکیانو په ظالمانه منګولو کې ښکېل شوی چې باید د جهاد د اهدافو د لاسته راوړلو او ولس د ازادولو هڅه وشي.

د دا ډول مجالسو په لړ کې بله غونډه د سنګ حصار د جهادي قومندان حاجي غوث الدین اکا په اطاق کې جوړه شوه. مولوي عبدالرحمن صاحب چې د ملامحمدعمرمجاهد اخنبی او استاد دی وایي دې مجلس ته زه له ملا صاحب سره یوځای لاړم. په مجلس کې اکثره د مساجدو امامان او د سیمې علماء کرام راټول شوي وو. دوی په دې خبرې کولې چې څرنګه باید د زیاتیدونکي فساد مخه ونیسي-. د بیلابیلو رایو له تبادلې وروسته د اکثرو رایه دا وه چې طالبان دې په نوبتي شکل د خپلې سیمې امنیت وساتي او هم دې په سیمه کې د مولوي پاسني صاحب محکمه تقویه شي تر څو مجرمین مجازات کړي.

ملا محمد عمر مجاهد چې د مجلس په پای کې له دروازې سره ناست و کله چې د رایې بیانولو نوبت ورته ورسید نو یې وویل چې د ټوپکیانو د ضرر مخه یوازې په بالمثله اقدام سره نیول کیدای شي. ټوپکیانو هرڅه پرې ایښي، شپه او ورځ یې په ځان یوه کړې، د شیطان لار یې را اخیستې او خپل فساد ته دوام ورکوي. د دوی د دې عمل مخه یوازې په دې نیول کیدای شي چې موږ هم هرڅه پریږدو، د فساد مخنیوی خپل تر ټولو اول او مهم مسؤلیت وبولو او د الله تعالی د دین د نفاذ لپاره همداسې په میدان ودرېږو، لکه ټوپکیان چې ولاړ دي. دا مبارزه په دې نه کیږي چې په هفته کې څو ورځې به سبقونه وایو او یوه ورځ به په نوبت د ټوپکیانو سره مقابله کوو.

په پای کې دا مجلس هم د پخوانیو مجالسو په شان بې نتیجې پای ته ورسید. مولوي عبدالرحمن وایي له مجلس نه د راګرځېدو په وخت ملا صاحب د مجلس په بې نتیجې کیدلو خپه و خو ویې ویل چې مجلسونه خو نتیجه نه ورکوي. زه په الله توکل کوم او یو اقدام کوم.

ملا صاحب خپله د لومړني اقدام او توکل په اړه په یوه تقریر کې ویلي:زه په یوه مدرسه کې وم، یوه کوچنۍ مدرسه مو جوړه کړې وه، ۱۵ یا ۲۰ اندیولان به په کې وو او موږ سبق وایه.دا دځمکې سر ټول فساد ونیو. قتل و قتال، چور او چپاول و وطن فساقواو فجارو ونیو. تېره وضعه خو تاسو ته معلومه ده هغه چې خلکو تصور نه شوای کولای چې اصلاح به په څه شي راځي. نو ما سبق وایه او د حالاتو په باره کې به مې تصور واهه. نو که ما یوازې هغسې تصور وهلی دا دلیل زما لپاره کافي و چې ( لایکلف الله نفسا الا وسعها ) ځکه د حالاتو په اړه له تصور پرته نور څه زما په قدرت کې نه و. خو ما په الله تعالی باندې توکل محض وکړ، توکل محض ډېر زور غواړي خو توکل محض ناکامي نلري.

## شرعي فتوی

ملا محمد عمر مجاهد چې د یوه واقعي مؤمن په حیث د دین احکامو ته ملتزم سړی و شریعت یې په خپل فردي او اجتماعي ژوند کې تر ټولو ستر او غالب اصل ګانه. نوموړي د خپلې واکمنۍ په مهال هم حکومتي اقدامات لومړی په شریعت عرضول او د حنفي فقهې له علماء کرامو او مفتیانو به یې د جواز او نه جواز پوښتنه کوله او تر هغو چې به یې د جواز فتوی نه وه ترلاسه کړې اقدامات یې نه کول. د معاصرې دنیا د سیاسي افرادو او ډلو زیاتره پریکړې له ځاني عقل او هوس، مادي ګټو او یا هم تحقیقاتي منابعو ( تینک تانکز ) څخه سرچینه اخلي او د الله تعالی دین او شریعت ته د کومې معتبرې او ټاکونکې مرجع په نظر نه ګوري. خو ملا صاحب به شاید د دې زمانې برازینی حاکم و چې الهي شریعت ته یې د تر ټولو مقدم او معتبر مرجع په نظر کتل او هر اقدام یې لومړی په شریعت تائیداوه.

ملا محمد عمر مجاهد د قیام له پیل څو ورځې وړاندې د پنجوایي زنګاوات ته رهي شو تر څو د سیمې له ستر عالم او قاضي مولوي سید محمد صاحب څخه د خپل اقدام په اړه فتوی یا شرعي اجازه تر لاسه کړي. مولوي سید محمد(چې په پاسني مولوی صاحب یې شهرت درلود) اصلا د غزني ولایت د ګیلان ولسوالۍ اوسیدونکی و. نوموړی جید عالم او د شوروي ضد جهاد په مهال د کندهار ولایت عمومي قاضي و چې د خپلو جدي اقداماتو له امله یې په ټولو جنوبي ولایاتو کې شهرت درلود. نوموړي تر دې مهاله د پنجوایي په زنګاوات کې محکمه ساتلې وه او د سیمې خلکو او مجاهدینو یې د قاضي او مشر عالم په حیث درناوی کاوه.

ملا ګل اغا آخند چې په دې سفر کې له ملا صاحب سره ملګری و وایي ملا صاحب چې مولوي عبدالصمد هم ورسره و د مولوي پاسني صاحب محکمې ته ورغلل. هغه ته یې ټول جریان بیان کړ چې فساد عام شوی، ورځ تر بلې فتنې او مظالم زیاتیږي، د مظلوم غږ څوک نه اوري او قسماقسم ظلمونه او جنایات ترسره کیږي. موږ د دې ظلمونو د مخنیوي لپاره د اقدام اراده لرو ستاسو مشوره راته څه ده؟ مولوي پاسني صاحب وویل چې دا مهمه مسئله ده زه به سبا څو نور علماء هم راوغواړم بیا به خپل نظر درکړم. سبا یې مولوي عبدالخالق صاحب، مولوي شاه محمدصاحب او یو تن بل عالم را وغوښتل او تر مازدیګره یې بحث وکړ. مازدیګر یې چې د ملا صاحب له اقدام سره موافقت وکړ او د فساد په وړاندې د هغه مبارزه یې یو ضروري اقدام وباله، نو ملا صاحب ورته وویل چې تاسو علماء کرام هم راسره له پیله ملګري شئ نو به زموږ صف له اوله تقویه شي.

مولوي پاسني صاحب ورته وویل چې موږ به له اوله درسره علنا نه دریږو څکه که خدای مکړه ستاسو حرکت ناکام شي نو بیا خو موږ علماء غیر مسلح او بې دفاع خلک یو، بیا به ټوپکیان د هر عالم کور ته ولاړ وي بې عزته کوي به یې او سزا به ورکوي. نو ښه دا ده چې موږ تر هغو خپل ملاتړ پټ وساتو، چې تاسو الله تعالی کامیاب کړي له هغه وروسته به په پوره قوت ستاسو د داعیې ملاتړ وکړو او عملا به درسره ودریږو. مولوي پاسني صاحب او نورو علماء کرامو وروسته په همدې وعده وفا وکړه او له

اسلامي تحريک سره په پوره اخلاص ودريدل. نوموړي د کندهار له فتحې وروسته د کندهار ولايت د مرافعې محکمې د رئيس په حيث دنده پيل کړه او د امريکا د يرغل تر وخته په همدې وظيفه پاته شو.

ملا صاحب چې له محکمې رخصت واخيست نو له خپلو دوو تنو ملګرو سره د کندهار د تکړه مجاهد شهيد لالا ملنګ د ملګرو مرکز ته ورغی چې اوس يې مشري د ملا محمد اخند په غاړه وه، په دې مرکز کې يې ملامحمد اخند، معلم فداء محمد او د کندهار څو نور مجاهدين وليدل او خپله خبره يې ورسره شريکه کړه. هغوی ټولو په ډېر اخلاص داډ ورکړ چې تاسو کار پيل کړئ موږ درسره يو. همدلته له شپې تيرولو وروسته ملا صاحب بيرته د سنګ حصار خواته رانږدې شو. دلته يې يو ملګری ملا ګل اغا د خپلې مدرسې په خوا رخصت کړ او موټر چې د ميوند د حاجي بشر و هغه يې هم د کشک نخود په خوا رخصت کړ او خپله له مولوي عبدالصمد سره په ګډه يې په زنګاوات، تلوکان، مشان او د پنجوايي په نورو کليو کې د کليوالو مدرسو د طالبانو په ليدلو پيل وکړ.

## د فساد په وړاندې د پيل شوې مبارزې شرعي حيثيت

د افغانستان د اسلامي امارت مخالفين په طالبانو تور لګوي چې دوی د يوه مشروع نظام په وړاندې خروج کړی و او د دوی قيام شرعي توجيه نه درلوده. په دې ادعا کې يوه خبره واضحه ده هغه دا چې د تنظيمي دوران د وخت په ذات البيني جګړو بوختو ټوپکيانو ته په هيڅ دليل د مشروع نظام نوم نه شي ورکول کيدلای. واقعيت دا و چې هغه مهال افغانستان اصلا يو داسې نظام نه درلود چې په اکثره هيواد حاکم وي، د فساد مخه ونيولی شي او د مسلمانانو حقوق تأمين کړي. بلکې په هيواد باندې بشپړه ملوک الطوايفي حاکمه وه چې هر قومندان او پاټکمار په خپله ساحه کې خودسره واکمن و.

دا چې د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د طالبانو قيام شرعا څه حيثيت درلود په دې اړه درته د هغه فتوی څينې برخې را نقلوو چې د ۱۳۷۳ لمريز کال د د دلوې په ۲۷ مه په کندهار کې چاپ شوې او نوم يې دی ( افتاء العلماء في جهاد الطلباء)

دغه فتوی چې په ۴۰ مخونو کې په کتابي شکل چاپ شوې په پيل کې يې لولو (اولا بايد دا خبره معلومه سي چې رفع او دفع د منكراتو او مخ نيول د ظلم او چور وچپاول، او لاسونه بندول دجنايت كارانو، زناكارانو، قاتلانو، قطاع الطريقو او لوطيانو څوک کولای سي او د چا وظيفه ده؟ په سلطان پورې خصوصا اړه لري يا يې نه لري؟ آيا يوه ډله او جماعت د مسلمانانو كه قدرت ولري او يو څوک مشر او سرپرست ولري. آيا دوی کولای سي چې د دغه رنگه مظالمو او جناياتو او ناروا كارونو چې د ټول اسلام او مسلمانانو ضرر عام، بدنامي، خرابي، بي عزتي او د قراني احكامو محو كول او وركول دي.مخنيوى وكړي؟

عن انس رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وآله و صحبه وسلم: انصر اخاک ظالما او مظلوما. قالوا هذا ننصره مظلوما فكيف ننصره ظالما؟ قال تأخذه فوق يديه.رواه البخاري.و فى العينى كلمة فوق مقحمة او ذكرت اشارة الى الأخذ بالاستعلاء و القوة.. الخ عينى ۲۹۰/۱۲

د مضمون خلاصه دا چې ظالم دې تر لاس ونيول سي يعني په زور، قوت، قدرت او طاقت سره دې د ظلم څخه بند او منع سي او مظلوم دې د ظالم له ظلمه خلاص كړل سي. په هر څه طاقت او قدرت سره چې وي. په فيض الباري شريف كې فرمايي: ان الدنيا باسرها كالسفينة الواحدة جلس فيها كل مسلم و كافر، مطيع و عاص. فاذا فشت فيهم المعصية فلم يأخذه احد يد احد هلكوا جميعا لا محالة. فيض الباري ۳۴۴/۳

خلاصه د مضمون دا چې دنيا په شان او مثال د يوې كښتې ده. مسلمان او كافر، نيک او بد هم په دغه كښتي كې ناست او سپاره دي.هركله چې معصيت او جنايت ډېر سي او څوک د گناهگار او جنايت كار لاس ونه نيسي نو ټول به هلاكيږي خامخا.

وهكذا ابوحنيفة رضى الله تعالى عنه يقول(و كذالک الامر بالمعروف و النهى عن المنكر بالسلاح لايصلح بواحد و انما يصلح بالسلطان او بمن كان له على ذالک اعوان صالحون و رجل يرأس عليهم مامون على دين الله الخ) احكام القرآن لمولانا تهانوي رحمه الله ۵۳/۲

خلاصه دا چې حضرت امام الأئمة امام ابوحنیفة رضی الله تعالی عنه فرمایي: ظالمان، جنایت کاران د ظلم او جنایت څخه راگرځول او په ښو اعمالو باندې امر کول په زور او قوت د جهاد او اسلحې دا کار په یوه نفر نسي کیدلای بلکې دا کار په سلطان کیږي او یا په هغه ډله او جماعت د مسلمانانو چې اعوان او ملگري صالحان ولري په دغه کار او عمل کې او همدغه جماعت یو مشر دیندار خاوند د امانت په دین کې د خدای پاک ولري. حاصل دا که نن ورځ طالبان حضرات قوت او طاقت لري او ښه صالحان ملگري او دیندار مشر ولري نو کولای سي چې همدغه عمل ته ادامه ورکړي. والله اعلم

دغه شرعي فتوی چې نور هم ډېر شرعي دلائل په کې عرض شوي د وخت د جابرانو او خودسره ټوپکیانو په مقابل کې د طالبانو اصلاحي قیام یې نه یوازې مشروع بلکې د مسلمانانو د تحفظ لپاره یو لازمي امر بللی دی. د فتوی په پای کې د کندهار او شاوخوا سیمو مشهورو علماء کرامو لاسلیکونه کړي لکه مولوي سید محمد مشهور په مولوي پاسني، مولوي عبدالعلي دیوبندي، مولوي محمد شفیع،مولوي محمد قاسم، مولوي محمد هارون، مولوي عبدلسلام، مولوي عبداللطیف اخندزاده، مولوي محمد اسلم، مولوي عبدالرزاق، مولوي عبدالغني او نور علماء کرام. دغه فتوی د ملا محمد عمر مجاهد لخوا هم تائید شوې او هغه هم ورباندې په پای کې لاسلیک کړی دی. په دې سربیره همدغه شرعي فتوی وروسته د افغانستان په سطحه اکثرو مخورو علماء کرامو تائیده کړه او د حاکم فساد او فتنو په وړاندې د ملا محمد عمر مجاهد قیام یې د وخت ضرورت او د هیواد او ملت د نجات لپاره یو شرعي او ضروري اقدام وباله.

دغه فتوی د کندهار له نیولو وروسته د اطلاعاتو او کلتور ریاست لخوا چاپ شوې او د تحریک د پیل د موضوع نه علاوه، د وسلو ټولولو، د باغیانو سره د جگړې او داسې نور موضوعاتو په اړه هم شرعي دلائل په کې راغلي دي.

### لومړنی عملي اقدام

د ملا محمد عمر مجاهد لخوا د طالبانو د اسلامي تحریک د قیام لومړنی گام د کلیوالو مدرسو (دائرو) د طالبانو لیدل او د مبارزې لپاره د هغوی نومونه لیکل و. په دې اړه ملا

صاحب یوه وینا کړې چې خلاصه یې دا ده: خلک به وایي چې دا تحریک له څه وخته او په څه شکل را روان شوی دی؟ له کومې خوا حمایه کیده، د چا لخوا ترتیبیده او د چا لخوا روزل کیده؟؟ د دې تحریک ابتداء داسې وه چې ما په مدرسه کې کتاب کت کړ، زه وم او یوبل ملګری مې راسره و، له سنګ حصار نه پیاده زنګاوات ته (تر رود) پورې وتو. په زنګاوات کې یوه سړي موټر سایکل راکړ سرور نومیږي د تلوکان دی، له هغه ځایه تلوکان ته لاړو، زه وم او بل مولوي صاحب (مولوي عبدالصمد) تر شا راسره سپور و. نو سهار مو شروع پر وکړه یوې دایرې ته ورغلو څوارلس کسه طالبان هلته اوسیدل، سره راټول مو کړل او ورته و مو ویل چې دا د خدای دین پایمال شو،فساقو او فجارو ټولو منطقه ونیوله، چور چپاول روان دی، پر عام ډامبر باندې د خلکو ناموس کښته کیږي، د خلکو مالونه کښته کیږي، د دغه فساد مقابله یوازې په مرده باد او زنده باد باندې نه کیږي، موږ را ولاړیږو، د خدای د رضا لپاره، نو که څوک خدمت کوي له موږ سره دې شي خو دا خبره ده چې سبقان به پریښودل کیږي او بل دا چې چا د یوې افغانۍ یا ډوډۍ وعده هم نه ده راکړې، پر دا وطن به سوال کوو پر مسلمانانو به ګرځو که چا راکړه که یې رانکړه.

او دا کار د یوې ورځې یا هفتې او کال هم نه دی، بل دا چې دا فاسق او فاجر د سختې ګرمۍ په غرمه کې په خپل سنګر باندې ناست وي او په علانیه د الله تعالی دښمني کوي نو موږ او تاسو چې د خدای دین د ځان بولو ولې د دین دفاع په علانیه نه شو کولای؟ دومره غفلت نه دی په کار او نه بې غیرتي په کار ده.

بل مو دا ورته وویل چې سبق به پاتې کیږي نه یوه افغانۍ شته او نه هم وسله هغه به په سوال پیدا کوو نو په داسې حال کې یې کوئ او که یې نه کوئ؟؟

په دې څوارلسو کسانو کې یوه لا والله که ویلي وي چې په دې شکل یې زه کوم، ویل یې زموږ خو سبقونه دي که د جمعې په شپه کار و کوو یې او که نه یې کوو. ما ورته وویل چې له جمعې وروسته به یې څوک کوي؟؟ خدای شاهد دی چې دا خبره همداسې وه او زه په محشر هم د دې شاهدي اداء کوم.

نو که ما دا یوه دایره (کلیواله مدرسه) کافي بللې وای نو بـه مې نـورې وربانـدې قیاس کړې وای او بیرته به راتلم خپلې مدرسې ته. خو ما هغه چې لـه الله تعالی سره وعـده کړې وه پر هغه وعده مې وفا وکړه نو الله تعالی بیا راسره دا معامله وکړه.

نو دغه مدرسه مې پرېښوده او راغلم بلې مدرسې ته هلته اوه کسه طالبان وو. هغو تـه مې هم په هماغه شکل خبره وکړه او هغو ټولـو اوو واړو خپل نومونـه راسره ولیکل. دا داسې نه وو چې دا لویان او هغه نور کوچنیان و دا ټول یـو امت دی خـودا یـو داسې حکمتي کار او یوه امتحاني دوره وه چې په اول وار زه ورسره مخامخ وم. نو پـه همـدې ترتیب مو شـروع وکړه تر مازدیگره مو ۵۳ کسه طالبان برابر کړل).

ملا صاحب او ملگري یې مولوي عبدالصمد هرې حجرې ته په ورتـگ سره طالبـانو تـه موضوع تشـریح کوله او بیا یې ورته ویل چې څـوک امـاده دي تـر څـو د الله تعـالی د دین د نفاذ او د فساد او د فتنو د محو کولو لپاره په جهـاد کـې شـرکت وکـړي. هرڅـوک چې اماده وي موږ ته دې خپل نومونه را ولیکي او په دې دې هم ځان پوه کړي چې دا لاره یوازې د قربانۍ لاره ده، موږ یوازې په الله تعالی توکـل کـوو او قیـام پیلـوو، کیـدای شي موږ په دې لاره کې شهیدان یا ټپیان شو او ظالمان راباندې غالب شي، موږ به دغـه ټول خطرات فرضوو او بل دا چې سبقونه او بـل هـر کـار بـه پرېـږدو یـوازې بـه د فساد ختمول خپله وظیفه گڼو.

په دې ډول دوی ټوله ورځ په کلیوالو مدرسو وگرځېدل او د دوهمې ورځې په مـازدیگر چې ملا صاحب بیرته سنگ حصار ته خپلې مدرسـې تـه راستنېده د ۵۳ کسـانو لیسـت یې ترتیب کړی و او هغوی وعده کړې وه چې سبا به په سنگ حصار کې د ملاصـاحب مدرسې ته ځان رسوي او بیا به له هغه ځایه حرکت پیلوي.

ملا صاحب مدرسې ته په را رسیدو خپلو ملگرو او طالبـانو تـه هـم همـدا خبره وکـړه او خپل شـرایط یې ورته بیان کړل چې بالاخره له څو تنوکشـرانو طالبانو پرتـه ټولـو نومونـه ولیکل. دا وخت له ملا صاحب سره د خپل مرکز په ډیپو کې له لـس میلـه کمـه اسـلحه وه حال دا چې سبا لسگونه طالبان راتلل چې بایـد مسـلح شـوي وای. قومنـدان حـاجي بشـر چې یو جهادي قومندان او پیسـه دار شـخص و او دا مهـال یـې د میونـد ولسـوالۍ

مرکز په تصرف کې و څرنګه چې په سیمه کې یې فساد او ګډوډي نه خوښېده نو له پخوا یې د سیمې د امنیت ساتلو په موخه وعده کړې وه چې که هر چا د سیمې د امنیت او د ټوپکیانو له ضرره د خلکو دساتلو په مقصد یو ترتیب او تشکیل جوړ کړ نو د وسلو او وسایطو اکمالات یې زه کوم.

ملا صاحب د طالبانو له راغونډولو وړاندې له حاجي بشر سره لیدلي و او خپله خبره یې ورسره شریکه کړې وه. د مدرسو طالبان تر خپل منځ له مشورې وروسته په شپه کې را روان شوي وو او د شپې ناوخته یې د ملا صاحب مدرسې ته ځان راورساوه. له زنګاوات، تلوکان، مشان او نورو سیمو نه د راغلیو طالبان شمیر له پنځوس تنو زیات وو.

د ملا صاحب د مدرسې یو تن استاد مولوي عبدالرحمن صاحب چې له مدرسې یو څه لرې کلي کې یې امامت درلود او د ورځې به د تدریس لپاره مدرسې ته ورته. په دې سهار یې چې کله په خپل مسجد کي لمونځ وکړ نو د عبدالغني په نوم یوه کلیوال ورته عجیبه خوب بیان کړ. کلیوال مولوي عبدالرحمن ته وویل: بیګا چې د جمعې شپه وه خوب مې لید چې ستاسو مدرسې ته د ملایکو لویه ډله راغلې وي، ملایکو سپینې جامې اغوستې وې، پاسته لاسونه یې وو او ډېر نوراني ښکاریدل. دا چې ملا صاحب د طالبانو د راغونډولو ټول ترتیب له عامه خلکو پټ جوړ کړی و او پرته له محدودو ملګرو یې څوک ورباندې خبر نه و د کلیوال دا وړ خوب په رښتیا هیښوونکی و. مولوي عبدالرحمن چې وروسته دا خوب ملا صاحب ته ووایه د نوموړي په خپلو مبارزه باور نور هم پوخ شو.

ملا صاحب سهار وختي دوه تنه د میوند ولسوالی مرکز کشک نخود ته واستول تر څو حاجي بشر ته خبر ورکړي چې طالبان در روان دي، خپله یې د خپلې جبهې د وسله تون پنځه میله وسله ۳ کلاشینکوف، ۱ راکټ او ۱ خفیف ماشیندار په طالبانو وویشل. نورو طالبانو چې وسلې ورسره نه وې، د ونو له لرګیو یې ډانګې پرې کړل او ځانونه یې ورباندې وسله وال کړل، شپه وروسته د حاجي بشر دوه موټر (هینو او داټسن) راورسیدل طالبان په کې سپاره او د میوند مرکز کشک نخود ته لاړل.

## یو ځل بیا میوند

میوند د کندهار ښار لویدیځ ته پراخه ولسوالي او افغانستان د تاریخ یوه پیژندویه سیمه ده. میوند په لومړي ځل هغه وخت مشهور شو کله چې په افغانستان د انگریزي استعمار د دوهم یرغل په مهال په دې سیمه کې افغان مجاهدینو انگریز لښکر ته په یوه مخامخ جگړه کې درنه ماتې ورکړه.

په ۱۸۸۰ میلادي کال کې چې کندهار ښار د انگریزانو تر سلطه لاندې و افغان شاهزاده ایوب خان له هرات څخه یو لوی لښکر را روان کړ تر څو له انگریزانو کندهار ونیسي. په کندهار کې انگریزي سرلښکر جنرال پریمروز د جنرال باروز په مشرۍ پیاده لښوا او د جنرال نټل په مشرۍ ۳۵۰ سپاره د ایوب خان د مخنیوي لپاره گرشک ته ولیږل. د جولای په سخته گرمي کې انگریز عسکر او افغان غازیان د میوند په یوه سوزنده صحرا کې سره مخامخ شول او سخته جگړه ونښته. انگریزانو د توپونو او وسلو درلودو له امله په لومړي سرکي ډیرمجاهدین شهیدان کړل (چې اوس هم په هغه سیمه کی د میوند د شهیدانو په نوم مشهوره هدیره موجوده ده) او نږدې و چې افغان غازیان مات کړي، خو د جگړې په وروستیو شیبو کې د یوې افغانۍ مجاهدې (ملالی) تحریضي-ټپې افغان غازیانو ته نوې روحیه ورکړه چې په پریکنده برید یې انگریزي لښکر ته تاریخي شکست ورکړ. د انگریزي منابعو له قوله په دې جنگ کې د انگریز لښکر ۹۶۹ عسکر ووژل شول چې ۲۹ تنه یې افسران وو، گڼ شمیر نور ټپیان او ډېر وسائل یې پاتې شول، د افغانستان تاریخ د انگریزانو تلفات تردې هم زیات ښیي. څرنگه چې سردار ایوب خان د جگړې په مهال د افغان لښکر مشر و نوموړي ته د همدې فتحې په ویاړ د غازي لقب ورکړل شو. دې جنگ د میوند، ملالۍ او ایوب خان نومونه د افغانستان د تاریخ برخه کړل. په همدې نومونو د هیواد په بیلابیلو سیمو کې واټونه، نشریې او تعلیمي اداري ونومول شوې. د ظاهر شاه د حکومت په دوران کې د میوند په مرکز کشک نخود کې یوه لویه لیسه جوړه شوه او نوم یې وربانـدې (د غازي محمد ایوب خان عالي لیسه) کیښود.

د غازي ایوب خان لیسه د شوروي یرغل په جګړه ایزو کلونو کې سقوط شوې وه او چا پکې درس نه وایه، په تنظیمي دوران کې هم لیسه همداسې خالي ولاړه وه، خو اطاقونه یې نسبتا روغ وو. ملا محمد عمر مجاهد او ملګري طالبان یې چې له سنګ حصار څخه د میوند مرکز کشک نخود ته راغلل. دا چې دلته یې کوم معلوم د میشت ځای نه درلود په لومړي ځل یې د غازي ایوب خان په لیسه کې واړول او همدا یې لومړنی مرکز شو.

په دې ډول میوند یو ځل بیا د افغانستان تاریخ ته نوی باب ور اضافه کړ، د طالبانو تحریک چې بیا ترې اسلامي امارت ورغېد، پیل یې هم له میونده و (هغه مهال ژړی ولسوالي نه وه جوړه او سنګ حصار د میوند مربوط و) او لومړنی مرکز یې هم د میوند په مرکز کشک نخود کې د میوندي اتل غازي محمد ایوب خان په لیسه کې جوړ شو.

## له پاټکیانو سره د نرم او ګرم چلند پیل

ملاصاحب د ۱۳۷۳ هجري شمسي کال د اسد په میاشت کې چې د ۱۹۹۴ میلادي له اګست سره سمون خوري، له خپلو ۵۴ تنو ملګرو سره چې یوازې پنځه تنه یې مسلح و کشک نخود ته راغی او په غازي ایوب لیسه کې یې واړول. قومندان حاجي بشر له دوی سره د څلویښت میله کلاشینکوفونو، څو ثقیلانو، دوو موټرو او ۳۰ لکه افغانیو نقدي مرسته وکړه. حاجي بشر چې مالداره سړی او د طالبانو د تحریک مخلص و وروسته یې طالبانو ته سل میله وسله په نغدو پیسو هم رانیوله او ورېې کړه.

ملا صاحب او ملګرو طالبانو یې په لومړي ورځ د میوند د مرکز واک په لاس کې واخیست او د لویې لارې امنیت یې ټینګ کړ، په سبا طالبان لاړل له کشک نخود نه لږ لیرې خواته په ملنګ کاریز سیمه کې د قومندان ابراهیم په نوم د یوه ټوپکوال پاټک یې ټول کړ او خپله قومندان یې د ریګ په خوا پسې واخیست. په دې سره د پاټکونو د ټولولو سلسله عملا پیل شوه. په همدې ورځ ملا صاحب په خپل تحمل سره د لومړي ځل وینې تویېدنې مخه ډب کړه. د ملک خدایداد په نوم د کلا شامیر یو قومندان چې ټوپکیان یې هم ورسره وو. کشک نخود ته راغلل او له طالبانو سره یې لفظي شخړه پیل

کړه، له لفظي شخړې نه خبره د مرمیو تیرولو ته لاړه. خو ملا صاحب په قومندان چې طالبانو ته یې بدې ښکنځلې کولې غیږ راتاو کړه او د طالبانو له منځه یې ویوست.

په میوند کې د طالبانو د قیام اوازه د لویې لارې موټر چلوونکو تر لرې علاقو ورسوله او له هرځایه د طالبانو دراتګ او له تحریک سره د پیوستون سلسله شروع شوه. پنځلس ورځې بعد ملاصاحب طالبان په عمومي سرک د کندهار ښار پخوا راتشکیل کړل. د سنګ حصار په برابر یې په عمومي سرک د سپین مسجد په سیمه خپل دوهم مرکز جوړ کړ. دا مهال د طالبانو د راتګ لړۍ لا زور واخیست او هر ورځ لسګونه نوي طالبان راتلل. د کندهار وتلی قومندان ملامحمد اخند له تحریک سره وصل او خپل ټوله وسله یې وروسپارله. د سنبلې د میاشتې په دوهمه نیټه (۱۷ / ۳ / ۱۴۱۵ هـق) ملا صاحب د سرزورو پاټکیانو داروخان او صالح د شړلو لپاره لومړني عملیات پلان کړل. دغه پاټکیان چې په نرمه خبره یې ځنځیران نه ټولول له سنګ حصار څخه ختیځ اړخ ته د پاشمول په استقامت یې پاټکونه او پوستې درلودې. ملا صاحب له سل تنه زیات طالبان دوه تشکیله کړل، لومړۍ ډله یې د مولوي عبدالصمد په مشرۍ د داروخان په پوستو د برید لپاره واستوله او خپله له لسګونو طالبانو سره یوځای د صالح په پاټک او پوستو د برید لپاره روان شو. دوی په شپه کې په کلیوالو سیمو کې پاشمول ته ووتل او د لوی سرک خواته ورپورته شول. له دارو خان سره دوه ورځې دزې تبادله شوې او صالح پرته له جګړې څخه په دوهمه شپه خپلې پوستې تخلیه کړې وې. وروسته دارو خان هم د تیښتې لاره ونیوه او پاشمول د طالبانو لاس ته ولوېد.

ملا جمعه خان چې د میوند د ګرماوک اوسیدونکی دی او د پاشمول په دې جنګ کې یې شرکت درلود وایي چې د پاشمول د نیولو په ورځ د سیمې کلیوال، ځوانان او ځو ته ماشومان چې مالونه یې پوول زموږ خواته راغلل. دوی ډېر خوشاله وو او ویل یې ښه شول چې دغه ټوپکیان مو پسې واخیستل. دې خلکو وویل چې دا داسې ظالمان وو چې موږ خپله څو ځله وژل شوې ښځې لیدلي دي چې د پوستو شاته کندو کې به یې غورځولې وې او بیا به کلیوالو پیدا او دفن کړې.

له پاشمول وروسته طالبان وتوانیدل چې لـه سنځري او شـاه اغـا دوراهـي ځخـه هـم پاټکونه ټول کړي او پرته له جګړې ځایي ټوپکیـان حبیـب الله جـان، نادرجـان او نـور پسې واخلي. له دې وروسته طالبان د حزب اسلامي لـه قومنـدان سرکاتـب سره مخـامخ شول. نوموړي پاټک پورته نه کړ خو طالبانو ته یې لار ورکړه چې د کندهار ډنډ سیمې ته تېر شي او هلته د ملا نقیب او استاد عبدالعلیم د جنګـي کرښـو تـر منـځ خپـل مرکـز فعال کړي.

په دې مهال د ملا صاحب پالیسي تر ډېره سوله ایزه او دعوتي پالیسي-وه چې بیا بیا د ټوپکیانو پوسـتو تـه ورتـه او دعـوت یـې ورکـاوه چې د ولـس لـه ځورولـو ځخـه لاس واخلي. طالبان چې د ۱۳۷۳ لمریز کال د سنبلې په لومړۍ اونۍ کې ډنـډ تـه رارسیدلي وو د میزان تر پنځلسمې ( څه باندې یوه میاشت ) وخت یې ټوپکیـانو او پاټکیـانو تـه پـه دعوت او مرکو تېر کړ تر څو له عامه لارو څخه ځنځیرونه پـه خپلـه ټـول او د ولـس لـه ځورولو لاس واخلي. ملا صاحب د کندهار ښار له قومندانانو لکه سرکاتـب، عبـدالعلیم، امیرلالي او نورو ټولو سره مخامخ ولیدل او خپل داعیه یې ورته وړاندې کـړه. د کمـونیزم د وخت پاتې شونې قومندان منصور چې د غره په کلي کـې یـې مرکـز و او د ترنـک لـه پله سره یې ځنځیر اچولی و. ملا صاحب یې مرکز ته ورغی او پوه یې کـړ چـې ځنځیـر ټول کړي. له کندهار ښار او اطرافو علاوه د پـاټکوالو بـل عمـده مرکـز د سـپین بولـدک سرحدي ښارګوټی و. دلته هم په لویه لاره ډېرې پوستې او ځنځیرونه لویـدلي وو او هـر ډول ظلم و اذیت روان و. ملا صاحب د بولـدک د ځینـو مخلصـو مجاهـدینو لکـه ملا خالقداد او ملا دوست محمد په توسط خپل دعوتي کار بولدک ته وغځـاوه. د بولـدک قومندانانو ته یې خپله غوښتنه وړاندې کړه چې ځینـو ومنلـه خـو د محمـدنبي او اختـر محمد په نوم د بولدک څو عمده قومندانان له ټوپکوالی لاس په سر نه شول.

په ډنډ کې څه باندې یوه میاشت د طالبانو مرکزیت چې په ترڅ کـې یـې کومـه جګـړه هم پېښه نه شوه، د طالبانو تحریک ته خورا قـوت او نظـم وروبښـه. پـه همـدې مرحلـه

کې د نورو ولایاتو او سیمو څخه د تحریک سره د ملګرتیا لپاره د طالبانو د راتګ لړۍ تر پخوا زیاته شوه او د کندهار یو شمیر وتلي جهادي اشخاص لکه ملامحمد رباني، [۱] ملا محمد غوث، ملا بورجان اخند، [۲] ملا نورالدین ترابي او د روس ضد جهاد د مهال

---

(۱) مرحوم ملا محمد رباني د ملا امیر محمد زوی په ۱۳۷۷ هـ ق کال کې د کندهار ولایت په کې په یوه علمي خاندان کې زیږیدلی و. د کشرتوب او ځوانۍ عمر یې د دیني علومو په زده کړه کې تېر کړی و. ملا محمد رباني (چې په حاجي معاون صاحب یې شهرت درلود) د شوروي ضد جهاد په کلونو کې د مولوي یونس خالص صاحب په اسلامي حزب کې شمولیت درلود او د مجاهدینو په عبوري حکومت کې یې د حج او اوقافو د وزارت مرستیالی دنده هم اجراء کړې وه. د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د اسلامي خوځښت له پیل سمدستي وروسته نوموړی د دې خوځښت سره مل شو او کله چې پلازمینه کابل د طالبانو لخوا فتحه شوه، نوموړی د سرپرستې شورۍ رئیس او وروسته د رئیس الوزراء په حیث وټاکل شو. حاجي معاون صاحب د اسلامي امارت دوهم بانفوذه مشر و چې په ښه علم، ښو اخلاقو، حلم، تواضع، هوښیارۍ او تقوی یې شهرت درلود. نوموړی د سرطان د سختې ناروغۍ په سبب د ۱۴۲۲ هـ ق کال د محرم د میاشتې په لومړۍ نیټه وفات شو. انا لله و انا الیه راجعون

(۲) شهید ملا امین الله چې په ملا بورجان آخند یې شهرت درلود د ملا محمد صادق زوی په ۱۳۷۹ هجري قمري کال کې د کندهار ولایت د پنجوایي ولسوالۍ په تلوکان سیمه کې زیږیدلی و. ملا بورجان د کشرتوب عمر په دیني زده کړو کې تېر کړی و او د کمونیزم ضد جهاد په کلونو کې نوموړی د یوه وتلي او پیاوړي مجاهد په حیث پیژندل کیده.

د اسلامي امارت له قیام سره نوموړی له پیله د دې خوځښت ملګری و، په ډیرو جګړو کې یې د مجاهدینو مشري وکړه، د ملا بورجان آخند په مشرۍ تر ټولو مشهور فاتحانه عملیات هغه و چې د پکتیا له ختیځو سیمو یې پیل کړل، د لوګر ولایت ازره، ورپسې یې د ننګرهار حصارک او بیا جلال اباد ښار ونیو. له دې وروسته یې لغمان او کونړ ولایتونه تر تصرف لاندې راوستل او کله یې چې د کابل د نیولو فاتحانه عملیات پیل کړل، عملیات بریالي او کابل فتحه شو، خو ملا بورجان آخند به همدې جګړه کې د وریښمین تنګي په سیمه کې د ۱۳۷۵ هجري لمریز کال د میزان په دریمه د شهادت لوړ مقام ته ورسید. ملا بورجان آخند چې د کابل فاتح لقب یې د نوم برخه ګرځیدلې د اسلامي تحریک له مخکښو شخصیتونو څخه و چې په همدې لار کې د شهادت جام نوش کړ.

ځینې نور مخور اشخاص د طالبانو له تحریک سره ملګري شول. د طالبانو په صف کې د پخوانیو مخورو مجاهدینو شمولیت او رهبرۍ ته رسیدلو هغه انګیرنه په نطفه کې خنثی کړه چې وروسته وربانديې د طالبانو مخالفینو ژبه تېکوله او ویل به یې چې طالبان له پخواني جهاد سره تړاو نلري بلکې د مجاهدینو د ځپلو لپاره راپورته شوي دي.

په همدې وخت کې ملا محمد اخند[1] د تحریک د عمومي نظامي قومندان په حیث وټاکل شو. کله چې له ټوپکیانو سره د څو اونیو دعوتي خبرې بې نتیجې شوې او د بولدک ځینو ټوپکیانو د جنګ خبرې پیل کړې، د میزان د میاشتې په ۱٦ مه نیټه (۱۴۱۵/۵/۳ هق) ملا صاحب او ملا محمد اخند په بولدک د عملیاتو پریکړه وکړه.

د عملیاتو د تطبیق لپاره عمومي قومندان ملا محمد آخند، ملا عبدالخالق آخند، ملا حمید الله اخند او بل د ملا محمد رباني آخند ملګری ملا محمد او ورسره نور طالبان انتخاب شول.

---

(۱) ملا محمد آخند د مولوي عبدالواحد زوی په ۱۳۸۲ هجري قمري کال کې د کندهار ولایت د ارغنداب ولسوالی په منار کلي کې په علمي خاندان کې زیږیدلی دی. دشوروي یرغل په مهال ملا محمد اخند د کندهار د وتلي مجاهد شهید لالا ملنګ په جبهه کې جهاد شروع کړ. دغه جبهه چې د ستر مجاهد مولوي محمد یونس خالص صاحب د تنظیم مربوط وه، د اسلامي امارت څو تنه نور مشران لکه ملا محمد حسن رحماني، سید عبدالله آغا (تورک آغا) ملا حیات الله آخند (حاجي لالا) او ګڼ نور مخور مجاهدین له همدې جبهې څخه وو. د طالبانو د اسلامي تحریک له پیل سره نوموړي د خپلې جبهې ټوله وسله تحریک ته وقف کړه او خپل مجاهدین یې هم د اسلامي امارت په صفوفو کې استخدام کړل. له همدې خایه نوموړی د اسلامي تحریک د لومړني نظامي قومندان په حیث وټاکل شو، د ملا محمد اخند په مشرۍ د بولدک ولسوالي او بیا د کندهار ښار فتحه شول، وروسته نوموړي په هلمند، فراه او نیمروز کې هم له مخالفینو سره ډېر جنګونه وکړل تر دې چې د ۱۳۷۴ لمریز کال د سنبلې په ۱۲ مه نیټه د هلمند په شوراب دښته کې له مخالفینو سره په مخامخ جګړه کې په شهادت ورسید.

ملا محمد آخند وايي چې پلان داسې و چې له ميوند او ډنډ څخه د طالبانو له ټولو ډلګيو څخه پنځه پنځه تکړه مجاهدين وغوښتل شول. د ملا صاحب امر و چې يو هم په دې پلان مه خبروئ چې په کوم ځای حمله کوو. وروسته دغه طالبان په ژړی ولسوالۍ کې يوه خالي سرای ته انتقال شول. له هغه ځای نه په دوو هينو موټرو کې( چې يو د حاجي بشر او بل د شهيد لالا ملنګ د جبهې لخوا تحريک ته ورکړل شوي وو) طالبان ځای پر ځای شول چې په هر موټر کې تقريبا پنځوس کسان وو. د حرکت په وخت کې يې طالبان فی الجمله خبر کړل چې څرنګه عمليات لرو، په موټرو يې ټاټونه اچولي وو تر څو د لويې لارې توپکيان خبر نه شي او د عملياتو پلان افشاء نه شي.

بولدک ته له رسيدو لږ وړاندې دواړه موټران ودرول سوه، ټاټونه ورڅخه ليري کړای شول، د طالبانو عملياتي تشکيل جوړ او هر ګروپ ته خپل اهداف ورپه نښه شول تر څو له رسيدو سره سم په خپلو اهدافو کار وکړي. له لږ توقف وروسته موټرو حرکت وکړ، کله چې د بولدک مرکز ته ورسيدل يو موټر د ولسوالۍ ودانۍ ته داخل شو او دوهم له پاټک سره ودريد، طالبان تري ښکته شول او په ډېر کم وخت کې يې د ولسوالۍ تعمير، د امنيت ګروپ، د محکمې سرای او نور مهم ځايونه تر تصرف لاندې راوستل.

په دې ورځ د بولدک ښارګوټي لويديځ اړخ طالبانو ونيو او ټوپکيانو له چوک ختيځې خوا ته شاتګ وکړ او همدلته يې مورچې ټينګې کړې. دوه ورځې نور پدې وجه جګړه ولاړه وه چې د قومي مشرانو په توسط خبرې روانې وې ترڅو سيمه بې له جنګه تصفيه شي. خو دوه ورځې بعد ماښام مهال د يوه تصادفي جنګ په پايله کې ټوپکيانو شکست وخوړ او بولدک په بشپړه توګه د طالبانو په ولکه کې راغی.

د بولدک نيول يوه لويه پيښه وه چې رسنيو سرټکی کړه او په لومړي ځل د طالبانو پاڅون مطبوعاتي شو چې د هيواد او نړۍ خلک ترې د راډيوګانو له لارې خبر شول. د طالبانو پاڅون چې شاوخوا دری مياشتې وړاندې په ميوند کې پيل شوی و دا چې د بولدک له نيولو سره په مطبوعاتو کې ياد شول د نړۍ او هيواد ځينو ناخبره ليکوالو

داسې وانګیرله چې د طالبانو تحریک له بولدکه پیل شو چې همدا بې بنسټه خبره د طالبانو په اړه په ډېرو لیکل شویو اثارو او لیکنو کې هم یاده شوې ده.

د بولدک د مکملې فتحې په سبا ملا صاحب بولدک ته راغی، له ملا محمد اخند او نورو مجاهدینو سره یې مشورې وکړې، دوی د بولدک د ښار له نیولو وروسته هم په دې نظر و چې د کندهار د مرکز ټوپکیان د خبرو په توسط له ظلم او اذیت څخه لاس اخیستلو ته تشویق کړي. په دې وخت کې د طالبانو مهم مرکز په ډنډ کې و، ملا صاحب به اکثره وخت شپه په سنګ حصار کې په خپل کور کې کوله او د ورځې به په هغه لاره ډنډ ته راته چې د سرکاتب له پاټکونو را تیریدله.

د بولدک نیولو د کندهار لوی قومندانان چې تردې وخته یې طالبان کوم مهم خطر نه باله سخت وویرول او پر دې پوه شول چې طالبان به بالاخره ددوی ځنځیران هم ورټول کړي. د بولدک له نیولو څو ورځې بعد یوه شپه د کندهار قومندانانو پټه غونډه وکړه. په غونډه کې له ملانقیب پرته ټولو قومندانانو شرکت کړی و، دوی پر دې موافقه وکړه چې باید د طالبانو په خلاف په ګډه او همغږی څوابي عملیات پیل کړي. د پروګرام له مخې سرکاتب ته دنده وسپارل شوه چې سبا سهار د طالبانو رهبر ملا محمد عمر مجاهد کله چې د سنګ حصار نه ډنډ ته ځي په لاره ورته کمین ونیسي-او له ملګرو سره یې په شهادت ورسوي. بل اړخ ته به د منصور په مشری د امیرلالي، ګل اغا، سرکاتب او نورو ټوپکیان په بولدک په ګډه برید کوي او طالبان به له منځه وړي. د طالبانو د له منځه وړلو لپاره دغه پلان د مجلس ټولو شریکانو تائید کړ او هر یوه د خپل ورسپارل شوې دندې د ترسره کولو وعده وکړه.

خو د مجلس په پای ته رسیدو لا دوه ساعته نه وو اوښتي چې ملا محمد عمر مجاهد له ټول جریان څخه خبر شو. د مجلس له منځه یو تن چې له طالبانو سره یې خواخوږي درلوده د غونډې له اختتام وروسته په نیمه شپه سنګ حصار ته لاړ او هلته یې ملا صاحب ته خبر وروړ چې د سبا لپاره درته داسې پلان جوړ شوی دی.

ملا صاحب چې له ملا محمد اخند سره یې همیشنی رابطه درلوده سمدستي یې د مخابرې له لارې په ملا محمد اخند غږ وکړ چې دا وخت په بولدک کې و. هغه یې د

کندهار د لویو ټوپکیانو له ګډ پـلان څخـه خـبر کـړ او د حملې پـه وړانـدې دفاع او د متقابل برید امر یې ورکړ. سبا ملا صاحب خپله ډله ته له تللو څخـه پاتـه شـو او پـه دې ډول د سرکاتب دسیسه بې پایلې شوه. طالبانو چې لـه بولـدک څخـه د کنـدهار پخـوا د وت په سیمه کې د محمد نبي پاټک یې له وړاندې ټول کـړی و د حملې د دفاع لپـاره نور هم مخکې شول او د انځرګي سیمه یې له سیمه ایز قوماندان ولي شاه څخه پرتـه لـه جنګه ونیوله. د کندهار د ټوپکیانو قوه چې په ګڼ شمیر جنګیـالیو، ټـانګونو، توپونـو او نورو درنو وسلو سمباله وه په تخته پل یې لنګر واچاوه.

ټوپکیانو طالبانو ته حال راواستاوه چې تسلیم شي کنه له خاورو سره به یـې برابـر کـړي. خو ملا محمد اخند چې د جنګ په هنر وارد سړی و، مقابل اړخ تـه یـې فرصـت ورکـړ چې خپل قهر تخلیـه او زور وکـاروي. طالبـان پـه دفـاعي حالـت کـې وو او د د فـاعي کمربند په شکل یـې د دوي مخـه نیـولې وه. د کنـدهار ټوپکیـانو دري ورځـې مسلسـل خپلې ټولې درنې وسلې وکارولې او بیا بیا یـې تعرضـونه وکـړل خـو کـوم پرمختـګ یـې ونکړای شو. د بولدک تښتیدلیو ټوپکیانو محمد نبي او اختر محمد پډې منځ کې حملـه وکړه د بولدک په لاره د مېل پل یـې ونیـو او طالبـان یـې پـه منـځ بیـل کـړل، خـو د مـلا رحمت الله آخند[1] په مشـرۍ طالبانو په ځوابي حملـه شکسـت ورکـړ او پـه ځـو مـوټرو سربیره یې ځـو تنه بندیان او ګڼ وسایل هـم ترې ونیول. له دې جګړې سـره هم مهال

(۱) شـهید مـلا رحمـت الله اخنـد د الحـاج مـلا فـیض محمـد آخنـد زوی پـه ۱۳۵۰ هــ ش کـال کـې د کنـدهار ولایـت د ارغنـداب ولسـوالي پـه جـازه کـلي کـې پـه یـوه دینـداره کـورنی کـې دنیـا تـه سـترګې روښې کړې.

مـلا رحمـت الله اخنـد د اسـلامي تحریـک لـه لومړنیـو مهمـو جهـادي مشرانو څخـه و چـې د کنـدهار ښـار په فتحـه، د هلمنـد پـه عملیـاتو، او دهـرات پـه فتحـه کـې مهـم نقـش درلـود. د اسـلامي تحریـک د اولنـي نظـامي قومنـدان مـلا محمـد آخنـد لـه شـهادت وروسـته مـلا رحمـت الله آخنـد د هغـه پـه ځـای تعین شـو. مـلا رحمـت الله اخنـد د ژونـد پـه وروسـتیو کـې کابـل تـه نـږدې د ریشـخورو پـه سـاحه کـې د جنګـي کرښې مسؤلیت درلود چې همدلته د ماین په یوه چاودنه کې شهید شو.

طالبانو د بولدک د پښې په غره کې په هغو ډیپوګانو هم عملیات پیل کړل چې له همدغو قومندانانو سره یې تړاو درلود، طالبانو دا ډیپوګان ونیول او د وسلو او مهماتو خورا سترې ذخیرې په لاس ورغلې.

د تخته پل په جګړه کې چې کله د ټوپکیانو تهاجمي زور وخوت نو ملا محمد اخند ورباندې د ځوابي عملیاتو پلان جوړ کړ. د ۱۱۵ په شاوخوا کې طالبان یې دوه تشکیله کړل، خپله یې د ملا رحمت الله اخند په همکارۍ د سرک لوړې خواته حمله وکړه او د ښکته خوا مشري یې ملا سراج الدین آخند ته وسپارله. دوی په تیاره کې عملیات پیل کړل، شیبه وروسته په دواړو خواوو ټوپکیانو شکست وخوړ او پرمخ تلونکي طالبان د تخته پل په مرکز کې سره وصل شول، له همدې ځایه یې ټوپکیان پسې تعقیب کړل او په شپه شپه کې یې د کندهار تر هوایي ډګره وځغلول. ملاصاحب چې ټوله شپه د مخابرې له لارې له ملا محمد اخند سره په ارتباط کې و کله چې طالبان له تور کوتل واوښتل نو یې امر ورکړ چې له هوایي ډګر سره توقف وکړي ځکه هسې نه ښار ته په تیاره کې په ننوتو له تلفاتو سره مخ شي.

د لارې په اوږدو کې هغه ټانګونه او موټر چې له ټوپکیانو چالان پاته شوي وو طالبانو را رهي کړل. طالبانو په سهار کې د کندهار هوایي ډګر هم ونیو او دا چې د ښار خواته د ټوپکیانو د مقاومت کوم اثر نه ښکاریده د ښار خواته روان شول، دا مهال د خاکریز د وهاب خان کومکي قوه راورسیده چې د امیرلالي د مرستې لپاره را روانه شوې وه، له لنډ جنګ نه وروسته طالبانو شکست ورکړ او خپله وهاب خان د امیرلالي د دوو نورو قومندانانو عبدالله خان او بارو په شان طالبانو ژوندی ونیو. په همدې ورځ د غره په کلي کې د منصور مرکز هم تصفیه شو او خپله منصور چې د تیښتې په مهال په ریګ کې ویشتل شوی و طالبانو یې جسد له هوایي ډګر سره د ټانګ په میل راخوړند کړ.

په دې ډول د کندهار په ښار کې د امیرلالي، ګل اغا، منصور او عبدالعلیم اړوند ځایونه د طالبانو لاس ته ورغلل، ملا نقیب خپل تشکیلات په خپله خوښه لغو کړل او ټول وسائل او تر لاس لاندې ځایونه یې طالبانو ته وسپارل. طالبانو څو ورځې وروسته یوازیني پاته قومندان سرکاتب هم له لنډ جنګ وروسته له سیمې وشاړه ورپسې

خاکریز او شاولیکوټ ولسوالي هم تصفیه شوې تر څو په دې ډول د افغانستان لومړنۍ پلازمینه او په جنوب کې کلیدي ښار تاریخي کندهار په بشپړ ډول د ملا محمد عمر مجاهد تر واکمنۍ لاندې راغی.

## کندهار او د نظام لومړۍ هسته

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ طالبانو د ۱۳۷۳ لمریز کال د عقرب د میاشتې په ۲۱ نیټه (۱۴۱۵/۶/۸هق) د افغانستان پخوانۍ پلازمینه او دوهم ستر ښار کندهار تر خپل واک لاندې راووست.هغه څه چې دې ښار او نورو مفتوحه سیمو لومړنۍ اړتیا ورته درلوده هغه د یوه صالح او معیاري حکومتي نظام په پښو درول و.

له طالبانو وړاندې کندهار او د افغانستان نورو سیمو کوم د حساب وړ حکومتي نظام نه درلود او په هر ځای د بشپړ هرج و مرج او بې نظمۍ واک چلېده. ملا صاحب په خپل لومړني اقدام کې په شرعي بنیادونو د ولاړ نظام او اداري سیستم د اقامه کولو هڅه پیل کړه.

ملا محمد عمر مجاهد چې د دې اسلامي خوځښت مؤسس او مبتکر و، د پاڅون لپاره یې دعوت چلولی و او په یوازې ځان یې له ټوپکیانو سره د مبارزې او د هغوی په مقابل کې د مخلصو مجاهدینو او طالبانو د اماده کولو اقدام کړی و عملا یې د اسلامي تحریک په رأس کې د عمومي أمیر یا مشر په حیث قرار درلود. نوموړي د کندهار له فتحې وروسته لومړی د حکومتي سیستم د احیاء لپاره د کندهار د مهمو ادارو مسؤلین وټاکل.

ملا محمد حسن اخند د کندهار د والي په حیث، ملا محمد اخند د تحریک د عمومي نظامي قومندان په حیث، ملا بورجان اخند د امنیې قومندان، ملا عبید الله اخند د قول اردو قومندان، مولوي عبدالسلام د هوایي ډګر مسؤل، مولوي احسان الله احسان د مستوفیت مشر، ملامحمد عباس آخند د کندهار ښاروال، ملا حاجي محمد اخند د بانک مشر، مولوي وکیل احمد متوکل د اطلاعاتو او کلتور رئیس او ملا الله داد طبیب د ګمرګ د رئیس په حیث وټاکل شول.

دې مسؤلینو په خپلو ادارو کې فعالیت له صفر څخه شروع کړ، د کندهار په حکومتي ادارو کې د نظام په ځای د ټوپکیزم آثار پاته وو، د طالبانو لومړی کار دا و چې د کندهار خدماتي ادارې او ریاستونه د ټوپکیانو د نشه یي توکو، بدکاریو او وحشتونو له اثارو تصفیه کړي.

په همدې موده کې د تحریک د تشکیلاتي جوړښت د پراختیا او انکشاف په لاره کې د ملا صاحب بل د پام وړ اقدام د عالي شورا منظورول او تشکیلول و چې په هماغو ابتدائي شرایطو کې یې په ځانګړې ډول په سیاسي او انتظامي چارو کې مهم رول درلود. د اسلامي تحریک عالي شورى چې په پیل کې یې اته کسه اعضاء درلودل وروسته یې د اعضاوو شمیر همیشه زیاتېده او کمېده. دې شورا د اسلامي تحریک له امیر ملا محمد عمر مجاهد وروسته دوهم مهم او باصلاحیته موقف درلود او د مهمو چارو په اړه به یې غور، مشورې او فیصلې کولې.

د عالي شورى غونډې په پیل کې د ملا صاحب په مشرى او وروسته په نظامي چارو کې د ملاصاحب د ډیرې بوختیا له امله د ملا محمد رباني په سرپرستۍ ترسره کېدلې. ملا صاحب چې د تحریک له پیل نه بیا د هرات د فتحې تر وخته یې ډیره توجه نظامي اړخ ته وه او ډېر وخت به له نظامي مسؤلینو سره مصروف او حتى کله به د جګړې سیمو ته تلو، په دې مرحله کې سیاسي چارې، لیدنې کتنې، ملکي او خدماتي امور، د نویو راتلونکو علماوو او طلباوو استقبال او نورې ډیرې غیر نظامي چارې د عالي شورا لخوا ترسره کېدلې.

ملا صاحب د کندهار د ولایت مقام د خپل میشت ځای په حیث انتخاب کړی و، دا مهال چې له مختلفو سیمو د مدارسو طالبان او مجاهدین په ډلو ډلو راتلل او په تحریک کې شاملېدل، ملا صاحب به ورسره د ولایت په ودانۍ کې لیدل. له هغوی یې بیعت قبلاوه، هغوی ته یې مسؤلین او ډلګۍ مشران ورتعینول او بیا به یې د اړتیا او مصلحت سره سم نظامي یا ملکي وظایفو ته لیږل. د طالبانو له تحریک وړاندې چې په هیواد دننه او بهر د مدارسو د طالبانو تشکیلات د جمعیت طلبه یا د اهل السنة والجماعة د بیلابیلو اتحادیو په نوم موجود وو د تحریک له پیل سره دا ټول تشکیلات

په همدې واحد صف کې داخل شول او ملا محمد عمر مجاهد يې د خپل عام امير په حيث تصويب کړ. په ۲۲/۹/۱۳۷۴ هـ ش نېټه (۲۰ / ۷ / ۱۴۱٦هـق) ملا محمد عمر مجاهد د يوه فرمان په صدور سره له تحريک د باندې د طالبانو ټول ګروپونه يا اتحاديې منحل اعلان کړل چې په دې سره د صف وحدت نور هم تضمين شو.

په کندهار کې د نظام د لومړنۍ هستې له رامنځته کيدو سره حکومتي سيستم په فعاليدو شو، ښاروالۍ، بانک، آب و برق، صحت عامې، معارف او نورو رياستونو خدمات پيل کړل. په قضايي برخه کې د کندهار محکمه فعاله شوه او د روس ضد جهاد د مهال مشهور قاضي مولوي سيد محمد پاسنی صاحب يې د رئيس په حيث وټاکل شو. په فرهنګي برخه کې د کندهار راډيو ستيشن فعال شو او د شريعت غږ راډيو په نوم يې خپرونې پيل کړې، د اطلاعاتو کلتور رياست لخوا د طلوع افغان جريده چې څوکاله له چاپه پاته وه يو ځل بيا يې چاپ او نشر پيل شو.

د نظام له اوږده غياب وروسته چې په کندهار او وروسته د افغانستان په نورو برخو کې د طالبانو د اسلامي تحريک لخوا کومه اداره رامنځته شوه. يو امتياز يې دا و چې دغه نظام په شرعي بنيادونو ولاړ و او په هره چاره کې يې اسلامي شريعت ته د تر ټولو معتبر قانون په نظر کتل. همدغه نظام د فتوحاتو په تعقيب نورو ولاياتو او ولسواليو ته هم پراخېده.

### طالبان له مدرسو د مبارزې د ميدان پر لور

که څه هم د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د طالبانو تحريک څو مياشتې پخوا پيل شوی و، خو د سپين بولدک او کندهار ښار له نيولو وروسته په لومړي ځل رسنيو د طالبانو د خوځښت په اړه راپوررونه خپاره کړل. په دې سره په هيواد دننه او په نورو هيوادونو خصوصا د هجرت په کمپونو کې هغه خلک چې د هيواد روان وضعيت ځوروليي وو او د اميد ځرک ته منتظر وو، ټولو ته تلوسه پيدا شوه چې د دې نوي خوځښت په اړه معلومات وکړي او که چيرې د دوی له هيلو سره سم او د جهادي اهدافو او هيواد په ګټه وي نو به ورسره يوځای شي. په دې ډول که له يوې خوا د هيواد له بيلابيلو سيمو څخه مخلصو او متدينو جهادي قومندانانو او اهل خير اشخاصو د

طالبانو له تحریک سره اړیکي نیول پیل کړل. بلې خوا ته د هیواد له بیلابیلو سیمو او په پاکستان کې د افغان مهاجرینو له کمپونو څخه د مدرسو طالبانو هم له تحریک سره د اړیکو او وصل کیدو هڅې پیل کړې.

ملا خیر الله خیرخوا صاحب وایي چې هغه مهال یې د پاکستان د کوټې په ښار کې د هجرت ژوند درلود او په مدرسه کې یې دیني سبقونه ویل چې د طالبانو د تحریک له جوړیدو خبر شو. بیا د مدرسو افغان طالبان سره راټول شول چې شمیر یې ۳۷۰ نفرو ته رسیده، دوی اراده درلوده چې په کندهار کې له نوي راټوکیدلي اسلامي تحریک سره یو ځای شي. خو دا چې اکثره غریب طالبان وو حتی دومره پیسې هم نه وې چې دوی وریاندې ځانونه تر کندهار ورسوي. بیا د (لالک ماما) په نوم د کندهار یو تن اهل خیر شخص طالبانو ته موټر کرایه کړل او هغوی په کې تر کندهاره لاړل او له اسلامي تحریک سره یوځای شول.

مولوي شهاب الدین دلاور صاحب وایي: هغه وخت مې په پیښور کې د هجرت په کمپ (سیاف فامیلیو) کې مدرسه درلوده چې ۴۰۰ تنه لیلیه طالبان راسره اوسیدل. همدومره نور نهاري طالبان وو. دغه راز شیخ الحدیث مولوي محمد نعیم صاحب، حاجي مولوی محمد صادق صاحب، مولوي نور محمد ثاقب صاحب او گڼ نور علماء کرام هم د پیښور په بیلابیلو سیمو کې په تدریس بوخت وو. کله چې په کندهار کې اسلامي تحریک پیل شو. نو هلته د هجرت په کمپونو کې علماء کرام سره کیناستل او مشورې یې پیل کړې، علماء کرامو ته معلومه شوه چې دا واقعا یو اسلامي او افغاني حرکت دی، نو علماء کرامو یې حمایت پیل کړ، د مهاجر بازار په کمپ کې موږ یوه لویه جلسه جوړه کړه چې ټولو جهادي تنظیمونو ته منسوبو علماء کرامو په کې گډون درلود. په دې جلسه کې مهاجرو علماء کرامو په اتفاق سره د طالبانو د اسلامي تحریک حمایت وکړ او د مدرسو طالبانو ته یې وویل چې له تحریک سره دې یو ځای شي. تر دې پورې چې د کندهار د نیولو په شپو ورځو کې تر ۲۵۰۰ زیات طالبان یوازې په پیښور کې د مهاجرو افغانانو له مدارسو له اسلامي تحریک سره یوځای شول.

مخکې يادونه وشوه چې د طالبانو د اسلامي تحريک له پيل وړاندې په ديني مدارسو کې افغاني طالب العلمانو يو لړ محلي تشکيلات درلودل چې د اهل السنة و الجماعة د اتحاديو تر عنوان لاندې يې فعاليت درلود. د طالبانو د اسلامي تحريک له پيل سره په دغو اتحاديو کې شامل طالبان په جمعي شکل له اسلامي تحريک سره يو ځای شول. قاري دين محمد حنيف صاحب وايي چې د افغانستان د شمالي ولاياتو ډيرو طالبانو د تحريک له پيل سره سم کندهار ته ځانونه رسولي او له اسلامي تحريک سره يوځای شوي وه. خو دا سلسله وروسته هم روانه وه، کله چې طالبانو د خوست ولايت ونيو، نو يوازې د بدخشان ولايت ۱۱۷ تنه طالبان چې د هجرت د ديار په ديني مدارسو کې يې درسونه ويل، خپل درسونه يې پريښودل او په خوست کې له اسلامي تحريک سره ملګري شول.

د هيواد او د هجرت د ميني له بيلابيلو سيمو د مدرسو د طالبانو راتګ او له تحريک سره وصل کيدلو که له يوې خوا د تحريک افرادي قوت څو برابره زيات کړ. له بلې خوا څرنګه چې دغه طالبان د هيواد د بيلابيلو سيمو او قومونو سره تړلي وو تحريک يې افغان شموله هم کړ. له مدارسو او مساجدو راوتلي او له ديني کتابونو را ولاړ شوي دغه ځوان طلباء هغه صالح او مصلح قشر وو چې ډېر ژر يې د افغان ولس په زړونو کې ځای وموند. افغان ولس چې ليدل چې اوس په لويو لارو د بدکارو او فاسقو ټوپکيانو پوستې او ځنځيران نشته، بلکې پر ځای يې هره خوا د سفيد پوشو طالبانو نوراني څيرې، د جماعت لمونځونه، دعوتي مجالس او اصلاحي فعاليتونه ښکاري نو د طالبانو اسلامي تحريک يې نه يوازې د يوه واقعي ديني او د جهاد ارمانونو ته د ژمن خوځښت په حيث ومانه بلکې هر راز همکاري يې هم ورسره پيل کړه. همدا ولسي-همکاري وه چې په مټ يې طالبانو وکړای شول په ډيره کمه موده کې د هيواد له اکثره سيمو د ټوپکيزم تغر ټول کړي.

### د نظام پراختيا او فتوحات

په کندهار کې د طالبانو له استقرار او تمکين وروسته دې خوځښت عملا د يو سياسي جهت په حيث بروز وکړ. په همدې مهال د هيواد له ټولو سيمو څخه علماء کرامو، د

مدرسو طالبانو او هغو مجاهدینو چې غوښتل یې د فساد په وړاندې په جهاد کې ګډون وکړي کندهار ته یې مخه کړه. په دې سره د طالبانو د تحریک قوت ورځ تر بلې زیاتېده او نورو سیمو ته د پراختیا توان یې پیدا کاوه. نوموړو علماءکرامو، طالبانو او مجاهدینو د اسلامي تحریک د همکارۍ ترځنګ دا غوښتنه هم کوله چې د دوی ولایاتو او سیمو ته دې هم تحریک وغځول شي ترڅو هلته هم د فساد او ګډوډۍ مخه ونیول شي.

همدا لامل و چې د ۱۳۷۳ لمریز کال د جدي په میاشت کې د ملاصاحب په مشرۍ د اسلامي تحریک مشرانو دریو خواوو ته تشکیلات وکړل. د ملا نورالدین ترابي تر مشرۍ لاندې د زابل ولایت خوا ته، د ملا محمد رباني په مشرۍ د روزګان ولایت خواته او د ملا محمد آخند په مشرۍ د هلمند ولایت خواته چې له دې وروستي تشکیل سره ملا صاحب خپله هم ملګری و.

ملا محمد عمر مجاهد وتوانېد چې د لښکرګاه، کرشګ او د هلمند د ځینو مرکزي سیمو واک پرته له جنګه ترلاسه کړي د هلمند په شمالي ولسوالیو کې د امیردادو او غفار اخندزاده په نوم قومندانانو د جنګ اراده څرګنده کړه. ملا صاحب لومړی دوی ته د هیواد د څو تنو مشهور عالمانو (مولوي محمد صادق، مولوي موسی جان، مولوي محمد میر، مولوي شهاب الدین دلاور، مولوی نور محمد ثاقب او نورو) هیئت ورولیږه. د دې ترځنګ یې څو نور هیئتونه هم ورولیږل او مسلسلې غوښتنې ترې وشوې تر څو له ناروا کړنو لاس واخلي او د ظلم د تغر ټولولو په کار کې له اسلامي تحریک سره وصل شي. خو هغوی دا جرګې او غوښتنې و نه منلې چې متقابلا د ملا محمد اخند په مشرۍ طالبانو وربانديې عملیات پیل کړل بالاخره د دوو ورځو په جریان کې یې د سنګین ښاروان کلا، کجکي ولسوالي، موسا کلا او نور اړوندې سیمې ترې تصفیه کړې او په دې ډول هلمند مکمل د طالبانو تر واک لاندې راغی.

په همدې ورځو کې چې ملاصاحب د هلمند ولایت د چارو په سمالښت مصروف و روزګان هم پرته له جنګه طالبانو ونیو او د غزني په خوا طالبان د کلات، شاجوی او قرباغ له نیولو وروسته پرته له جنګه د جدي په ۲۷ مه غزني ښار ته داخل شول. دا

وخت چې د غزني د نیولو لپاره د حکمتیار او حزب وحدت قواوې هم راټولې شوې وې او د غزني ښار ختیځ او جنوب ته یې د روضې او یونټ سیمې نیولې وې ملا صاحب د دلوې په ۱۴ مه نیټه د څرخکي په واسطه دې تاریخي ښار ته سفر وکړ او هلته یې وضعیت له نږدې وکوت. په همدې ورځو کې د غزني ښار په ختیځ اړخ کې طالبانو د حکمتیار او مزاري له ځواکونو سره جنګ وکړ چې مخالف لوري شکست وخوړ او د وردګو ولایت د سیداباد له نیولو وروسته طالبان تر میدان ښاره ورسیدل.

د دلوې د میاشتې په ۲۲ مه نیټه (۱۱/۹/۱۴۱۵هـق) ملا صاحب له څو تنو نورو مشرانو سره یوځای په څرخکه کې لومړی غزني او بیا د وردګو ولایت سیداباد ولسوالۍ ته لاړل. دا وخت طالبان د میدان ښار لمنو ته رسیدلي و خو لا هم میدان ښار طالبانو نه و نیولی.

د روژې میاشت وه چې ملا صاحب شیخ اباد ته راغی. دا چې د ځیلې سخت یخ و او طالبانو تردې وخته کومه مجهزه قرارګاه نه وه سمباله کړې د طالبانو یوه قومندان ملا احمد الله اخند د شیخ اباد په ښارګوټي کې له یوه هوټل سره خبره وکړه چې د پیسو په مقابل کې د طالبانو مشرانو ته د روژه مات، پیشلمي او د شپې تیرولو امادګي ونیسي.

په دې غونډه کې په ملاصاحب سربیره نورو مشرانو لکه ملامحمدرباني، ملا نورالدین ترابي، ملا بورجان اخند، ملا احمدالله، ملا محمد غوث، معلم فداء محمد او ډیرو نورو مشرانو هم ګډون درلود. مجلس په دې فیصله وکړه چې د میدان ښار له نیولو وروسته دې د کابل پرخوا پرمختګ نه کیږي، بلکې په عوض دې د لوګر خواته پرمختګ وشي څکه د تنګي له درې څخه د حزب کسانو پرلپسې په طالبانو له شا بریدونه کول. په مجلس کې په دې خبره هم تاکید وشو چې له احمد شاه مسعود سره دې د جنګ په ځای د سولې هڅه وشي تر څو روان مشکلات پرته له جنګه حل شي.

د همدې غونډې په سبا طالبانو میدان ښار له معمولي جنګ نه وروسته د حزب له ځواکونو ونیو او ورپسې یې د لوګر پل عالم او د کابل چهاراسیاب ولسوالۍ هم تر واک لاندې راوستې. د چهار اسیاب له نیولو وروسته ملامحمد عمر مجاهد په څرخکه طیاره کې پل عالم ته راغی [illegible] په ترکیب کې یې ملامحمد عمر

مجاهد، مولوي احسان الله احسان، ملامحمد رباني، ملامحمد غوث، ملا نورالدین ترابي، ملا عبدالسلام راکتي، ملا یارمحمد، ملامحمد آخند، حاجي ملا محمد آخند، ملا بورجان اخند او داسې نور شامل وو یو ځل بیا مشورتي غونډه وکړه او په دې یې بحث وکړ چې تردې وروسته څه کوو؟ فیصله په دې وشوه چې د کابل خواته به یوازې خپل خطونه ټینګ کړو او حرکت به له هلمنده د فراه خواته پیل کړو ځکه په دې وخت کې اسمعیل خان د طالبانو د ځپلو لپاره د لوی ځواک په برابرولو بوخت و.

ملا صاحب چې د فساد سره د مبارزې په لاره کې له جګړې وړاندې سوله ایز حل اړین باله طالبان یې د جګړې له پیل وړاندې همیشه په نرم چلند مأمور کړي وو. طالبانو په چهار اسیاب کې د حکمتیار د واک سیمو ته داخل شوي د مسعود کسان له نیولو وروسته بیرته ازاد کړل او د ملا محمد رباني په مشرۍ یې یوه باصلاحیته پلاوي ته امر وکړ چې په میدان ښار کې له مسعود سره مخامخ لیدنه او خبرې وکړي.

ملا نورالدین ترابي وايي کله چې احمدشاه مسعود د ملاقات لپاره میدان ښار ته راته، زه په کندهار کې وم. ملاصاحب ماته وویل چې همدا نن عاجل په هلیکوپتر کې لاړ شه، مسعود راځي ډېر نرم او ښه مجلس ورسره وکړئ او اطمینان ورکړه چې موږ یقیناً ستاسو سره د نورو ټوپکیانو په شان معامله نه کوو چې پر کور دې کینوو بلکي ته که د روان فساد په مقابل کې له موږ سره همکارې وکړې ته به زموږ د تحریک مهم شخص يې. په میدان ښار کې د مجلس په مهال چې کله د طالبانو په استازیتوب ملا محمد رباني مسعود ته د طالبانو مرام او هدف بیان کړ نو ده وویل : زه داسې پوه شوم چې تاسو څلور شیان غواړئ، اول د ځنځیرانو ختمول، دویم په افغانستان کې اسلامي نظام راوستل، دریم له حکومتي ادارو څخه کمونیستان لرې کول، څلورم شر او فساد ختمول. موږ وویل هو همدا مو مراد دی. مسعود وویل په دې کې زه هم درسره موافق یم نو زموږ او تاسو تر منځ به رابطه وي او بیا یې خپل یو کس ته وظیفه ورکړه چې له موږ سره رابطه جاري وساتي.

بنايي د مسعود همدا ظاهري دوستانه پالیسي او د اسلامي تحریک له اهدافو سره توافق و چې د کابل په لمنو کې د طالبانو او مسعود تر منځ تر ډیره وخته جنګ پېښ نه شو،

خوپه دي وروستيو کې را برسيره شوی اسناد ښيي چې ميدان ښار تـه د مسعـود سـفر او هلته له طالبانو سره دا وړ د توافق خبرې د ده يو نظامي چال و. د ليکوال رزاق مأمون لـه قوله د مسعود يو نږدې ملگری جنرال داود چې له مسعود سره په دې سـفر کـې ملگـری و وايي چې د مسعود له دې سفر سره يې ملگري مخـالف و خـو مسعـود د دې ملاقـات وجه دا وښودله[1] (که تر يو وخته طالبان د کابل ښار له دروازو بهـر متوقـف نـه کـړو نـو جنگ مو بـايللی دی. زمـوږ د کسـانو مـورال کمـزوری دی او فکـر کـوي چې طالبـان شکست ناپذير ځواک دی. ځوک چې په حتمي پيروزي باور نه لري شکسـت خـوري. نو ځکه په هره طريقه چې ممکنه وي، طالبان بايد څو مياشتې د کابل په جنگـي کرښـو کې ايسار وساتو تر څو په تدريج سره زموږ کسان دې نتيجې تـه ورسـيږي چـې طالبـان هم د دوی په شان انسانان دي او مرمۍ وربانـدې اثر کوي)

خو د طالبانو په وړاندې د مسعود دښمنانه څېره ډيره ژر روښانه شوه، د حوت د مياشـتې په نيمايي کې طالبانو د کابل په غرب کې د حـزب وحـدت لـه هـزاره مليشـو سره توافـق وکړ چې د باميانو په خوا د لارې ورکولو په مقابل کې خپلـې وسـلې او تـر لاس لانـدې سيمې طالبانو ته وسپاري، د حزب وحدت کسان چې څو کاله له مسعود سره جنگيـدلي وو اوس په کلابند حالت کې پاته وو. طالبان د حوت په نهمه د کابل لويديځو سيمو تـه ننوتل ترڅو له هزاره مليشو نه د سـيمو واک واخـلي پـه همـدې وخـت کـې وربانـدې د مسعود قواوو ناڅاپي بريد وکړ او په درنو تلفاتوسربيره يې گڼ شمير طالبـان اسـيران هـم کړل.

---

(۱) اگـر تـا مـدتی، طالبـان را عقـب دروازه هـای کابـل متوقـف نکنـيم، جنـگ را مـی بـازيم .روحيـه مجاهدين ضـعيف اسـت و فکـر مـی کننـد کـه طالبـان شکسـت ناپـذير انـد. کسـانی کـه بـه پيـروزی حتمـی معتقد نباشند،شکسـت مـی خورنـد. بايـد بـه هـر طريـق ممکـن، طالبـان چنـد مـاه در خطـوط جنـگ کابـل متوقف بمانند تا افراد ما به تدريج بـه ايـن نتيجـه برسـند کـه آن هـا هـم مثـل خـود شـان انسـان انـد و بـا يـک گلوله از پا در مـی آينـد. ( د رزاق مامومن ليکنه له گذارشنامه افغانستان بلاگ څخه)

په همدې وخت کې چې طالبان د کابل تر لمنو رسیدل د مولوي احسان الله احسان په مشرۍ د طالبانو یو بل کاروان د جنوب ختیځ زون د دریو ولایتونو (پکتیا، پکتیکا او خوست) واک د ځایي ولسونو له تاوده هرکلي سره یو ځای په لاس کې واخیست او د مولوي جلال الدین حقاني او مولوي نصر الله منصور د مجاهدینو په شمول د سیمې ډیری مجاهدینو له اسلامي تحریک سره بشپړ ملاتړ اعلان کړ.

### په لویدیځه حوزه کې معرکې او د هرات فتحه

د ۱۳۷۳ لمریز کال د حوت په لومړیو ورځو کې د افغانستان په لویدیځ کې ځواکمن قومندان تورن اسمعیل خان د زرګونو په شمیر ځواکونه را یوځای کړل او د خپل جنګي قومندان علاء الدین خان په مشرۍ یې د هلمند په خوا ولیږل.[۱]

دغه قوه چې د اسمعیل خان د یوه پلوي قومندان جنرال ظاهر عظیمي په خبره یې د افرادو شمیر ۲۵ زره کسانو ته رسېده، داسې معلومېده چې د طالبانو د خوځښت د یو مخ له منځه وړلو په نیت راخوځول شوې وه. د تورن اسمعیل ستر لښکر د دلارام له ولسوالۍ تېر شو او د خاشرود جنوب اړخ ته په شل کیلومترۍ کې یې د هلمند ولایت د سنګلان په غونډیو کې واړول چې په وړاندې یې د ملا محمد اخند په مشرۍ د طالبانو محدود ځواکونه وو. د حوت د میاشتې په ۱۰ مه شپه د یوه تصادفي برخورد په

---

(۱) جنرال ظاهر عظیمي د دې قوې په اړه په خپل کتاب کې لیکلي: له افغانستانه د شوروي لښکرو له وتلو وروسته دومره ستر لښکر کله هم نه و لیدل شوی. په دې لښکر کې د هرات، فراه او نیمروز تقریبا ټول قوت را یوځای شوی و. مشري یې د قومندان علاء الدین خان په غاړه او مرستیال یې جنرال یلاني و. ورسره ګڼ نور جګړه ماران لکه غفار اخندزاده، محمد شاه، د شمال ولایاتو قومندان عبدالمناف، سلام پهلوان، حبیب الله بیګ، د شینډنډ غازي محمد، د فراه جنرال جلیل، عبدالخالق او ګڼ نور قومندانان له خپلو ټوپکیانو سره په کې برخوال وو چې ورسره لسګونه ټانګونه، درنه توپخانه، مختلف زرهي وسایط او د سلګونو په شمیر موټر او ګڼ نور پوځي امکانات وو. (طالبان چگونه آمدند؟ ۲۹ ـ ۳۰ مخونه)

پایله کې د طالبانو او تورن اسمعیل ځواکونه سره ونښتل، په دې جګړه کې چې طالبانو د اسمعیل خان د لوی لښکر منځ ته ځان رسولی و د اسمعیل خان لښکر ته یې درونډ شکست واړاوه، په جګړه کې په سلګونو تنه د اسمعیل خان کسان تسلیم او یا ژوندي ونیول شول. د جګړې په دوهمه ورځ د لښکر مشر علاء الدین خان سخت ټپي شو او مرستیال یې جنرال یلاني اړ شو چې خپل ځواکونه د بیا انسجام لپاره د دلارام پر خوا ۲۰ کیلومتره شاته بوځي او د خاشرود سیند په شمالي غاړه خط واچوي. د ملا محمد عمر مجاهد په امر د اسمعیل خان نیول شوي افراد ټول ازاد کړای شول چې دې کار د طالبانو په اړه د اسمعیل خان د ځواکونو نظر او فکر له بنسټه تغیر کړ، د هغوی له فکر یې ددښمنۍ احساس کم کړ او بیا هر یوه هڅه کوله چې د طالبانو په وړاندې د جګړې په ځای د تسلیمۍ یا فرار لاره ونیسي- چې په دې ډول د اسمعیل خان د نظامي تشکیلاتو شړیدل پیل شول.

د افغانستان په لویدیځ کې له اسمعیل خان، کریم براهوي او نورو قومندانانو سره جګړو پوره ۷ میاشتې دوام وکړ، په دې مرحله کې د فراه او نیمروز ولایاتو مراکز او نور مربوطات بیا بیا لاس په لاس شول. د جګړو مرکزي سیمه د کندهار ـــ هرات پر لویه لار پرته د فرارود سیمه وه چې دواړو اړخونو په کې یو بل ته مخامخ کمربندونه اچولي وو او پر یو بل یې بریدونه کول. په دې جګړو کې دواړو اړخونو ته درانه زیانونه اوښتل د طالبانو د لومړني نظامي قومندان ملامحمد اخند او نورو مشرانو لکه مولوي عبدالسلام، مولوي عزت الله عارف او نورو په شمول ګڼ مخکښ کسان همدلته شهیدان شول. د ۱۳۷۴ لمریز کال د سنبلې میاشتې په لومړیو کې د اسمعیل خان ځواکونو د فراه له اړخه لوی تعرض وکړ چې طالبان یې شاتګ ته اړ کړل، د شوراب په سیمه د ملا محمد اخند له شهادت وروسته طالبان له خورا سخت حالت سره مخامخ شول او تر ګرشک پورې یې شاتګ وکړ. دا وخت اسمعیل خان د پرمختګ په حال کې و او د کندهار د سقوط ویره موجوده وه. ملا محمد عمر مجاهد چې د تل په څېر یې جګړه څارله کله چې د جګړې وضعیت ورته ښکاره شو نو له څو تنو ملګرو سره له کندهاره د ګرشک خوا ته روان شو تر څو مستقیما جګړه رهبري کړي. له نوموړي سره تکړه قومندان ملا فاضل اخند هم ملګری و. د نوموړي د دې سفر یوه برخوال وایي

کله چې د کندهار د سرپوزې سیمې ته ورسیدو، یو لوی موټر په مخه راغی چې یو شمیر طالبان په کې سپاره وو چې څو تنه شهیدان او ټپیان یې کندهار ته انتقالول. دغه موټر مو ودراوه. له دې طالبانو سره د ملا محمد آخند مرستیال ملا رحمت الله آخند هم و. ملا رحمت الله آخند له موټر راښکته شو، ملا صاحب ته یې د ملا محمد آخند د شهادت خبر ورکړ او د هلمند د جنګې کرښو حالات یې ورته تشریح کړل. ملا رحمت الله آخند چې په څیره کې یې د سختې ستومانۍ آثار ښکاره و او د ملا محمد اخند په شهادت غمجن ښکارېده، ملا صاحب ته یې وویل چې د هلمند خوا ته کار ډېر خراب دی او باید یو عاجل پروګرام وسنجول شي.

ملا صاحب له دغو توضیحاتو وروسته بیرته راوګرځید او مخامخ د کندهار قول اردو ته ورغی. د کابل له جنګې کرښو یې ملا محمد رباني او ملا مشر آخند راوغوښتل، د ملا فاضل آخند او ملا رحمت الله په ګډون دوی ټولو مشرانو په قول اردو کې غونډه وکړه او د اسمعیل خان د سترې حملې د دفع کولو پلان یې ترتیب کړ. ملا رحمت الله آخند یې د شهید ملا محمد آخند په ځای په غربي حوزه کې عمومي مشر تعین کړ. په ملا یار محمد آخند یې غږ وکړ چې ورسره ټانګونه او زرهي څواک ټول د هلمند پر خوا سوق کړي. په همدې ورځ ملا رحمت الله آخند چې ملا فاضل هم ورسره و بیرته هلمند ته لاړ تر څو په را روان پریکنده جنګ کې د طالبانو مشري وکړي.

د همدې جګړې یو ګډونوال ملا عبدالسلام مجروح وایي: سهاروختي جنګ پیل شو، دښمن سختې وسلې وکارولې خو د پرمختګ مخه یې ډب شوه او شاتګ ته اړ ایستل شول، تر مازدیګر پورې سخت جنګ وشو او د دښمن لښکر بیرته د حوض خشک سیمې ته په شا ووهل شو. په جګړه کې طالبانو ته تر اندازې زیات وسایط، وسایل، لوژیستیکي مواد او بندیان په لاس ورغلل، د اسمعیل خان له کسانو پنځلس زغروال ټانګونه چالان د جګړې په ډګر پاته وو. د څهل میلو او په لوژیستیکي موادو بار ټیلر په ګډون مو ډېر مواد ونیول په همدې ورځ امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد ګرشک ته په موټر کې راغی د جګړې په لومړي کرښه کې یې له مشرانو مجاهدینو سره ولیدل خو مجاهدینو ورباندې تاکید وکړ چې احتیاط وکړي ځکه د دښمن الوتکو پرلپسې

بمبار کاوه. خو ملا صاحب لا هم په سیمه کې و. طالبانو چې د گرشک په جنگ کې یې د اسمعیل خان ځواکونه په شا غبرگ کړي وو، پسې تعقیب یې کړل تر دې چې د سنبلې په ۷ مه نیټه یې د خاشرود له سیند واړول او دلارام ولسوالي فتحه شوه. د دلارام له نیولو وروسته د ملاصاحب په مشرۍ نظامي مشرانو د دلارام ولسوالی د گله میخ په سیمه کې تر یوه پله لاندې عاجله غونډه جوړه کړه چې ملا محمدرباني، ملا رحمت الله، ملا مشر، ملا عبدالسلام مجروح او نورو مشرانو په کې گډون درلود.

ملا صاحب مجاهدین دوه تشکیله کړل چې نیم یې د ججه او نیم نور یې د آب خرما په استقامت ولیږل د سنبلې په ۸ مه د چکاب په سیمه کې د اسمعیل خان قواوو درونده شکست وخوړ چې په تعقیب یې د فرارود ډیرې سیمې هم د طالبانو لاس ته ولوېدې، خو لا هم په دې ولسوالی کې مخالفینو مقاومت کاوه او دفاعي کرښه یې جوړه کړې وه. په راتلونکې ورځ طالبان د فراه مرکز ته ننوتل او د افغانستان په غرب کې د دې مهم ښار واک یې په لاس کې واخیست.

د دې لپاره چې د اسمعیل خان ځواکونه بیا انسجام ته پرینښودل شي او پسې تعقیب شي، ملا محمد عمر مجاهد په همدې ورځ بیا د فراه رود ولسوالی ته لاړ او طالبانو ته یې د تعرض امر وکړ، دا تعرض ماښام مهال پیل شو. طالبان دوه تشکیله شول چې یوې ډلې مخامخ پر عمومي سرک او بلې ډلې د سرک جنوب اړخ ته د خوست سیمې له استقامت څخه برید پیل کړ. د اسمعیل خان کسانو چې په فرارود کې یې پخوا کمربند پروت و دلته یې ډیر ماینونه کرلي وو. څه طالبان په ماینونو شهیدان یا ټپیان شول خو بالاخره تعرض کامیاب او د اسمعیل خان د ځواکونو کرښه ماته شوه. په همدې شپه طالبانو د اسمعیل خان کسان تر هغو پسې تعقیب کړل چې سهار یې د شینډنډ د هوایي ډگر په شمول د دې ولسوالۍ مربوطات هم ونیول او د هرات ښار اړخ ته د میرداود تر سیمې یې پرمختگ وکړ.

په همدې ورځ په داسې حال کې چې د هرات له هوایي ډگر څخه د اسمعیل خان جنگي الوتکې مسلسل را پورته کیدلې او سخت بمبار یې کاوه، ملا محمد عمر مجاهد شینډنډ ته لاړ، هلته یې نظامي مشرانو ته هدایات وکړل. موافقه په دې وشوه چې

لومړی باید شینډنډ ښه تصفیه شي او وروسته د هرات ښار پر خوا پرمختګ وشي.
ملاصاحب مازدیگر مهال په څرخکه کې بیرته کندهار ته راوګرځېد.

په ورپسې ورځو کې په میرداؤد اغا سیمه او د هرات ښار په لمنو کې هم د اسمعیل خان قواوو پرلپسې ماتې وخوړې او د سنبلې په ۱۴ مه(۹/ ۴/ ۱۴۱٦ هق) د هرات ښار په مکملې فتحې سره د افغانستان په لویدیځو درې واړو ولایتونو (هرات، فراه او نیمروز) باندې د طالبانو تسلط بشپړ شو.

د هرات د فتحې په دوهمه ورځ ملامحمدعمرمجاهد په هلیکوپټر کې د کندهار څخه هرات ته لاړ، د هرات په تاریخي جامع مسجد کې یوه لویه غونډه جوړه شوه چې خپله ملا محمد عمر مجاهد هم په کې ګډون وکړ. د مجلس په پیل کې د قران کریم له تلاوت وروسته ملا محمد رباني غونډې ته د اسلامي تحریک د امیر ملا محمد عمر مجاهد پیغام په لاندې ډول وړاندې کړ:

محترمو علماء کرامو، جهادي قومندانانو، سپینږیرو، قومي مشرانو، روشنفکرانو او محصلینو ورونو!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

دا چې د افغانستان په تېر اوولس کلن تاریخ کې هر څه وشول تاسو ټولو ته معلومه ده او تبصرې کولو ته یې ضرورت نشته.په اوسنیو حالاتو کې د وروستیو فتوحاتو په اړوند خصوصا د هرات له مؤمنو او مسلمانو خلکو څخه چې د اسلامي تحریک او د اسلام د اتلو غازیانو په وړاندې یې کوم مقاومت ونکړ مننه کوم. زموږ غوښتنه داده چې د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم د شریعت په چوکاټ کې خپل ګټور او ابرومندانه ژوند ته دوام ورکړئ. ټول باید پرته له تشویش او ډار څخه خپلې ورځنۍ دندې چې هر ځای یې درلودې انجام کړي.موږ له هیچا سره کومه شخصي دښمني نه لرو.موږ ددې لپاره پاڅون شروع کړی چې در په در او کړېدلي افغانان نور له دې بدبختیو څخه خلاص شي.دکونډو او یتیمانو اوښکې وچې شي. وران او ویجاړ هیواد

مو بیرته ودان شي. موږ غواړو چې د الله تعالی پر حٔمکه د الله نظام راشي. په اخر کې بو ځل بیا د هرات له مسلمانو خلکو څخه مننه کوم.

و من الله التوفیق

وروسته ملا محمد رباني اخند غونډې ته مفصله وینا وکړه او داسلامي تحریک اهداف یې بیان کړل. ملاصاحب له فتحې وروسته څو ورځې نور هم په هرات کې پاته شو. اوهلته د هرات په خانه جهاد مانۍ کې د ملا صاحب په مشرۍ د امارت مشرانو غونډه وکړه چې په کې ملا یار محمد اخند والي، ملا محمد عباس اخند د والي مرستیال، ملا معاذ الله د امنیې قومندان، ملا سراج الدین د زلمي کوټ د ۱۷ مې فرقې قومندان او حاجي ملا عبدالسلام مجروح د هرات د قول اردو د قومندان په حیث وټاکل شول.

ملا صاحب په دې ورځو کې د هرات ولایت تجارتي او ستراتیژیک بندر تورغونډۍ ته (چې له ترکمنستان سره په سرحد پرته سیمه ده) هم لاړ هلته یې د وسلو او جنګي مهماتو لوی ډیپوګان چې د شوروي یرغل له وخته پاته وو ولیدل او د ساتنې او مراقبت لپاره یې طالبان مأمور کړل. ملا صاحب له ترکمنستان سره د ګډ سرحد د خوندیتوب له پاره حاصلولو وروسته بیرته کندهار ته ستون شو.

## لومړني اصلاحات او اجراآت

ملا محمد عمر مجاهد اسلامي تحریک د فتنو او فساد د محو کولو او په ځای یې د شرعي نظام د تنفیذ په هدف پیل کړی و. له همدې ځایه لکه څنګه چې ملا صاحب په هر تقریر او مجلس کې (د الله پر ځمکه د الله نظام) خبره یادوله په عملي توګه یې هم هڅه کوله چې د شریعت هر حکم تطبیق او اسلامي نظام ګام پر ګام عملي کړي.

د کابل له فتحې وړاندې یا تر دې مخکې چې اسلامي امارت په هیواد شموله نظام واوړي او د هیواد ټول حکومتي سیستم رسما په شرعي بنیادونو عیار کړي طالبانو په هغو مواردو کې د شرعي احکامو د احیاء هڅه کوله چې دوی ورسره مخامخ کیدل یا

د دوی په توان او استطاعت کې و. چې لـه دې جملې د لومړنیـو شـرعي اجراآتـو او اصلاحاتو څو بیلگې په لاندې ډول خلاصه کولای شو.

## د فساد محو کول او د امنیت تأمین

ټوپکیان، داړه ماران، قطاع الطریق او نور خودسره وسلوال د فساد عـاملین وو چـې قتـل، غلا، غصب، اختلاس، زنا،، قمار او نور گناهونه یې نه یوازې خپله کـول بلکـې پـه ټولنـه کې یې هم ترویجول او وده یې ورکوله. د رسول الله صلی الله علیه وسلم د دې ارشاد پـه اساس چې فرمایي: من رأی منکم منکرا، فلیغیره بیـده، فـإن لم یستطع فبلسـانه، فـإن لم یستطع فبقلبه، وذلك أضعف الإیمان؛ رواه مسلم. ژباړه: له تاسو چې چـا کـوم نـاروا کـار ولید نو په لاس سره یې منع کړئ، که په لاس د منع کولو طاقت مو نه درلود پـه ژبـه یـې منع کړئ او که په ژبه مو هم نه شوای دفع کولای نو په زړه ورڅخه بیـزاري وکـړئ چـې همدا د ایمان تر ټولو ټیټه پوړۍ ده.

ملا محمد عمر مجاهد او نورو مجاهدینو ملگرو یې د همدې حدیث له ارشاد سره سم د منکراتو او مظالمو د مخنیوي لپاره مبارزه پیل کړه چې په دې لړ کې یې له لاس، ژبې او هرې وسیلې استفاده کوله تر څو مفسدین له فساد او منکراتو راوگرځوي.

د هغه وخت د مفسدینو له ډلې یـوه لویـه برخـه هغـه و چـې د بیلابیلـو اهـدافو لپـاره د مسلمانانو د وژلو، بې عزته کولو او په جبر سره د هغوی د مالونو په لوټولو بوخـت وو او په دې ډول یې د الله تعالی پر ځمکه د فسـاد یـو کرغیـړن جـال غـوړولی و. الله تعـالی د داسې خلکو د جزاء پـه اړه فرمـایي: ﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلَافٍ أَوْ يُنفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ذَٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ [المائده/۳۸]

ژباړه. خبره داده چې کوم کسان له الله او د هغه له رسول سره جنگیږي او په ځمکه کې د فساد لپاره منډې وهي نو سزا یـې دا ده چـې سـم ووژل شي یـا راوځـړول شي، یـا یـې لاسونه اوپښې ردوبدل غوڅ شي او یا له وطنه وشړل شي دا خو د دوی لپاره په دنیـا کـې یو سپکاوی دی او په آخرت کې د دوی لپاره لوی عذاب دی.

د همدې او نورو قرآني ارشاداتو په رڼا کې طالبانو غله، قطاع الطريق، پاټکيان او نور مفسد عناصر پسې واخيستل، د جګړو په مهال يې هغوی ووژل او ځينې قطاع الطريق يې راوځړول او چې هره سيمه يې فتحه کوله د فساد تغر يې ترې ټولاوه. په دې سره هغه ولايتونه چې د طالبانو تر واک لاندې وو د امن او سولې په سيمو مشهور شول. هلته د اسلامي نظام په برکت داسې امن راغی چې په مياشتو به د يوه ادنې امنيتي پيښې، قتل، غلا يا کوم بل جنايت خبر نه اوريدل کيده. طالبانو په دې کارنامه سره د خلکو په قضاوت کې د امن د پرښتو لقب خپل کړی او د افغانستان د هرې سيمې خلکو دا تمنا درلوده چې دا نظام او امنيت د دوی سيمو ته هم پراخ شي تر څو له حاکم فساد او ظلم څخه خلاص او د عادلانه سولې او امنيت له نعمت څخه برخمن شي.

خو تر واک لاندې سيمو کې د امن لپاره ستر ګواښ د هغو پريمانه وسلو شتون و چې په تير اوولس کلن انقلابي دوران کې افغانستان ته راواردې شوې وې چې په دې سره په ټولنه کې هر څوک له اړتيا د زياتو سپکو او درنو وسلو خاوند شو. د شوروي له وتلو او د کمونيزم له شکست وروسته دا وسلې يوازې د مسلمانو هيوادوالو د قتل او مغلوبولو لپاره کارول کيدې. طالبانو د امن د تأمين او تضمين لپاره دا وسلې راټولې کړې چې هم يې خپل جهادي خوځښت ورباندې اکمال کړ او هم يې د بيت المال په ډيپو ګانو کې ذخيره کړې.

## شرعي حدود جاري کول

شرعي حدود او قصاص داسلام له سترو احکامو څخه دي چې د نورې نړۍ غوندې په افغانستان کې هم د وخت حاکمانو دا فريضه هيره کړې وه او مجرمينو ته يې د الله تعالی د حکم سره سم جزاګانې نه ورکولې.

الله تعالی فرمايي: ﴿وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾[البقرة/ ۱۷۹]

ژباړه: او اې د عقل خاوندانو! تاسو ته په دې قصاص کې ژوندون دی د دې لپاره چې ځان ساتنه به کوئ.

﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا نَكَالًا مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾ [المائدة/٣٨]

ژباړه: د غله او غلې دواړو لاسونه غوڅ کړئ، دا يې د هغه کسب بدله ده چې کړې يې و، د الله له لوري يوه (عبرتناکه) سزا، او الله د حکمت والا برلاسی دی.

﴿الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللَّهِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلْيَشْهَدْ عَذَابَهُمَا طَائِفَةٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾ [النور/٢]

ژباړه: زناکاره ښځه او زناکار سړی، له داوړو نه هر يو سل دُرې ووهئ او د الله په دين کې دې پر هغوی دواړو څه زړه سوی نه دربانديې راځي، که تاسې (رښتيا) په الله او آخرت ورځ يقين لرئ. او د هغوی سزا ته دې يوه ډله د مؤمنانو حاضره شي.

﴿إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوا أَوْ يُصَلَّبُوا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِنْ خِلَافٍ أَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ذَلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ﴾ [المائدة/٣٣]

ژباړه: خبره دا ده چې کوم کسان له الله او د هغه له رسول سره جنګيږي او په ځمکه کې د فساد لپاره منډې وهي نو سزا يې دا ده چې سم ووژل شي يا راوځړول شي، يا يې لاسونه اوپښې رد او بدل غوڅ شي او يا له وطنه وشړل شي دا خو د دوی لپاره په دنيا کې يو سپکاوی دی او په آخرت کې د دوی لپاره لوی عذاب دی.

و عن ابن عباس رضي الله عنهما قال قال عمر لقد خشيت أن يطول بالناس زمان حتى يقول قائل لا نجد الرجم في كتاب الله فيضلوا بترك فريضة أنزلها الله ألا وإن الرجم حق على من زنى وقد أحصن إذا قامت البينة أو كان الحبل أو الاعتراف قال سفيان كذا حفظت ألا وقد رجم رسول الله ﷺ ورجمنا بعده. رواه البخاری

ژباړه: له حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دی فرمايي: حضرت عمر رضی الله عنه وويل: زه ويريږم چې په خلکو به اوږده زمانه تېره شي او بيا به يو څوک وايي چې موږ د الله په کتاب کې د رجم حکم نه مومو، نو دوی به د الله تعالی لخوا د نازل شوي فرض حکم (حد رجم) په پرېښودلو سره ګمراه شي. خبر اوسئ په يقين سره رجم حق (ثابت) دی پر هغه چا چې زنا وکړي او محصن وي کله چې شاهدان ورباندې شاهدي اداء کړي او يا د ښځې حمل موجود وي او يا يو محصن څوک خپله

د زنا په کولو اعتراف وکړي. سفیان ویلي همداسې مې حفظ کړي چې ویل یې خبردار چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د رجم حد جاري کړی او له هغه وروسته موږ هم جاري کړی دی.

د مذکورو الهي او نبوي ارشاداتو په استناد ملا محمد عمر مجاهد د خپل مشرتوب په مهال دا ویاړ د ځان کړ چې وروسته له ډیرو کلونو یې په لومړي ځل بیا شرعي حدود راژوندي کړل او په قاتل، زناکار، سارق، قطاع الطریق او نورو جنایت کارانو باندې یې د شرعي محاکمو له حکم سره سم تطبیق کړل.

د اسلامي تحریک لخوا لومړی شرعي حد په قطاع الطریقو باندې جاري شو. د ۱۳۷۳ لمریز کال د حوت په ۱۰ مه نیټه (۲۹ / ۹ / ۱۴۱۵هق) هغه دوه تنه لاره وهونکي چې د هلمند په ولایت کې طالبانو لاس په لاس نیولي وو د شرعي محکمې له حکم وروسته په کندهار کې ترې په عام محضر کې ښی لاس او چپه پښه غوڅ شول.

نقدي جریمه چې اخیستل یې د حنفي فقهې له نظره مشروع نه دي طالبانو له خلکو نه اخیسته. اما په هغو جرمونو کې چې د حد تر اندازې به ښکته وو مرتکبینو ته یې تعزیري سزاګانې ورکول کیدلې لکه رشوت خواره په دُرو وهل او داسې نور.

د طالبانو لخوا د شرعي حدودو په جاري کولو سره ټولنې ته امن او اطمینان راستون شو او د ځوریدلي ولس سر، مال، ناموس او هر څه محفوظ او خوندي شول.

### امر بالمعروف و نهی عن المنکر

په ښو کارونو امر کول او له بدو څخه منع کول د مسلمانانو همیشنی مسؤلیت دی. الله تعالی په قرانکریم کې فرمایلي دي:

﴿وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ [آل عمران/۱۰۴]

ژباړه: او له تاسو دې یوه داسې ډله (جوړه) وي چې د خیر لور ته بلنه کوي، د نیکی امر کوي او له بدیو منع کول کوي او دا کسان همدوی بریالي دي.

﴿وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَيُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَيُطِيعُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ سَيَرْحَمُهُمُ اللَّهُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ﴾[التوبة/ ۷۱]

ژباړه: او مؤمنان او مؤمنانې يو د بل دوستان دي، د نيکۍ امر کوي له بديو منع کول کوي، لمونځونه ترسره کوي، زکات ورکوي، او د الله او د هغه د رسول اطاعت کوي. دا هغه کسان دي چې الله تعالى به ورباندې رحم وکړي، بې شکه الله تعالى برلاسى او د حکمت خاوند دی.

د الهي ارشاداتو سره سم ملا محمد عمر مجاهد هم د تحريک يوه مهمه وظيفه امر بالمعروف و نهی عن المنکر بلله. د طالبانو د تحريک له پيل نه د (سيار گروپ) په نوم يوه ځانګړې مجموعه د دې لپاره خاص شوې وه چې د امر بالمعروف و نهی عن المنکر وظيفه ترسره کړي. طالبانو په ټولو مفتوحه سيمو، لويو لارو، مساجدو او عامه ځايونو کې په ښو د امر کولو او له بدو څخه د منع کولو سپيځلې دنده ترسره کوله. د تحريک له پيل نه څو مياشتې وروسته د ۱۳۷۴ لمريز کال د حمل په ۲۸ نيټه (۱۷ / ۱۱ / ۱۴۱۵هق) ملا صاحب د دغې وظيفې د ښه انجام په مقصد د سيار گروپ تشکيل د امربالمعروف و نهی عن المنکر په ځانګړې رياست واړاوه او مولوي محمد ولي صاحب يې د مشر په حيث وټاکه. چې د کابل له فتحې وروسته په همدې نوم مستقل وزارت رامنځته شو.

له دې علاوه دا چې افغانستان ټول اهل السنة د حنفي مذهب پيروان او د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله مقلدين دي او ملا صاحب خپله هم د حنفي مذهب کلک پيرو او په هيواد کې يې د غير مذهبي ډلو په فعاليت او دعوت بنديز لګولى و. دغه راز يې په افغان ټولنه کې د غير شرعي دودونو، خرافاتو او بدعاتو هم مخنيوی کاوه.

### د شرعي حجاب ترويج او د اختلاط مخنيوی

په اسلامي خاورو له اوږدې مودې راهيسې داسې نظامونه حاکم دي چې د اسلامي احکامو تبليغ، ترويج او ژوندي ساتلو ته ډيره اعتناء نه کوي. په دې لړ کې د نورو واجباتو تر څنګ يو مهم شی چې اسلامي ټولنه ترې بيګانه شوې هغه شرعي حجاب دی. په افغانستان کې د شاهي واکمنيو له وخته د حجاب غورځولو او د ښځو او نارينه

وو تر منځ په حکومتي، تعلیمي او نورو ادارو کې د اختلاط د ترویج لپاره هڅې پیل شوې وې چې په ټولنه یې اغیز خورا ناوړه و، تر دې چې په زیاتره ښارونو کې ډېری مسلمانو میرمنو شرعي حجاب نه رعایت کاوه او په کارځایونو او ادارو کې له نامحرمو نارینه وو سره اختلاط ورته یو معمول کار ښکارېده.

الله تعالی په قران کریم کې فرمایلي: ﴿وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ وَيَحْفَظْنَ فُرُوجَهُنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَلْيَضْرِبْنَ بِخُمُرِهِنَّ عَلَىٰ جُيُوبِهِنَّ وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا لِبُعُولَتِهِنَّ... الخ﴾

[النور/۳۱]

ژباړه: او مؤمنو ښځو ته ووایه چې خپل نظرونه ښکته ساتي، د خپلو عورتونو ساتنه دي کوي او خپل سینګار دې نه ښکاروي، پرته له هغه چې په خپله را څرګند شي او په خپلو سینو دې خپل پړونی واچوي او خپل سینګار دې نه ښکاره کوي مګر خپلو مېړونو ته . . . الخ

عن عروة أن عائشة قالت: لقد كان رسول الله ﷺ يصلي الفجر فيشهد معه نساء من المؤمنات متلفعات في مروطهن ثم يرجعن إلى بيوتهن ما يعرفهن أحد. متفق عليه.

ژباړه: حضرت عروه له حضرت عائشه رضی الله عنها څخه روایت کوي چې ویې فرمایل: رسول الله صلی الله علیه وسلم به د سهار لمونځ کاوه، نو مسلمانو ښځو به هم ورسره لمانځه کې ګډون کاوه او بیرته به خپلو کورونو ته تلې، ښځو به ځانونه په خپلو پوړنو کې داسې نغښتي وو چې هیچا به نه پیژندلې.

طالبانو د افغانستان د ښارونو په تصرف سره شرعي حجاب په ټولو ښځو باندې رعایت کړ او د ښځو او نارینه وو تر منځ د نامشروع اختلاط د مخنیوي لپاره یې په دولتي او تعلیمي ادارو کې د ښځو غیر ضروري حضور معلق کړ. تر څو د ښځو لپاره داسې سیستم اماده کړای شي چې له نارینه وو سره له اختلاط او تبرج پرته په کې خپلې ضروری زده کړې ترسره کړای شي.

د افغانستان په نږدې ټولو سیمو کې مسلمانو میرمنو د دغو شرعي ضوابطو تعمیل ته هرکلی ووایه او هغه یې د خپل پت او درنښت د ساتلو لپاره د مهمو اصولو په حیث

ومنل. خو د اسلام نړیوالو دښمنانو د شرعي حدودو په شان د دغو اسلامي احکامو د تطبیق په وړاندې هم توند غبرګون وښود دوی په تبلیغاتي جنګ سربیره په طالبانو سیاسي فشارونه هم وارد کړل او حتی یو ځل یې په هرات کې د ښځو یوه مظاهره هم ترتیب کړه خو ملا صاحب د شرعي احکامو په تطبیق کې ذره قدرې تنزل او تساهل هم ونه مانه.

## نور انتظامي او ودانیز اجراآت

د نظام له جوړښت او اداراتو له فعالیت وروسته په ټولو برخو کې عمراني او انتظامي اجراآت پیل شول. د پیل په ورځو کې د طالبانو ستره کارنامه د افغانستان د بیت المال یا ملي شتمنیو را خوندي کول و. طالبانو په کندهار او نور ولایاتو کې فعال او نافعال جنګي وسایط لکه ټانګونه، څرخکې، توپونه او نور راټول او په معلومو ځایونو کې یې خوندي کړل. دولتي امکانات او تاسیسات چې پخوا هر چا ولجه یا غصب کړي وو بیرته ترې واخیستل شول او د ملي شتمنیو په حیث د نظام په تصرف کې راغلل. په کندهار ښار او نورو ځایونو کې ډیرو خلکو په دولتي ځمکو کورونه جوړ کړي و او هم یې د عامه واټونو او لارو پرمنځ دوکانونه او مارکیټونه ودان کړي وو چې د کندهار ښاروالۍ یې دوکانونه ورونړول او واټونه یې د خلکو په مخ ازاد کړل.

په عمراني برخه کې هم د پاموړ کارونه پیل شول. طالبانو د ژمي په لومړیو کې د هلمند ولایت تر واک لاندې راووست خو یوه میاشت لا نه و تېره چې د بست تصدۍ فابریکه یې یو ځل بیا فعاله اود پنبې په تصفیه سربیره د غوړیو، صابون او کنجاړې تولید ته اماده کړه.

په بیا ودانیزو چارو کې د طالبانو ډیره توجه د مساجدو او دیني مدارسو جوړولو او فعالیت ته وه، پخوا د افغانستان په ښارونو کې دیني مدارس ډېر نه وو په ټول هیواد کې د ګوتو په شمیر دیني مدرسې وې چې د هغو ودانۍ هم په خپل منځي جګړو کې نړیدلې وې. طالبانو په ټولو تر لاس لاندې ولایتي مراکزو او ولسوالیو کې مساجد او مدرسې جوړې او د ځوان نسل د تربیې لپاره اماده کړې.

د پاڅون په هماغو لومړيو شيبو کې د طالبانو لخوا شرعي اصلاحاتو او رفاهي اجراآتو وښوده چې دوی خپلو شعارونو ته په عمل کې هم ژمنتيا لري او د هيواد او ولس د خير په لاره کې خپل توان نه سپموي.

## د مرکزي دارالافتاء جوړول

د دې لپاره چې د اسلامي امارت ټول اجراآت د شريعت په معيار برابر او د علم په رڼا کې وي، يوې داسې معتبرې ديني او علمي مرجع ته ضرورت و چې په ټولو مسائلو کې د اسلامي امارت زعيم او نورو مسؤلينو ته د بيلابيلو مسائلو په اړه شرعي وضاحتونه ورکړي.

په همدې موخه ملا محمد عمر مجاهد په کندهار کې د مرکزي دارالافتاء په نوم يوه اداره جوړه کړه چې د حنفي فقهې له تعليماتو سره سم يې د اسلامي امارت فعاليتونه د شريعت په ميزان تلل او برابرول. دا اداره که څه هم ابتدائي کارونه يې مخکې شروع کړي وو خو د ۱۳۷۵ لمريز کال په لومړيو کې ورته ملا صاحب ځانګړې توجه وکړه او د سترو مشائخو او علماء کرامو د مشورو په اساس يې نوی تشکيل ورته منظور کړ.

د اسلامي امارت قاضي القضات مولوي نور محمد ثاقب چې څه موده يې د مرکزي دارالافتاء د رئيس په حيث هم وظيفه اجراء کړې وايي: په کندهار کې د اسلامي تحريک د مشرتابه لخوا د ۱۳۷۵ هـ ش کال په سرطان مياشت کې موږ شپږ نفره علماء (مولوي نورمحمد ثاقب، مولوي حاجي محمدصادق، مولوي محمدنعيم (کوڼ اخندزاده) مولوي فضل الرحمن د پکتيا، مولوي شهاب الدين دلاور او مولوي مسلم حقاني) کندهار ته وغوښتل شوو. هلته مو لومړی د تحريک د عالي شورى د غړو لکه: ملا محمدرباني (حاجي معاون صاحب)، حاجي ملا محمد حسن اخند، مولوي احسان الله احسان او نورو سره غونډه وشوه، په غونډه کې يوڅه ابتدائي خبرې وشوې بيا د طالبانو د عالي شورى غړو ووېل چې مونږ نور علماء هم راغوښتي دي لکه شيخ الحديث مولوي عبدالعلي ديوبندي، مولوي خواص او داسې نور، نو تفصيلي مجلس به وځنډوو.

دوه ورځې بعد بیا مجلس دائر شو چې په کې د علماوو د مرکزي شورى رئيس مولوي عبدالغفور ( سناني ) او نورو مخورو علماوو هم ګډون کړى و، په غونډه کې په دارالافتاء او قضائيه چارو بحثونه وشول په همدې غونډه کې بنده مولوي نورمحمد ثاقب د مرکزي دارالافتاء د رئيس او مولوي خليل الله زرمتي د تميز د رئيس په حيث وټاکل شوو. وروسته بيا موږ د دارالافتاء او تميز د کارونو په رابطه له اميرالمؤمنين صاحب سره هم ملاقات وکړ.

مرکزي درالافتاء ډير اعضاء درلودل لکه شيخ الحديث مولوي عبدالحکيم صاحب د کندهار، مولوي عبدالله مشهور په خطيب صاحب د روزګان، مولوي حمدالله آخندزاده د دايچوپان، مولوي محمد خواص د هلمند د کجکي، مولوي رحيم جان آغا د ميدان وردګو د سيداباد، مولوي مسلم حقاني د بغلان، مولوي عبدالقديم آخندزاده د ميدان وردګو او نور علماء کرام يې اعضاء وو.

مرکزي دارالافتاء ته به عموماً د څلورو جهتونو لخوا استفتاءات او پوښتنې راتللې:

( ۱ ) د افغانستان د عام ملّت لخوا

( ۲ ) د مختلفو امارتي او حکومتي اداراتو لخوا

( ۳ ) د محاکمو او قُضاتو لخوا ترڅو د قضايي حکم او فيصلې لپاره مسئله ځان ته روښانه کړي

( ۴ ) د امارت د محترم مقام لخوا

دار الافتاء د امارت د مهمو مسائلو تر څنګ د عامو خلکو ډېر مسائل هم حل کول، دغه راز په پيل کې د روژې او اخترونو د اعلان مسؤليت هم مرکزي دارالافتاء ته سپارل شوى و. د مرکزي دارالافتاء لخوا د ټول افغانستان د خطيبانو لپاره جامع خطبه هم ترتيب شوي وه. د هغه وخت مرکزي دارالافتاء ډيرې فتوې صادرې کړې دي چې په پنځو ( ۵ ) غټو جلدونو کې برابرې شوې دي، تر دا مهاله يې درې جلدونه د ( بدر الفتاوى فی الفقه الحنفي ) په نوم چاپ شوي دي او د پاتې څلورم او پنځم جلدونو هم ترتيب، تبويب او کمپوز شوى دى. او ان شاءالله چاپ به شي.

په دغه فتاوی کې ډیر مهم او ګټور معلومات او ډیـر عمـده او ضروري مسـائل موجـود دي چې ښه په غور او دقت او په تفصیل سره لیکل شوي دي او د معتبرو کتـابونو څخـه ګنې حوالې پرې رانقل شوي دي.

او دا هغه مسائل دي چې تقریباً هروخت ورتـه ضرورت پېښيږي، زمونږ پـه هېـواد کـې هغه وخت یعنی د مسائلو د صدور په وخت کې دغو مسائلو تـه ضرورت پـېښ و، اوس هم ورته ضرورت دی او په آینده کې هم ورته ضرورت پېښيږي.

**اسلامي امارت او امیرالمؤمنین**

انسان د ځمکې پر مخ د الله تعـالی خلیفـه دی او پـه دې مـأمور دی چې د الله تعـالی د احکامو د نفاذ او شعائرو د لوړتیا لپاره به اسلامي واکمني جوړوي.

د قران کریم د آیتونو، نبوي احادیثو او د صحابه کرامو د اجماع په استناد علماء کرام پـه دې خبره توافق ته رسیدلي چې په مسلمانانو باندې فرض کفایي ده چې امام یـا امیـر بـه ټاکي، اسلامي واکمني به جوړوي او که چیرې په نـړۍ کـې یـو مسـلمان هـم د اسـلامي حکومت د قیام هڅه ونه کړي نو ټول د دې فرض د پریښودلو له امله ګناهګار دي.

الله تعالی فرمایي: ﴿إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ﴾[ سورة یوسف/۴۰]

ژباړه:حکومت له الله پرته د بل چا نه دی، امر یې کړی دی چې له هغه پرتـه بـل څـوک مه لمانځئ همدا سم دین دی خو زیاتره خلک نه پوهیږي.

﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَىٰ أَهْلِهَا وَإِذَا حَكَمْتُم بَيْنَ النَّاسِ أَن تَحْكُمُوا بِالْعَدْلِ إِنَّ اللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِ إِنَّ اللَّهَ كَانَ سَمِيعًا بَصِيرًا﴾ [النساء/۵۸]

ژباړه: بې شکه الله تعالی تاسو ته امر کوي چې امـانتونو خپـل اهـل تـه وسپارئ او چې کله مو د خلکو ترمنځ فیصله کوله نـو پـه عـدل سره فیصـله وکـړئ. بـې شـکه الله تعـالی تاسو ته د غوره څه نصیحت کوي. یقینا الله تعالی اوریدونکی او لیدونکی دی.

قال رسول الله ﷺ: من خلع يدا من طاعة، لقي الله يوم القيامة لا حجة له، ومن مات وليس في عنقه بيعة، مات ميتة جاهلية. رواه مسلم.

ژباړه: څوک چې له اطاعت څخه لاس واخلي له الله سره به د قيامت په ورځ په داسې حال کې مخامخ شي چې دليل به نه لري. او څوک چې په داسې حال کې مړ شي چې په غاړه کې يې بيعت نه وي نو مرګ يې د جاهليت دی.

وأجمعت الصحابة على تقديم الصديق بعد اختلاف وقع بين المهاجرين والأنصار في سقيفة بني ساعدة في التعيين، حتى قالت الأنصار: منا أمير ومنكم أمير، فدفعهم أبو بكر وعمر والمهاجرون عن ذلك، وقالوا لهم: إن العرب لا تدين إلا لهذا الحي من قريش، ورووا لهم الخبر في ذلك، فرجعوا وأطاعوا لقريش. فلو كان فرض الإمامة غير واجب لا في قريش ولا في غيرهم لما ساغت هذه المناظرة والمحاورة عليها. قرطبی ۱/۲۶۴

ژباړه: له هغه اختلاف وروسته چې په سقيفه بني ساعده کې د خليفه د تعين په اړه د مهاجرينو او انصارو تر منځ پيښ شوی و صحابه کرامو د ابوبکر صديق رضی الله عنه په مخته کولو اجماع وکړه. هلته انصارو رضی الله عنهم ويلي وو چې زموږ به خپل او ستاسو به خپل امير وي. خو ابوبکر صديق، عمر او نورو مهاجرينو رضی الله عنهم د دې خبرې دفع وکړه او ويې ويل: بې شکه عرب اتباع نه کوي مګر د قريشو او په دې اړه يې حديث هم ورته روايت کړ. نو انصار له خپلې خبرې تېر شول او د قريشو اطاعت يې ومانه. نو که په قريشو يا غير له قريشو کې د امام ټاکل واجب نه وای دا مناظره او خبرې به نه ترسره کيدې.

امام غزالي، علامه ابن خلدون، علامه شهرستاني، علامه ماوردي، علامه ابن حجر هيتمي، امام نووي، علامه شاولی الله او نورو پخوانيو علماء کرامو رحمهم الله تعالی ټولو په دې تصريحات کړي چې د اسلامي واکمنی جوړول او د امام يا امير درول يوه مهمه شرعي وجيبه ده.

که څه هم د راشده خلافت له دور وروسته ډير کم مسلمانان له واقعي خلفاوو څخه برخمن شوي خو په وروستيو پيړيو کې عثماني دولت د مسلمانانو هغه سياسي مرجع

وه چې د اسلام دفاع او لوړتیا ته یې تعهد درلود او له همدې امله د عثماني خلافت په درانه عنوان سره مسمی شوی و.

نږدې یوه پیړۍ وړاندې د عثماني خلافت له سقوط وروسته مسلمانان په نړیواله کچه له اسلامي حاکمیت څخه محروم شول. د خلافت له سقوط وروسته چې په اسلامي نړۍ د غربي استعمارگرو غلبه راغله او کفارو زموږ د ټولنې د عقیدوي، فکري، کلتوري، سیاسي او اجتماعي بیلارۍ او پردیتوب په هدف هر اړخیزې هڅې پیل کړې، په پایله کې یې مسلمانان له خپلو اصلي دیني ارزښتونو او معیارونو څخه بیگانه شول. دې هر اړخیز سقوط او د غرب په رنگ رنگیدلو زموږ د سیاست او زعامت ډگر هم په ژوره توگه اغیزمن کړ. مسلمانان چې پخوا یې د شرعي امیرانو او اسلامي حکومتونو لخوا سیاسي رهبرې کیدله په دې مرحله کې یې له غرب نه په تقلید د (دولت + ملت) د نظریې په اساس د نشنلیستي، سوسیالیستي، لیبرال یا د غربي ډوله جمهوري دولتونو بدعت رامنځته کړ چې په پایله کې نه یوازې د اسلام تشریعي مرجعیت له پامه وغورځېد بلکې د متحد امت د ټوټه کیدو او اسلامي سیاست د هیریدو سبب هم شو.

د عثماني خلافت له سقوط وروسته د شلمې پیړۍ په اوږدو کې د اسلامي سیاسي حاکمیت د اعادې لپاره د نړۍ په گوټ گوټ کې ډېرې مبارزې او جهادونه وشول. فکري او دعوتي حرکتونه راوپنځیدل. وسلوالې مبارزې وشوې، په ځینو هیوادونو کې د انتخاباتو له لارې د اسلام د حاکمیت هڅې وشوې او ځینو دعوتي ډلو د ټولنیز اصلاحي انقلاب له لارې د قرآن د حاکمیت لپاره اوږدې مبارزې طراحي کړې. سره له دا چې دا مبارزې د اسلامي تاریخ ویاړمن بابونه دي او د اسلامي واکمنۍ لپاره د مسلمانانو تنده او تلوسه ترې معلومیږي. خو د تأسف ځای دا و چې دغه هڅې اکثرا تر پایه د هڅو په چوکاټ کې پاته شوې او له نظري او فکري وضعیت څخه یې عملي اړخ ته ترفیع ونه کړای شوه. دا به شاید په ملا محمد عمر مجاهد د الله تعالی ځانگړی انعام و چې د دې ستر ارمان تعمیل او تطبیق یې د ده په برخه لیکلی و تردې چې د شلمې میلادي پیړۍ په وروستۍ لسیزه او د پنځلسمې هجري پیړۍ په دوهمه لسیزه کې، د عثماني خلافت له سقوط ۷۴ کاله وروسته یې د اسلامي حاکمیت لویدلی بیرغ

راپورته کړ او نړۍ ته يې يو ځل بيا عملاً د اسلامي امارت د قيام او شريعت د نفاذ بيلګه وړاندې کړه.

**په کندهار کې د افغانستان د مذهبي علماوو تر ټولو ستره غونډه**

د ۱۳۷۵ لمريز کال په پيل کې چې طالبانو د افغانستان د شپږنيم لکه مربع کيلومتره پراخې خاورې له نيمايي په زياته اراضي تسلط درلود. په جنوب، غرب او مرکزي افغانستان کې په سترو ښارونو کندهار، هرات او غزني سربيره جنوب غربي او جنوب ختيځ ولايات يې هم بشپړ په کنترول کې وو او پلازمينه کابل يې له دريو خواوو محاصره کړی و. د پسرلي په همدې پيليزو ورځو کې په کندهار کې دشاوخوا ۱۵۰۰ پنځلس سوه ديني علماء کرامو او مخورو د يوې لويې غونډې تابيا ونيول شوه.

د حمل د مياشتې په پنځمه نيټه (۴/۱۱/۱۴۱۶هـق) د اسلامي تحريک عالي شورا پريکړه وکړه چې د افغانستان د علماء کرامو د مرکزي شورا سره د شوي توافق په اساس به د حمل په مياشت کې په کندهار کې د ټول افغانستان مخکښ علماء کرام راټوليږي تر څو د اسلامي تحريک روان فعاليتونه ارزيابي کړي، راتلونکې تګلاره ورته وټاکي او د تحريک د سياسي مواقفو په اړه اساسي فيصلې وکړي.

د يوې اونۍ په جريان کې د افغانستان له مختلفو سيمو او په پاکستان کې د افغان مهاجرينو له کمپونو څخه ديني علماء د کندهار په خوا روان وو تر څو په دې مهمه او ټاکونکې غونډه کې ګډون وکړي. په کندهار کې د راتلونکو علماء کرامو او مشرانو د پذيرايي لپاره منظم ترتيبات نيول شوي وو. د ښار په زړه کې يوه لويه وداني( ميخانيکي ليسه) چې ډېر شمير اطاقونه او يو پراخ د غونډو تالار يې درلود د علماء کرامو د اوسيدلو او غونډې لپاره انتخاب شو. علماء کرام چې د ځانګړې ټاکل شوې کميټې لخوا يې نومونه او مشخصات لست کيدل د اوسيدو لپاره خپلو تعين شويو اطاقونو ته رهنمايي کيدل. د هرې سيمې علماء چې په سفر کې به سره ملګري و ځانګړی اطاق ورکول کيده. په دې سربيره د کندهار حکومتي ميلمستون ( والي کوټې) او د شهيدانو له چوک سره د ښاروالۍ مربوط ميوند هوټل هم د ميلمنو لپاره خاص شوي وو.

کندهار ښار په څو ورځو کې د علماء کرامو او مشائخو ګڼې ګوڼې پر سر واخیست. په هر واټ، هر مسجد او هر ځای کې د علمي وقار او سنګینی په لباس ملبس علماء کرام ښکارېدل. دا ښايي د کندهار او افغانستان په تاریخ کې د دیني علماء کرامو لومړنی تر ټولو ستره اجتماع وه چې ځانګړی کیف یې درلود.

د کندهار د هغه وخت چاپیدونکي اخبار طلوع افغان یوه لیکوال میرویس باوري دغه صحنې داسې انځور کړې دي.(د کندهار ښایسته ښار چې د خپل لرغوني تاریخ په اوږدو کې یې څو ځله د سترو سترو جرګو ویاړ په برخه شوی دا دی یو ځل بیا د اسلامي تحریک د ځلانده مرکز په توګه د هیواد د سترو او مجاهدو علماء کرامو د جرګو کوربه دی. که له یوې خوا د پسرلي خوږه وږمه چلیږي او د ګل په هره غوټۍ چې ولګیږي سره ویې سپړي، خلاصه یې کړي او خوند پرې وکړي. بلې خوا ته د ښار په واټونو، چمنونو، خاصو میلمستونونو، حکومتي ادارو او جوماتونو کې د راغلیو علماء کرامو ګڼه ګوڼه او د خپل خواږه او خوږمن هیواد د راتلونکي سرنوشت په باب د دوی ناستې ولاړې، تصمیمونه او مشورې بیا لا د خوند او مزې خبره ده او په دې ترخ کې چې بیا محمدي اذان زمزمه شي او د پاکو جوماتونو پر لور د مسلمانانو درانه قدمونه پورته شي نو زه خو وایم چې د بلا سترګې دې ړندې شي)

په دې ډول کندهار د تاریخ سازې غونډې لپاره د سلګونو علماء کرامو کوربه شو. دغه علماء کرامو چې له بیلابیلو قومونو، نژادونو او سیمو سره یې تعلق درلود د ټولو تلوسه دا وه چې د اسلامي نظام د قیام او اسلامي حاکمیت د هیرې شوې فریضې د اعادې لپاره یوه تاریخي فیصله وکړي او په دې ډول د دیني عالم په حیث د نبوي وراثت مقدسه دنده په کماحقه بڼه انجام کړي.

## د غونډې د پیل ورځې

د طلوع افغان ورځپاڼې د مستندو راپورونو له مخې دې غونډې پنځه ورځې دوام وکړ چې د حمل په لسمه نیټه پیل او د همدې میاشتې په ۱۴ مه (۱۳ / ۱۱ / ۱۴۱۶هق) پای ته ورسېده.

د غونډې په لومړۍ ورځ مجلس د قاري محمود شاه صاحب لخوا د قرانکريم د څو مبارکو آيتونو په تلاوت افتتاح شو. ورپسې د غونډې کړنلاره ولوستل شوه.

وروسته د اطلاعاتو او کلتور رئيس ملا امير خان متقي د اسلامي تحريک د بيلابيلو، نظامي، سياسي، علمي او عمراني لاسته راوړنو په موضوع رڼا واچوله او د ترسره شويو کارونو په اړه يې برخوالو ته معلومات ورکړل او ورپسې د اسلامي تحريک مرستيال ملا محمد رباني مفصله وينا وکړه او د اسلامي تحريک د قيام اهداف يې روښانه کړل. ده په جهاد او د اسلامي نظام په قيام کې د علماء کرامو مسؤليت مهم وباله او ويې ويل چې علماء کرام ځکه دلته راغوښتل شوي تر څو اسلامي تحريک ته مشوره ورکړي موږ به په هغه عمل کوو او د هيواد په نورو سيمو کې به هم همدغه نظام تطبيقوو.

د ملا محمد رباني له خبرو وروسته د راغليو علماء کرامو د ويناوو لړۍ پيل شوه او د هرې سيمې د علماء کرامو په استازيتوب يوه مخور عالم وينا کوله. له بدخشان ولايت څخه راغلي عالم مولوي محبوب الله وويل چې برهان الدين رباني زموږ د سيمې دی خو زه وايم چې نظام يې په حقه نه دی، د طالبانو د تحريک په باره کې تبليغات کيږي چې دا صرف د پښتنو تحريک دی مګر زه چې يو غير پښتون يم شاهدي ورکوم چې دا تحريک واقعي يو اسلامي تحريک دی او په دې کې عصبيت او قومپرستي نشته.

وروسته د لغمان مولوي سعيد الرحمن، د جوزجان مولوي عبدالصمد، د غزني مولوي سيد حفيظ الله، د بلخ مولوي عبدالجبار، د ننګرهار مولوي سيد رسول او نورو علماء کرامو ويناوې وکړې.

د غونډې په دوهمه ورځ افتتاحيه وينا د کندهار والي ملا محمد حسن اخند وکړه ورپسې د هرات مولوي جليل الله مولوي زاده، د عالي شورى غړي مولوي احسان الله احسان، د لوګر د علماء په نمايندګي مولوي فضل احمد، د بغلان مولوي محمد يعقوب، د مولوي جلال الدين حقاني نماينده الحاج حبيب الله منګل، د فارياب په نمايندګي مولوي مفتي عبدالله، د کابل د علماوو په نمايندګي مولوي نور محمد ثاقب، له روزګان څخه مولوي سلطان محمد، د لغمان څخه مولوي نقيب احمد ديوبندي، د پکتيا څخه مولوي عبدالله مدني او نورو علماء کرامو په نوبت سره خپلې ويناوې او

نظریات مجلس ته ارائه کړل.په دې ډول د پنځه ورځنیو غونډو سلسله شروع شوه. د اسلامي تحریک لخوا دغونډې په برخوالو ځانګړې فورمې هم وویشل شوې چې د نظام د اصلاح او پرمختګ په مورد کې څو لنډې پوښتنې مطرح شوې وې، علماء کرامو د خپل علم او تجربې له مخې دې پوښتنو ته ځواب وایه او بیرته یې لیکلی ځواب مسؤلینو ته سپاره.

د غونډو په جریان کې د هیواد وتلیو علماء کرامو روزانه خپلو مجالسو، سلامشورو او د مخکښو علماء کرامو د ویناوو اوریدو ته دوام ورکاوه. شیخ الحدیث مولوي تره خیل د کابل، مولوي محمد خواص د هلمند، د یوسف خیلو اخندزاده د میدان وردګ، مولوي محمد الیاس، مولوي جلال الدین شینواری او مولوي محمد اکرم د ننګرهار، مولوي عبدالعزیز د تخار، مولوي احمد مزاري د بلخ، مولوي ګل محمد د غزني، مولوي عبدالحی زعفراني د کندز او نورو وتلیو علماء کرامو ویناوو غونډې ته جذابیت او درنښت ورباښه. د اسلامي تحریک مسؤلینو هم په غونډو کې په ورځني شکل حضور درلود.

### د غونډې وروستی ورځ او پریکړه لیک

د ۱۳۷۵ لمریز کال د حمل دمیاشتې ۱۴ مه د چهارشنبې ورځ په کندهار کې د علماء کرامو د سترې اجتماع وروستی او د مهمو پریکړو د اعلان ورځ وه. په همدې ورځ ملا محمد عمر مجاهد د غونډې تالار ته راغی او د اسلامي تحریک د پیل او لومړنیو جریاناتو په اړه یې هغه وینا وکړه چې وروسته له راډیوګانو نشر او ډیره مشهوره شوه د تاریخي اهمیت درلودو له امله دغه وینا کټ مټ درسره شریکوو.

### غونډې ته د ملا محمد عمر مجاهد تاریخي وینا:

اعوذ باالله من الشیطان الرجیم، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ، اللهم صل علی سیدنا و نبینا و مولانا محمدٍ و علی آل سیدنا و نبینا و مولانا محمدٍ و بارک و صل و سلم علی جمیع الانبیاء و المرسلین و علی کل ملائکة المقربین و علی عباد الله صالحین.

اعوذ باالله من الشیطان الرجیم، بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، وَالْعَصْرِ ﴿١﴾ إِنَّ الْإِنسَانَ لَفِي خُسْرٍ ﴿٢﴾ إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ﴿٣﴾

محترمو علمای کرامو، مشایخو!

که څه هم له موږ سره مناسبت نه لري، ستاسو په مخکې زموږ وینا، خو بیا هم! د اسلام پر بنیاد باندې موږ وایو چې که څه فایده وکړي.

خبره دا سي ده، طلباوو کرامو چې دا حرکت شروع کړی دی او په دې کار اخته دي، طالبانو ډېره غټه دعوه کړې ده، هر چا چې پوښتنه ځیني کړې ده، که ژورنالست کړې ده، که یو مملکت کړې ده، که عوامو کړې ده، که دښمنانو کړې ده، که خواصو کړې ده.

د دې طالبانو و هغو خلکو ته دا بیان دی، دا یې وینا ده، دا یې جواب دی، چا چې پوښتنه کړې ده، چې د طالبانو کوم هدف دی، د طالبانو کوم مرام دی؟

طالبانو دا ویلي دي، چې موږ چې یو، دا د خدای پر مځکه کې، دا د خدای دین پیاده کوو، دا د خدای د کلیمې خدمت کوو، شرعي احکام او حدود د الله برپایه کوو.

دا یې جواب دی، له اوله ابتدا څخه تر اوسه پورې یې دا جواب دی او دا یې خبره ده، دغه یې هم مرام دی، واقعاً!

خو خبره دې ځای ته راغله، طلباوو خو دا دي قربانی ورکړلې او هم دا دی ورکوي یې، روان دي، ولاړ دي.

خو علماوو ته زما خطاب دی!

و دغو علماوو ته چې، حاضرین دي او هغو علماوو ته چې، دا پیغام، بیا ورپسې شانه چې څوک پاته دي دا امانت دی چې، بیا یې ور ورسوي!

د هرې منطقې عالم دې د خپلې منطقې علماوو ته و رسوي!

په علماوو کې څه ناڅه، په کمه اندازه، په ډېره کمه اندازه باندې، یو څه غفلت سته!

خو دا دعوه چې موږ کوو چې، موږ د اسلام دین د خدای په مځکه کې پیاده کوو، د خدای حدود برپایه کوو.

دا د الله حدود چې دي، دا څوک بر پایه کوي؟

طالبان خو هغه دي، خالي يې توپک په لاس کې دي، روان دي، نن ژوندی دی، سبا شهید دی، بله ورځ زخمي دی، خو دغه يې کار دی چې، دغه مځکه د فساده خلاصه کړي، د فساقو فجارو څخه دا مځکه خلاصه کړي، دغه يې خدمت دی، دغه يې کار دی!

دا دعوه چې دا طالبان کوي چې وايي "موږ د خدای حدود د خدای په مځکه کې برپایه کوو"

دا دعوه د علماوو په سر سره کوي!

دا دعوه چې دوی کوي دا په دې سره کوي چې موږ تر شا علماء لرو، موږ په علماوو سره به نو دا د خدای حدود برپایه کوو، اندازه د شریعت چې ده، هغه علماوو ته معلومه ده، طلباوو ته خو نه ده معلومه.

د بديع الميزان، قطبي، کنديې طالب دی، دېته څه معلومه ده!

خو صرف دغه ورمعلومه ده چې، دا د خدای هغه ضروري علم چې دی، هغه علم ضروري ورمعلوم دی چې، په دې يې يقين دی چې، دا حق، دا باطل دی.

دا مسئلې په مابين د مسلمانانو کې، دا به څوک خلاصوي، دا به څوک دا حدود برپایه کوي؟

خو بعضې علماوو هغه دی یو څه خدمت کړی دی.

بعضې علماء له ځان سره یو فکر کوي چې {لايكلف الله نفساً الا وسعها}

نو زه دا خواهش کومه، چې ودې آيت ته کماحقه مصداق ورپيدا کړئ!

زه په یوه مدرسه کې ومه، یوه کوشنۍ مدرسه مو جوړه کړې وه، پنځلس یا شل کسه انډیوالان وو یعني سبق مو وایه، دا د مځکې سر ټوله فساد و نیوی، قتل قتال و، چور چپاول و، فساقو او فجارو د مځکې سر ونیوی.

مانا! دا وضعه وتاسو ته معلومه وه چې تېره سوله، یعني خلکو تصور نسوای کولای چې دا به په څه شکل باندې دا اصلاح راځي؟

نو دا چې ما سبق وایه، نو زه را ولاړ سومه، دا چې ما تصور کړی وای، نو خو دا {لایکلف الله...} دا ما لره کافي نه وو ؟

خالي تصور چې مي دا وهلی وای، نو زما څه په قدرت کې و؟

دا {لایکلف الله...} دا ما لره کافي نه و؟

وایم توکل، توکل محض مې وکی، توکل محض ناکامي نه لري!

توکل محض ډېر زور غواړي، توکل محض زه غواړم، د دې علماوو څخه!

خلک به وایي چې دا تحریک د څه وخته څه را روان و او په څه شکل باندې و، په څه خفیه شکل باندې و، د کومې خوا حمایه کېدی، د کومې خوا ترتیبه کېدی، و د کومې خوا څه روزل کېدی؟؟

د دې تحریک ابتدا دغه وه چې په دغه دایره (درس) کې، په دغه مدرسه کې ما کتاب کت کړ، زه وم یو بل مولوي صاحب مې هم راسره ملګری کړ، داغسې پیاده له سنګساره څه زنګاوات ته پوریوتلو، په زنګاوات کې مو د یو سړي څخه موټرسیکل واخیستی، (سرور) نومیږي، موټرسیکل مو څېنې واخیستی، دا مولوي صاحب مې تر شا را سره سپور کی، دغه یې ابتدا وه، دا چې نن پوریوتمه، مازې مې تصور وواهه، نو پوریوتم .

بیا مې و دې سړي ته وویل (دې مولوي صاحب ته) چې ته راسه، پر دې دایرو به وګرځیږو، دا طالبانو باندې به وګرځیږو.

نو د زنګاواته څه تلوکان ته ولاړو، بیا نو ماښام و راباندې، په دا ماښام کې په ترخو کې روان وو، بیا مې دا مولوي صاحب ته وویل: دغه (ترخې) دا چې روان یو، دا بیا په یاد لره،یو (تحول) ان شاءالله راځي!

نو و دغه موټرسیکل مو ځینې واخیستې، یو دایرې ته ورغلو ۱۴ کسه طالبان هلته اوسیدل، سره راټول مو کړله، دا توکل محض له فکره مه باسئ!

چې هغه مو سره راټول کړل، شاوخوا مو سره را دوره کړل، باره مو ورته وویل چې، دا د خدای دین پایماله سو، فساقو، فجارو ټوله منطقه ونیوله، چور چپاول چالان دی، پر عام ډمبر (پاخه سړک) باندې د خلکو ناموس کښته کیږي، د خلکو مالونه کښته کیږي، پر عام ډمبر باندې یې مړ کړي باره یې و ډبرې ته کښښنوي، موټران تېرېږي پر ډمبر، پر ډمبر باندې مړی ناست وي. دونه څوک نسته چې پټ یې کي.

دا مو ورته وویل چې، دغه سبقان هم ویل کیږي، په دغه ترتیب باندې چې ((مرده باد، زنده باد)) باندې دا خبره نه حل کیږي. موږه را ولاړیږو، دغه طالبان که خدمت واقعاً کوي، د خدای د رضا د پاره، دا سبق پرېښوول کیږي، دا سبق نسته!

او نه چا وعده راکړې ده د یوې افغانی یا د ډوډی، پر دغه وطن به سوال (چنده) کوو، په دا وطن کې به پر مسلمانانو باندې - که چا راکړه که یې نه کړه را.

سبق بیا نسته او دا کار چې دی هفته نه دی، ورځ نه دی، میاشت نه دی، کال نه دی دا!

د چا په قدرت کې دی که نه دی؟

او دا مې هم ورته وویل چې تاسي . . . دلاوري به مې هم ورکړه، چې ما ویل : فاسق فاجر . . . آ وخت کې ګرمي هم وه . . . ماویل په دغه ګرمې کې پر دغه خزه (سنګر) ناست دی. د خدای و دښمني ته ناست دی، په علانیه یې کوي.

موږ او تاسو د خدای، د خدای د دین هم ځان بولو او د خدای د دین خدمت علانیه نسو کولای؟

دونه غفلت مه کوئ.

دونه بې غيرتيا مه کوئ.

په دغه څوارلسو انسانانو کې چې داغسې مو ورته درنه کړه چې، بيا که مو ځاى ونيوئ، پر هغه ځاى باندې به ناست يو او که مو ځاى فتحه کړئ، هغه به بيا نه ايله کوو.

سبق نسته او هيڅ شى نسته او يوه افغانى نسته، اسلحه هغه نسته، هغه به په سوال پيدا کوو!

کوئ يې، که يې نه کوئ ؟

په دغه څوارلسو انسانانو کې يوه انسان والله که ويلي دي چې، زه يې کوم.

نو په دا څوارلسو کسانو کې، يوه هم والله که ويلي دي چې، په دغه شکل باندې يې زه کومه، ول د جمعې په شپه که کار و کوو يې، کنه نه يې کوو!

ماويل پس د جمعې به يې څوک کوي ؟

خداى شاهد دى، دغه خبره داغسې ده، په محشر هم دا شاهدي زه ادا کوم!

نو که دا دايره ما "مقيس عليه" گرځولې واى، دا وام د توکل محض ثمره ده وام زه څه درته وايم، نوکه دا دايره مقيس عليه وگرځيږى نو خو وايم نورې به مې هم پر قياس کړې واى، بېرته به راتلاى و هغې خپلې مدرسې ته.

نو بيا مې چې، هغه د خدايه سره وعده کړې وه، نو بيا مې په هغه خپله وعده سره وفا وکړله، خداى دغه معامله وکړه!

نو نه مې پسې پرېښووله، بلې دايرې ته راغلو، هلته پنځه وو که اووه کسه وو، هغو ته مې په هغه شکل خبره درنه کړه، هغه اوو سرو ځانونه نوشته کړل.

خو يو امت دى، دا داسې نه دي چې هغه کوشنيان وو، دا لويان وو، يا هغه سپين ږيري وو يا دا ځوانان وه، يا هغه ښځې وې دا نر وو.

دا په ابتدا کې د دې کار کې، دا داسې يو حکمتي کار و، دا دسې د يو امتحان دوره پر ما باندې پر دا اوله سر (ځل) کې راغله.

نو دغه یې ابتدا وه چې، د دغه ځایه څه مو شروع کړه، تر مازدیګره مو دغه موټرسیکل وګرځاوه دره پینځوس کسان مو برابر کړل.

دغه د توکل محض انسانان مو دره پینځوس نفره برابر کړل.

مازدیګر چې زه ځینې راپوریوتمه، ما ورته ول سبا راسئ، دوی په دغه شپه کې، پر یوه بجه باندې راپوریوتل ( دلته سلګیو واخیست )

بل چا ناره کړه: نعره ای تکبیر ، الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر.

اسلام : زنده باد

نو دغه د تحریک ابتدا وه، چې په دغه شپه کې را پوریوتل، شواروز دا دی ګوره نه دی پوره، په سهار کې زموږ یو مولوي صاحب دی، هغه تللی و خپل امامت ته، لمانځه ته سهار وختي تللی دی، دا طالبان ام په شپه کې راپوریوتلي دي، سهار چې لمونځ وسو، هغه مقتدې یې ورته وایي "ما برایي [د شپې] داسې ښه خوب لیدلی دی.

وایي څنګه خوب ؟

"ول دغه سنګیسار ته ملایکې راغلې وې . . .

(دلته د ملا صاحب (رحمه الله) سلګی بیا ګړندی شوې)

داسې پاسته پاسته لاسونه یې وه . . . نو ده . . . بیا ما ورته وویل چې تاسو پر ما هم لاسونه تېر کړئ.

(بیا سلګیو واخیست)

(دلته د تکبیر نارې هم پورته کېدلې)

نو دا د تحریک ابتدا وه، دغه یې کار و، دغه یو شواروزقدر دا د تحریک ابتدا وه چې وښوول سوه، په شپه کې طالبان را پوریوتل، سهار د لسو بجو باندې مو موټران دوه پیدا کړل، ((حاجي بشر)) ته مو وویله چې، یوه هینو یوه بایفور یې راکړل، موږ و کشک نخود ته وروستل.

په کشک نخود کې دغه خلک زموږ سره يو ځای سول، حتی چې باره پسې ډېرېدل.

نو مو په سوال باندې د دغه خلکو څخه په (پنځه پنځه میله) باندې څه اسلحه پیدا کړله.

دغه یې ابتدا وه، دغه یې شروع وه چې جریان یې پیدا کړ.

نو دا د توکل محض ثمره وه!

توکل محض چې دی، هغه نه ناکامه کیږي، نو موږ د دغه علمای کرامو څخه دغه خواست (غوښتنه) کوو چې توکل محض وکړي!

خدای ناکرده، که دا زموږ دعوه ناکامه کېدله (دا زموږ غټه دعوه چې موږ وایو، چې موږ، په دې ملک کې د خدای دین پیاده کوو، د خدای حدود برپایه کوو)

خو تاسې په دې پوه یاست چې، دا حدود بې له علماوو بیا بل څوک نه سي برپایه کولای!

علماء یې پر کومو وظیفو او پر کومو رتبو کې بر پایه کوي؟

هغه رتبې باید وپېژنئ، چې دا پر کومو رتبو او پر کومو وظیفو کې دا حدود برپایه کیږي!

نو دا علماء دې پر داسې یو ټینګ عزم او په داسې اخلاص سره ودریږي. خدای ناکرده پر دې صف کې مو کمزوري راځي، په دې صف کې سبا د طالبانو هغه خپل شناخته لمونځ به یې نه وي ژده، هیر به سي ځني.

نوی نسل روزل غواړي.

پر دغه تحریک کې به، دغه تحریک ډېر غټ اخلاص په کار دی، هغه عذر به موږ ځنې قبلوو د عالمه څخه، هغه عذر زه پخپله قبلومه چې، هغه عذر په نزد د خدای قبول وي (یوازې شرعي عذر) هغه دی او خدای سره خبر دي!

په خوله باندې سړی معذور نه بلل کیږي، چې په خوله ووايي چې، زه معذور يمه، خو دی او الله سره خبر دي.

وام هغه عذر زه قبلوم، د علماوو څخه چې هغه په نزد د خدای قبول وي.

چې په نزد د خدای قبول نه وي هغه عذر زه د هیڅ عالم څخه نه قبلوم په ټول افغانستان کې، هغه به خپل خدمت کوي، هغه خدمت به کوي چې هغه کیدونکی وي او اثر مرتب ولري.

بعضې خلکو سره داسې فکر وي چې دا قضاء خو داسې شی نه ده نو، که داسې بله وظیفه وای چې نوم او نشان وای، یا مې سبا په قوم کې اعتبار درلودای، یو سوك مې تربغل ایستلای خو زه خاص دا علماوو ته وایم (که څه هم مناسب نه دی) خو بیا هم د خدای د مسؤلیت څخه بیریږم، زه په دې ځای باندې هغه خپل مسؤلیت چې خدای زما په غاړه کې را اچولی دی له خپلې غاړې اړومه او د دې علماوو غاړې ته یې ورسپارمه، چې څه زموږ وظیفه ده، هغه خو موږ هغه دی اخته یو او خپل خدمت دی کوو یې، کوم کار چې په موږ باندې کیدی، زموږ هغه کار دی چې هغه د زور، توري یا ټوپک کار دی.

کومه دعوه چې موږ کوو چې موږ د خدای حدود برپایه کوو، د خدای حدود بې له علماوو بل څوک نه سي برپایه کولای. د خدای په خاطر باندې د دې آیت کماحقه مصداق به پیدا کوئ چې (لایکلف الله نفسا الا وسعها) دا ډیر علماء وايي. وایم هغه وخت دا آیت ما لره هم کافي و خو ما په دې کفایت نه وکی وایم د دغه حال تصور نه کیدی، سړی به اخته وي لږ یا ډیر نو خدای برکت پر ږدي.

نو د دغه علماوو څخه موږ دا خواهش کوو چې دغه د خدای دین ته ډېر برجسته وردریږي، ډیر په یو ټینګ عزم سره ودریږي، دغه دعوه که ناکامه کیدله نود دغه سُنه ناکامه کیږي. حدود د الله چې په یو ملک کې جریان ولري هغه امراء یې هم نه سي خرابیدلای، د خیانت مخه هم نیول کیدلای سي. هر عالم چې ما تر لاس ونیسي یا مې

واجب العزل وبولي، په هغه دم به زه استعفاء ورکوم په هغه دم به زه ايسته کيږم. او يا يو بل مسؤليت را پکښې ووينې.

نو دا طلباء چې دي دا اهل حق ځانونه بولي، د اهل حق دعوه يې کړې ده، دا د فساقو فجارو دوره نه ده، د فساقو فجارو دوره ختمه ده، چې هغو ته به عالم څه ويل، هغه يې پر غوږ نه نيول، دا دوره د طلباوو ده، طلباء به حتمي او ضروري دا وعده کوي چې عالم ورته ووبل چې په تا کې دغه نواقص دي هغه به ايسته کوي يا به د دې صفه وځي.

د دغو علماوو هره خبره ځای ته رسيږي، علماوو ته دا په کار ده چې ودريږي دا علماوو ته دا په کار ده چې په ټينګ عزم ودريږي. په ورځ د محشر بيا زه دا علماء تر ګريوان نيسم دا علماء زه نه پريږدم. که زما څه دا کار خرابيدی د دې علماوو په نيستی سره به خرابيږي، د علماوو په غفلت به خرابيږي، په بل شي نه خرابيږي، دا علماء زه تر ګريوان نيسم په ورځ د محشر، نه يې پريږدمه. حدود د الله تعالی برپايه کيدل، بې له علماوو په بل چا نه کيږي، طلباء احکام نه شي برپايه کولای، نه احکام چلولای سي او نه ورمعلوم دي.

دا علماوو ته دا په کار ده چې په ټينګ عزم به په دغه کار کې دريږي، نوی تصور ورلره په کار دی، دا زاړه تصورات چې يي وهلي يا يې وهي دا دې بند کي بالا، نوی تصور په دې خبرو کې ورلره په کار دی. ورځ د محشر به حضور کوي، الله به حضور کوي، حساب به په خپل ګريوان کې له ځانه سره کوي، کما حقه مصداق به دغه آيت ته ورپيدا کوي چې (لايكلف الله نفسا الا وسعها) بې ځايه به يې نه وايي. زه دا خبره کومه چې که له موږ څه دا کار خرابيده يا فساق او فجار را څخه جوړيدل نو دغه علماء به مو تر لاس نيسي، همدغه علماء به مو محو کوي داغه علماء به پرخپل ځای ثابت او قائم وي نوره خبره له ماسره نسته، بس دغه خبره وه چې دغه علماوو ته ما ورسوله، دغه حاضرين به يې د امانت په شکل باندې تر شا چې هر څوک پاته دي هغو ته رسوي.

وما علينا الا البلاغ

د ملا صاحب وينا د غونډې د ګډونوالو له تاوده استقبال او د تکبير له نعرو سره پای ته ورسيدله.

دا ورځ له ځانګړي کيف او جوش سره مله وه چې د برخوالو تاوده احساسات هره شيبه د تکبير په نعرو سره اظهاريدل.

وروسته غونډې ته د طالبانود تحريک نوميالي خطيب او د عالي شورى غړي مولوي احسان الله احسان[1] وينا وکړه، نوموړي د غونډې پريکړه ليک هم ولوست چې مهم ټکي يې په لاندې ډول و.

د کابل د ادارې مشر برهان الدين رباني واجب العزل او پر ځای يې ملامحمد عمر مجاهد د شرعي امير په توګه وټاکل شو.

د معزول رباني د ليري کيدو تر وخت به طالبان خپلې رواني مبارزې ته دوام ورکوي.

---

(۱) شهيد مولوي احسان الله احسان د مولوي اغا محمد زوی د کندهار ولايت د شاولي کوټ ولسوالي د بورې د علاقې اوسيدونکی په ۱۳۸۱ هجري قمري کال کې زيږيدلی و. نوموړي د ځواني عمر په جهاد او د ديني علم په تعلم کې تېر کړی و چې له ښه علم سربيره يې د خطابت ښه استعداد درلود. کله چې د طالبانو اسلامي تحريک تأسيس شو نوموړی له پيله ورسره ملګری و، د نوموړي ستره کارنامه دا ګڼل کيږي چې د هيواد په جنوب ختيځ زون (پکتيا، پکتيکا او خوست) کې يې د ځايي قومندانانو په قانع کولو سره دغه سيمه پرته له جګړې د اسلامي تحريک تر واک لاندې راوسته. مولوي احسان الله صاحب څه موده په کابل کې د افغانستان بانک د عمومي مشر-په حيث دنده اجراء کړه. د ۱۳۷۶ لمريز کال په جوزا مياشت کې چې طالبان له جنرال مالک سره د يوې موافقې له مخې د بلخ مرکز مزار ښار ته داخل شول، مولوي احسان الله صاحب هم د الوتکې له لارې له څو نورو مشرانو سره مزار شريف ته ځان ورساوه، وروسته چې جنرال مالک غدر وکړ او ډېر طالبان يې شهيدان کړل، مولوي احسان الله احسان صاحب هم له نورو طالبانو سره د تنګي شاديان په سيمه کې شهيد شو، چې وروسته يې جسد کندهار ته راوړل شو او د کندهار ښار د لويې ويالې په سيمه کې د طالبانو په هديره کې خاورو ته وسپارل شو.

په افغانستان کې به د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې يو آزاد او سوچه اسلامي حکومت جوړيږي.

د افغانستان په کورنيو چارو کې د بهرنيو هيوادونو لاسوهنې غندو او له ټولو مسلمانانو څخه يې د مخنيوي غوښتنه کوو.

د ټولو مسؤليت دا دی چې د هيواد د ځمکني تماميت او استقلال په ټينګه دفاع وکړي او هيواد له تجزيې څخه وژغوري.

د غونډې وروستی ورځ په ټولو ګډونوالو اغيز کړی و خو د عيني شاهدانو له قوله تر ټولو زيات اغيز يې خپله په ملامحمد عمر مجاهد کړی و. د يوه عيني شاهد مولوي احمد جان احمدي په خبره چې په غونډه کې ملا صاحب ته نږدې ناست و، ملا صاحب د غونډې په مهال پرلپسې ژړل او اوښکې يې تويولې، ملا صاحب د خپل پاچ پټکي شمله په اوښکو لمده کړې وه تر دې چې د آرش رخت څخه په جوړ شوي پټو يې هم د اوښکو لمدوالی او اثرات معلوميدل. ښايي د زعامت درونـد پيټی او مسؤليت ورسپارل به و چې هغه يې د ژړا تر حده رسولی و.

مولوي احسان الله احسان د خپلې جذابې وينا په لړ کې علماء کرامو ته وړانديز وکړ. دا چې تاسو ملا محمد عمر مجاهد د شرعي امير او زعيم په حيث تعين او تائيد کړ. نو د زعامت په موضوع کې د صحابه کرامو سنت دا و چې د مسلمانانو مشر به يې اميرالمؤمنين باله. رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي چې څوک د فساد په زمانه کې يو سنت احياء کړي ډېر ستر اجرونه لري. په اوس زمانه کې چې دا لقب له مسلمانانو هير دی که يې موږ را ژوندی کړو الله تعالی به ستر اجرونه راکړي نو آيا تاسو موافق نه ياست چې خپل شرعي زعيم ته د اميرالمؤمنين لقب ورکړو! په دې سره نه يوازې ټولو علماء کرامو په يوه غږ د موافقت غږونه وکړل بلکې په مجلس کې د تکبير زمزمې او هيجاني چيغې هم پورته شوې. وروسته مولوي احسان الله احسان ملا صاحب د ستيج خواته وغوښت لومړی يې خپله ورسره د امير په حيث بيعت وکړ او وروسته ټولو علماء کرامو ورسره لاس په لاس بيعت پر ځای کړ.

په کندهار کې د علماء کرامو د سترې غونډې د ورځو يوه بله مهمه واقعه د ملا صاحب لخوا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مبارکې خرقې[1] (چپنې) را ایستل او خلکو ته ښودل و. رسول الله صلی الله علیه وسلم ته منسوبه خرقه شریفه چې په افغانستان کې يو له تر ټولو مهمو او متبرکو آثارو ګڼل کيږي، شاوخوا دوه نيم سوه کاله پخوا د معاصر افغانستان د مؤسس احمد شاه بابا لخوا له خوا له بدخشان څخه راوړل شوې او تر اوسه پورې په کندهار کې د احمد شاه بابا د مقبرې په محوطه کې په يوه ځانګړې ودانۍ کې ساتل کيږي.

د ملا صاحب د دفتر کارکوونکی او د نوموړي خاص محرر ملا عبدالسلام کاتب وايي چې د علماء کرامو د غونډې په شپو کې يوه شپه ماخستن ناوخته ملا صاحب ناڅاپه وويل چې درځئ خرقه شریفه وګورو. خرقه شریفه د امارت د مقام دفتر (ارګ) او د

(۱) د کندهار خرقه شریفه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته منسوبه هغه چپنه ده چې د تاریخي رواياتو له مخې په لومړيو پيړيو کې د عباسي خلافت په مرکز بغداد کې ایښې وه. کله چې په نهمه هجري پيړۍ کې په سمرقند کې امیر تیمور ګورګاني را پيدا شو او له چین تر عراق او شام پورې يې ډيرې سيمې ونيولې، نوموړي د دنيا له مختلفو سيمو تاریخي اثار او متبرکات هم له ځان سره سمرقند ته راوړل، چې په دې لړ کې نوموړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه مبارکه چپنه هم له بغداد څخه سمرقند ته راوړه. په ۱۱۰۹ هجري قمري کال کې خرقه مبارکه بدخشان ته يووړل شوه، تر دې چې کله احمد شاه بابا به په کندهار کې د لويې امپراطورۍ بنسټ کیښود په ۱۱۸۱ هجري قمري کال کې يې خرقه مبارکه د خاصو مراسمو په لړ کې د افغانستان د هغه وخت پلازمینې کندهار ته راوړه او دلته په ځانګړې ودانۍ کې کیښودل شوه. خرقه شریفه په همدې ځانګړې ودانۍ کې په خاص ځای کې ایښې وي او کله ناکله د وخت د حاکمانو په غوښتنه را ایستل کيږي تر څو يې خلک ووینې. له ملا محمد عمر مجاهد وړاندې د وروستي ځل لپاره څه کم شپیته کاله وړاندې په ۱۳۱۸ لمريز کال کې د محمد ظاهر شاه د پاچاهي په لومړيو کې خرقه شریفه د خلکو د لیدلو لپاره را ایستل شوې وه. (د کندهار د خرقې شریفي تاریخچه، عزیز الدین وکیلي)

ولایت مقام ته مخامخ د واټ پر بله غاړه د احمد شاه بابا د مقبرې په محوطه کې په یوه ځانګړي ګنبدي ودانۍ کې ایښې وه.

ملا صاحب د خپل دفتر څو محدود شمېر ملګري، چې د دفاع وزیر ملا عبیدالله آخند او د امر بالمعروف و نهی عن المنکر وزیر مولوي محمد ولي صاحب چې دفتر ته د کوم کار لپاره راغلي وو د ځان سره ملګري کړل او پیاده د خرقې شریفې پر خوا روان شو. د خرقې شریفې ودانۍ ته له رسیدو وروسته یې متولیان چې دلته نږدې یې کورونه وو راوغوښتل او خپله اراده یې ورته څرګنده کړه. هغوی هم سمدستي د کور خواته لاړل اود خرقې شریفې د قلفونو کلیانې یې راوړې. اول یې د خرقې شریفې د ودانۍ عمومي دروازه خلاصه کړه چې دننه شوو، مخامخ یو طرف ته جلا اطاق و، چې یوه لوړه کړکۍ او کیڼ اړخ ته یې یوه دروازه راخلاصه ده خو دا دروازه همیشه قلف وي. عام زائرین یوازې همدې لویې ګنبدي ودانۍ ته ورننوځي، همدلته تلاوت کوي، درود شریف وایي او یا دعاګانې کوي.

ملا صاحب د ګنبدي ودانۍ په منځ کې د همدې ځانګړي اطاق دروازې ته ورغی او متولیانو قلف خلاص کړ. اطاق ته چې داخل شوو، دننه په یوه لوړ ځای په ټوکرانو کې پوښلی یو لوی صندوق ایښی دی. کله چې متولیانو غوښتل د دې صندوق قلف خلاص کړي، نو ډېر ځنډ یې ورباندې ووت، ځکه دا قلف ډېر کلونه نه و خلاص شوی او کیلي پیدا کول یې هم آسانه نه و. کله چې دا قلف خلاص شو، د دې لوی صندوق په منځ کې بل کوچنی صندوق و چې هغه هم قلف و خرقه شریفه په همدې کوچني صندوق کې ایښې وه. د کوچني صندوق د قلف له خلاصیدو وروسته ملا صاحب خرقه شریفه په دواړو لاسونو راپورته کړه له ځان سره یې ونیوله او په ځانګړي کیفیت ورته متوجه و. په اطاق کې موجودو کسانو چا له احساساتو اوښکې تویولې، چا په خرقه شریفه د تبرک لپاره لاس واهه او یا یې تسبیح ورباندې د تبرک لپاره لګولې.

خرقه شریفه چې نرم او پنډ جوړښت لري، د لستوڼو اندازه یې تر څنګلو پورې ده چې د رنګ په اړه یې مختلف تعبیرات کیدل، ملا صاحب څه شیبه وروسته خرقه شریفه په

خپل خاص صندوق کې کېښود له صندوق يې قلف کړ او بيا يې په لوی صندوق کې قلف کړه او بيرته د امارت مقام (ارگ) ته راستون شو.

دا چې عامو خلکو خصوصا د کندهار اوسيدونکو له ډېره وخته د خرقې مبارکې د ليدلو تلوسه درلوده نو ملاصاحب مناسبه وبلله چې وروسته له ډېرو کلونو يو ځل بيا خرقه شريفه په عام محضر کې خلکو ته ورښکاره کړي. په کندهار کې د علماء کرامو د لويې غونډې له پای ته رسيدو سره سم نوموړی له خپلو ملگرو سره ماخستن مهال خرقې شريفې ته ورغی او د متوليانو سره په مشوره يې د خرقې شريفې کوچنی صندوق له ځان سره د امارت مقام ته راووړ، چې ورسره د خرقې شريفې يو متولي هم و. د سبا لپاره ترتيب جوړ شو تر څو د کندهار په زړه عيدگاه کې د خاصو مراسمو په لړ کې عامو خلکو ته خرقه شريفه وښودل شي. د عيدگاه امنيت له وړاندې نيول شوی و، سبا عيدگاه ته خلک را روان شول او د علماء کرامو بيانونه هم شروع شول. ملا محمد عمرمجاهد چې د خرقې شريفې صندوق يې په خپل موټر کې ايښی و، هم عيدگاه ته لاړ او محراب ته نږدې د ځانگړې فرعي دروازې له اړخه عيدگاه ته داخل شو. عيدگاه ته د خلکو جوپې را رواني وې غرمه مهال د خلکو گڼه گوڼه زياته شوه، ملا محمد عمر مجاهد چې د خرقې شريفې متولي او څو تنه د امارت د مقام ملگري طالبان هم ورسره وو، د عيدگاه په بام يې د خرقې شريفې صندوق خلاص کړ او په ولاړه يې ټولو خلکو ته خرقه شريفه وښوده. په دې سره په خلکو کې جوش او ولوله پيدا شوه او د تکبير نعرې پورته شوې، د خپل محبوب پيغمبر صلی الله عليه وسلم ياد او محبت يې په زړونو کې په څپو شو. وروسته ملا صاحب خرقه شريفه بيرته په صندوق کې کېښوده او له هماغه ځانگړې لارې په راوتلو سره يې صندوق په خپل موټر کې کېښود. خو پر لاره هم د خلکو هجوم زيات و او هر چا کوښښ کاوه چې د ملا صاحب موټر ته ځان ورسوي. د ملا صاحب ساتونکو د لارې خلاصولو په هدف خلک منع کړل او ملا صاحب د امارت مقام ته ورسيد. د دې لپاره چې د خلکو د هجوم له امله د خرقې شريفې بې احترامي ونه شي په را روانه شپه چې کله د خلکو تگ راتگ کم شو او د ماخستن لمونځونه وشول، ملاصاحب خرقه شريفه د متوليانو په حضورکې بيرته خپل ځای ته يووړه او په هماغو ځانگړو صندوقونو او خاص اطاق

کې يې کېښوده. په دې سره له يوې خوا هغه افواهات او شکونه ختم شول چې ځينو خلکو ويل کېدای شي دغه تاريخي ارزښت لرونکې متبرکه خرقه شريفه د انقلاب او جګړو په کلونو کې له دې ځايه ورکه شوې وي او بل دا چې عامو مسلمانانو له ډېره وخته د خرقې شريفې د ليدلو تلوسه درلوده چې په دې سره هغه ارمان هم پوره شو.

## د ختيځو ولاياتو او کابل فتحه

وړاندې يادونه وشوه چې طالبان د ۱۳۷۳ لمريز کال د دلوې په مياشت کې د کابل تر دروازو رسيدلي وو، چې له لنډ مهالي سوله ايزې فضا وروسته د مسعود له قواوو سره په جنګ واوښتل. د ۱۳۷۳ کال له وروستيو مياشتو بيا د ۱۳۷۵ کال تر اوړې پورې پوره يونيم کال طالبان د کابل په جنوب، جنوب لويديځ او لويديځو لمنو کې د مسعود له قواوو سره په وقفه يي شکل په جګړو بوخت وو.

د لويديځې حوزې په شان کابل ته څېرمه جګړې هم ملا صاحب خپله څارلې، هغه وخت چې طالبانو د کابل پر خوا پرمختګ کاوه ملا صاحب مسلسل، غزني، ميدان وردګ او لوګر ته د څرخکې له لارې سفرونه وکړل او د جګړې په وضعيت يې ځان پوه کړ. د کابل له فتحې څو مياشتې وړاندې هم ملا صاحب د لوګر او ميدان ښار په حدودو کې پر کابل د راګرځيدلو جنګي کرښو د ليدلو لپاره سيمې ته سفر وکړ چې په دې سيمې يې څرخکه له حادثې سره هم مخامخ شوه. د ملا محمد عمر مجاهد د دفتر يو کارکوونکی د دې سفر کيسه داسې کوي.

ملا صاحب چې کله د کابل د جنګي کرښو د ليدلو لپاره د سفر اراده وکړه نو له خپلو ملګرو سره په څو موټرو کې د کندهار هوايي ډګر ته لاړ، هلته يې مسؤلين را وغوښتل تر څو لوګر ته د سفر ترتيب ونيسي، د غلام جان پيلوټ په نوم يوه مسؤل وويل چې بايد دوه څرخکې آماده کړو څکه نفر ډېر دي، په دې ډول يوه غير نظامي څرخکه او يوه بله پوځي څرخکه سفر ته آماده شوه. ملاصاحب له غلام جان پيلوټ سره په پوځي څرخکه کې سپور شو چې د پيلوټ له ځای سره نږدې يې يو خصوصي د ناستې ځای درلود. کله چې لوګر ته ورسيدو د لوګر والي مولوي عبدالکبير صاحب او نور طالبان هرکلي ته راغلي وو. دا چې دا سيمه کابل ته نږدې وه او هره شيبه د مسعود الوتکو

بمبار کاوه، بله دا چې ملا صاحب بیرته عاجل د تللو اراده نه درلوده نو په دې خاطر چې په څرخکو بمبار ونه شي، دواړه څرخکې یې بیرته غزني ته ولیږلې تر څو کندهار ته د بیرته تگ تر وخته همالته انتظار وکړي. ملا صاحب د مولوي عبدالکبیر صاحب په کوربه توب د طالبانو یو مخفي مرکز ته لاړ وروسته د جنگ کرښې ته نږدې یو ځای یې د مجلس لپاره انتخاب کړ. په همدې شپه یې له ملا بورجان آخند او ملا مشر آخند نه علاوه د چهار آسیاب او میدان ښار د خطوطو گڼ مجاهدین او مسؤلین ولیدل. په مجلس کې تېر جنگي وضعیت وڅېړل شو او د کابل پر خوا د پرمختگ نوي پلان ترتیب شو. ورپسې له عامو مجاهدینو سره ملا صاحب تر سهاره مجلس وکړ. سهار چې ملا صاحب د بیرته تگ اراده درلوده، حال راغی چې هماغه پوځي څرخکه چې ملا صاحب له کندهاره په کې راغلی و، له لوگر څخه غزني ته د تلو په وخت په غزنیو سیمو کې له سقوط وروسته په مکمل ډول له منځه تللې او پیلوټ یې (غلام جان) هم ژوند له لاسه ورکړی.

که څه هم د الوتکې د سقوط دقیق علت معلوم نه شو، خو دا چې له پخواني رژیم پاته اکثره څرخکو د کارولو قانوني وخت پوره کړی او عوارض یې درلودل نو ځکه دغسې د سقوط واقعات په کې ډېر پیښیدل. ملا صاحب د بیرته تلو په وخت تر غزني پورې په موټر کې لاړ او له هغه ځایه په دوهمه څرخکه کې سپور شو. د نوموړي د سفر یو ملگری وایي کندهار ته نارسیده چې د مازدیگر لمونځ قضاء کیدونکی و او کندهار ته مو لمونځ نه شوای رسولی، ملا صاحب پیلوټ ته وویل چې سیند ته نږدې په مناسب ځای څرخکه کینوي تر څو ملگري اودسونه او لمونځ وکړي. له لمانځه اداء کولو وروسته څرخکې بیا پرواز وکړ او کندهار ته ورسیدو. خو له دې وروسته د امارت اکثرو مشرانو ملگرو په ملا صاحب تاکید وکړ چې په څرخکو کې ډېر سفر ونه کړي ځکه د سقوط واقعات په کې ډېر پیښیدل. په هر حال خبره مو د پلازمینې کابل د فتحې په اړه کوله، کابل بالاخره د ملا بورجان اخند په مشرۍ د هغو سترو عملیاتو په لړ کې فتحه شو چې له پکتیکا او پکتیا پیل او د ننگرهار، لغمان او کونړ له نیولو وروسته د پلازمینې کابل په فتحه پای ته ورسیدل.

د ۱۳۷۵ د جوزا په ۴ مه نیټه د طالبانو د دوو سترو مخالفینو حکمتیار او رباني تر منځ د ماهیپر میثاق امضاء شو او څو ورځې وروسته ګلبدین حکمتیار د نوي صدر اعظم په حیث کابل ته لاړ. حکمتیار چې په تیر یو نیم کال کې یې یوازې د طالبانو او رباني د جګړو ننداره کوله له رباني سره له یو ځای کیدو وروسته یې یو ځل بیا د طالبانو په خلاف تهاجمي موقف غوره کړ. د حکمتیار قومندانانو په بیلابیلو سیمو کې سرونه راپورته کړل، په میدان وردګ کې د حزب قومندان ظفر الدین په طالبانو برید وکړ او د نرخ ولسوالي یې ونیوله. د پکتیکا په اورګون کې د حکمتیار مشهور قومندان خالد فاروقي جګړه پیل کړه او ځینې سیمې یې ونیولې.

طالبانو د اسد په میاشت کې د ملا بورجان آخند په مشرۍ یو لوی لښکر د پکتیکا اورګون ته واستاوه او د حکمتیار کسان یې له سیمې وشړل. وروسته همدا لښکر پکتیا ته راوګرځېد او د پکتیا په ختیځو ولسوالیو یې چې تردې مهاله د حکمتیار او سیاف د کسانو په لاس کې وې عملیات پیل کړل. د همدې کال د سنبلې په لومړیو ورځو کې احمدخېل ولسوالي، د ځاځیو اریوب، د علي خیلو چوڼۍ، د اتحاد د توربابا غونډ او وریسې سپینه شګه طالبانو ونیوله او د لوګر د ازرې په خوا یې پرمختګ ته دوام ورکړ.

د لوګر د ازرې او د ننګرهار د حصارک له تصفیې وروسته طالبان په جلال اباد ورغلل، دجلال اباد د حاکمې شورا ډېرو غړو (دحاجي قدیر له ډلې پرته) له وړاندې له طالبانو سره تماس نیولی و او د طالبانو د ورتګ هرکلي یې کړی و دا مهال که له یوې خوا طالبان د حصارک لخوا د جلال اباد پر خوا روان وو له بلې خوا د تورخم د سرحدي ښار واک هم طالبانو د ځایي قومندانانو او مجاهدینو سره د مخکنۍ مفاهمې له لارې ترلاسه کړی و. د جلال اباد د شورا ګڼ شمیر غړي او منسوبین چې انجینیر محمود، حاجي سازنور، نادر عرب، نعیم پاچا، محمد اکبر مجددي او نور په کې شامل وو له طالبانو سره د پیوستون په خاطر د تورخم په خوا روان شول، چې په لاره کې ورته د یوه ځایي ټوپکمار قومندان لخوا کمین نیول شوی او تقریبا ټول یې په سخته بې رحمۍ په شهادت ورسول. په همدې کې کله چې د ۱۳۷۵ لمریز کال د سنبلې په ۲۱ مه نیټه (۲۷ / ۴ / ۱۴۱۷هق) د طالبانو زر کسیز لښکر جلال اباد ته ننوتلو نو د حضرت علي او

مسعود قواوې تر دوی د مخه ښار ته ننوتې وې. طالبان د درونټې په سیمه کې دحضرت علي د کسانو له کمین سره مخامخ شول، خو حضرت علي ډېر ژر شکست وخوړ او مخ په لغمان وتښتيد، په ښار کې يوازې د کابل د رژيم ځينو راغليو وسلوالو خال خال مقاومت وکړ، نور جلال اباد په پوره امن د طالبانو لاس ته ولوېد. د جلال اباد له نيولو وروسته په داسې حال کې چې په طالبانو پرلپسې د کابل درژيم لخوا بمبار روان و، حضرت علي يوځل بيا د لغمان لخوا په جلال اباد د بريد هڅه وکړه او د دوراهي په سيمه کې سرک ته راووت. طالبان د ملا بورجان آخند په مشرى د نوموړي په تعقيب ووتل، چې نه يوازې يې په دې عملياتو کې حضرت علي ته سخت شکست ورکړ، بلکې د لغمان مرکز مهترلام او نورې ډيرې سيمې يې هم ونيولې او د حضرت علي کسان عليشنگ او دولت شاه ته وتښتيدل. له دې وروسته طالبان د ملابورجان اخند په مشرى د سنبلې په ۳۱ مه نيټه د کونړ ولايت مرکز اسعداباد ته داخل شول. دلته د کابل د رژيم يو قومندان شير افضل له طالبانو سره په جگړه کې ووژل شو او نورو د تيښتې لاره ونيوله.

**کابل څنگه ونيول شو؟**

د طالبانو لخوا د کابل د فتحې عمليات د افغانستان دجگړو په تاريخ کې بې سارې عمليات بلل کيږي. يو لويديځ ژورناليست ډيويډ لاين د پوځي چارو د يوه کارپوه له قوله د دې جگړې په اړه وايي(دا د خوځنده جگړې يوه خورا نادره او اغيزناکه بيلگه وه د افغانستان په جگړه ايز تاريخ کې تراوسه هيڅ کومې ډلې هم په دومره پراخه عملياتي سيمه کې په داسې پيچلو او پريکنده عملياتو لاس نه وو پورې کړی)

د کابل د فتحې په عملياتو کې د طالبانو شمير تر سلگونو اوښت چې مشري يې د ملا بورجان اخند په غاړه وه دغه راز د وريښمين تنگي او لته بند له اړخه په همغږو عملياتو کې ملا فاضل اخند، ملا عبدالرزاق، ملا دوست محمد، ملا سلام راکټي، ملا سيف الرحمن منصور، مولوي خوشال ملنگ او گڼو نورو نظامي مشرانو هم گډون درلود. ملا محمد رباني اخند د دې ټول عملياتي بهير په اکمالاتو او له فتوحاتو وروسته د نظم او ادارې په سمبالولو بوخت و.

دطالبانو په مقابل کې دحکمتیار او مسعود په سلګونو ځواکونو د کابل ختیځ ته د سروبي او ماهیپر په غرنیو سیمو کې سنګرونه نیولي وو. نه یوازې د کابل د رژیم ځمکنۍ قواوې ډیرې وې بلکې هغوی له ډیرې مودې راهیسې په دې سیمه کې په سرک، د غره په ډډو، د سیند په غاړو، تر پلونو لاندې او هرځای کې ماینونه هم ښخ کړي وو.

د لته بند له اړخه د دې عملیاتو مسؤل ملا فاضل اخند وایي چې کله طالبان د افغانستان د ختیځ پر خوا د پرمختګ په حال کې د لوګر له ازرې د ننګرهار حصارک ته ورسیدل، نو د عملیاتو عمومي مشر ملا بورجان آخند ماته امر وکړ چې ته له یو شمیر مجاهدینو سره همدلته په حصارک کې پاته شه. د ده پلان دا و چې په کابل به له دوو اړخونو (وریښمین تنګي او حصارک له اړخونو) حمله کوي. تر څو د دښمن لښکر په یوه پراخه سیمه کې په جګړه کې ښکیل او ځواک یې تقسیم شي.

د وریښمین تنګي له اړخه ددې عملیاتو یو برخوال ملا عبدالرزاق اخند دهیواد ورځپاڼې د پنځمې دورې له (۳۲۸) ګڼې سره په مرکه کې ویلي (په وریښمین تنګي کې له دوه ورځې انتظار وروسته د میزان په دریمه نیټه ملابورجان اخند له کونړه راغی او د کابل د نیولو د عملیاتو نقشه یې جوړه کړه. نقشه داسې وه چې د ملا فاضل اخند په مشرۍ طالبان به د حصارک لخوا د لته بند، جګدلک او پل چرخي پر خوا پرمختګ ته دوام ورکوي او موږ به له دې خوا د سروبي پر خوا مخ پر وړاندې ځو)

د میزان په دریمه د ماسپښین په یوه بجه په وریښمین تنګي کې د شهید ملابورجان اخند په قومانده د دښمن په دفاعي خط برید پیل شو، برید یو څه وخت دوام وکړ، ترڅو شیبه وروسته د دښمن خط مات شو طالبانو پرمختګ پیل کړ. په همدې ورځ مازدیګر مهال د دښمن د هشتادودو توپ یوه مرمۍ د ملا بورجان آخند له خوا سره ولګیده چې په پرزو یې نوموړی ځای په ځای په شهادت ورسید. د ملا بورجان اخند نږدې ملګرو د ده په جسد پټو واچاوه او په موټر کې یې کیښود تر څو یې نور ملګري په شهادت خبر نه شي او مورال ونه بایلي.

په همدې ورځ طالبانو په داسې حال کې چې پرلپسې له بمبار، مقاومت او د ماینونو له خطر سره مخامخ وو تر سروبي پورې پرمختګ وکړ. ماخستن مهال طالبانو په سروبي کې د زرداد په غونډ برید وکړ او فتحه يې کړ. دا مهال د ملا فاضل اخند په مشرۍ طالبان چې د حصارک لخوا يې عمليات پيل کړي و هم سروبي ته راورسيدل. ملا فاضل آخند د حصارک د استقامت په اړه وايي: د وريښمين تنګي له اړخه د تعرض له پيل يوه ورځ وړاندې پر موږ د حزب کسانو بريد وکړ، خو طالبانو مقاومت وکړ او د حزب کسان وتښتيدل. سبا ملا بورجان آخند حال راکړ چې نن عمومي تعرض شروع کيږي نو تاسو هم کار شروع کړئ. په دې ډول موږ هم تعرض پيل کړ او پرمختګ ته مو دوام ورکړ تر دې چې نغلو ته ووتلو او وروسته د وريښمين تنګي لخوا راغلي مجاهدين هم راسره يو ځای شول. دغه وخت ملا بور جان آخند شهيد شوی و، خو نږدې ملګرو يې دغه خبره پټه ساتلې وه.) همدلته ماخستن د ملا عبدالرزاق، ملافاضل آخند، ملا دوست محمد، ملا سلام راکټي او ثاني ملا مشر په ګډون د طالبانو قومندانانو د يوه مجلس په لړ کې د سبا ورځې د عملياتو نقشه جوړه کړه. فيصله داسې وشوه چې د جلال اباد او حصارک لخوا راغلي طالبان دې نه سره يوځای کيږي. د حصارک لخوا راغلي طالبان به سبا د لته بند په استقامت بريد کوي او د جلال اباد لخوا راغلي طالبان به په ماهيپر ورخيژي.

سبا د ميزان په څلورمه په دواړو خواوو کې بريدونه پيل شول، د ملا فاضل اخند تر مشرۍ لاندې طالبانو د چکړي پر سر بريد پيل کړ او د دې سيمې له نيولو وروسته يې تر بند غازي پورې پرمختګ وکړ. د ماهيپر د استقامت په اړه ملا عبدالرزاق اخند وايي: د ورځې لس بجې وې چې موږ له سروبي څخه جنګ شروع کړ، د پرمختګ په مهال دښمن د الوتکو او چورلکو سخت بمبار کاوه. د برق له فابريکې سره پله ته چې راورسيدو نو تر پله لاندې لوګي پورته کيدل، يوه طالب ورمنډه کړه چې کتل يې تر پله لاندې يې ډېر زيات باورت ايښي دي او شيبه په شيبه د ثانيه سوز اور ورنږدې کيږي، طالب ورباندې حمله کړه ثانيه سوز يې پرې کړ او په دې توګه يې د پله د تخريب مخه ونيوله. دښمن هڅه کوله په دې برخه کې د پلونو او تونلونو په منفجرولو سره زموږ مخه ونيسي. کله چې ماهيپر ته راورسيدو، دلته دوی له وړاندې محکم سنګرونه جوړ کړي

وو. دښمن درې ساعته سخت مقاومت وکړ، ماسپښين مهال چې کله جګړه ډېره اوږده شوه، نو مو پریکړه وکړه چې یو ځل وروستی زور ورباندې ازمویو که مقاومت مات نه شو، نو د شپې لپاره به دا قامت ترتیبات نیسو او خپله دفاع به قوي کوو. د وروستي برید لپاره مو ټانګونو ته د پرمختګ امر ورکړ ترڅو تونل ته نږدې د دښمن په مورچل بریدونه پیل کړي، زموږ یو برید کوونکی ټانګ چې د تونل په خوا ورپه مخ شو، په یو ډېر تنګ ځای کې د دښمن لخوا وویشتل شو، اور ورباندې بل شو او ځای په ځای داسې ودرید چې لاره یې په مکمله توګه بنده کړه. په دې کار سره ټول سخت متحیر شوو، ځکه په ټانګ کې ډېرې مرمۍ وې چې هره شیبه یې د انفجار ویره وه له بلې خوایې لاره بنده کړې وه، چې د وړاندې تیریدو بله هیڅ لاره نه وه، موږ په همدې اړه فکر کاوه، چې د الله تعالی نصرت مو په خپله ولید، هغه داسې چې ټانګ له یوې شیبې ځای په ځای دریدو وروسته خپله په شا روان شو، د سرک د غاړې محکم دیوال یې ورسره واخیست او لاندې سیند ته وغورځید چې په دې ډول د وړاندې تګ لپاره لاره خلاصه شوه. دا شیبه نو ټول ملګري بیرته سخت خوشاله شول، په دې وخت کې ملګرو په پوره زړورتوب په تونل وروغځستل، کله چې تونل ته ورسیدو ګورو چې د تونل د انفجار لپاره په زیاته اندازه باروت، پټاکې او نور وسائل رایوځای شوي، خو یوازې بسته شوي نه دي)

د میزان په څلورمه طالبانو د یوه سخت جنګ په پایله کې د ماهیپر کوتل ونیو، ماښام چې طالبان له ماهیپر تیر شوي وو د لته بند لخوا نورو ملګرو حال ورکړ چې موږ هم د پلچرخي په خوا در روان یو، په همدې ګړی د مس عینک لخوا د طالبانو د تعرض او د دښمن د کمربند ماتیدو خبر هم راغی چې د طالبانو مورال یې نور هم لوړ کړ. په همدې شپه دښمن په قوای چهار کمربند واچاوه او طالبانو له قوای چهار لږ وړاندې شپه تیره کړه. سبا د میزان په پنځمه طالبانو په میدان ښار او د چهاراسیاب په خوا کې هم جنګي کرښو ته احوال ولیږه چې بریدونه پیل کړي په اتو بجو د قوای چهار په ساحه کې په دښمن تعرض پیل شو، دښمن شکست وخوړ د پل چرخي سیمه فتحه شوه چې هم مهال د لته بند لخوا راروان شوي ملګري هم راورسیدل او دواړه لښکرې د پل چرخي په پله سره یوځای شوې. د میزان په پنځمه ټوله ورځ که له یوې د کابل

ختیځ ته د ګمرګ او حربي پوهنتون په ساحه کې سخت جنګ روان وو، بله خوا د ملافاضل اخند په مشرۍ مجاهدینو په کارته نو او تپه مرنجان باندې برید شروع کړی و او د دښمن قواوې یې شاتګ ته اړ کړې وې. ماسپښین ناوخته د کابل ښار په ختیځ کې جګړې سخت زور واخیست، د دښمن محاربوي ټانګونو سختې حملې وکړې، دغه راز له تلویزون غره څخه د توپچي بریدونه هم کیدل خو په عین حال کې مازدیګر مهال نظامي مشرانو معلومات ترلاسه کړل چې دښمن عملا له ښار څخه د تیښتې په حال کې دی. د شپې په رانږدې کیدو سره د مقابل لوري مقاومت هم په ټولو خواوو کې کمزوری کیده، د ماښام له تیارې سره د چهاراسیاب لخوا هم د دښمن خط رامات شو، د شپې په رابریدو سره مقاومت بشپړ ختم شوی او نظامي مشرانو په دې مشوره کوله چې کابل ته باید په څه ترتیب داخل شي.

په دې توګه طالبان د۱۳۷۵ لمریز کال د میزان د پنځم او شپږم تر منځ شپه باندې یوولس بجې شاوخوا د کابل ښار ته داخل شول او د افغانستان پلازمینه یې تر واک لاندې راوسته. د پلازمینې له نیولو وروسته د طالبانو لومړنی کار د ملیونونو مظلومو افغانانو، کونډو او یتیمانو د ارمان پوره کول و. ډاکټر نجیب د کمونیست رژیم پاتې شونی چې د شوروي یرغل په کلونو کې د کمونیست رژیم د استخباراتو (خاد) رئیس و او په لسګونو زره افغانان یې د مسلمانۍ په جرم اعدام کړي یا ژوندي تر خاورو لاندې کړې وو. دغه راز چې وروسته د کمونیست ګوند عمومي منشي او د ملحد رژیم واکمن وټاکل شو، هم یې ډېر مظالم ترسره کړل او نوموړي ته سزا ورکول د کمونیزم ځپلي افغان ولس ستر ارمان و، دغه وخت چې نوموړی په کابل کې نظربند و طالبانو د خپل عمل په سزا ورساوه.

د کابل د فتحې په تعقیب طالبانو په راتلونکو ورځو کې د کابل شمال ته د پروان او کاپیسا ولایتونو مراکز هم ونیول او مسعود یې د پنجشیر درې ته وشاړه.

ملا محمد عمر مجاهد د نورو عملیاتو او جګړو په څېر د افغانستان د ختیځ او کابل د فتحې عملیات هم شیبه په شیبه تعقیبول او له نظامي مشرانو سره د همیشنۍ رابطې په توسط یې د هغوی اړتیاوې رفع کولې او لازم هدایات یې ورته کول.

ملا صاحب چې د ملا بورجان اخند له شهادت څخه خبر شو نو یې ملا محمد رباني د هغه په ځای د مجاهدینو مشر تعین کړ خو دغه ټاکنه د دې لپاره د کابل د فتحې تر وخته اعلان نه شوه تر څو په جنگ بوخت طالبان د ملا بورجان اخند له شهادته خبر نه شي ځکه په هغه جگړه ایز حالت کې د نظامي قائد د شهادت خبر یې په جنگي مورال ناوړه اغیز کولای شوای.

د کابل له فتحې وروسته ملا صاحب د یوه فرمان په صدور سره د پخواني نظام ټولو کابل میشتو ملکي او نظامي کارکوونکو ته عمومي عفو اعلان کړه او وعده یې وکړه چې د اسلامي نظام تر سیوري لاندې به د نورو مسلمانانو په څیر له ټولو مادي او معنوي امتیازاتو برخمن او سر، مال، حیثیت او ټول ارزښتونه به یې خوندي وي.

په کابل ښار کې د نظم د اعادې او حکومتي ادارې د فعالولو لپاره ملا صاحب د ملا محمد رباني په مشرۍ شپږ کسیز کمیسیون وټاکه چې نور اعضاء یې ملا محمد حسن، ملا عبدالرزاق، سید غیاث الدین اغا، ملا محمد غوث او ملا محمد فاضل اخند وو. دوی دنده درلوده تر څو له فتحې وروسته د رسمي ټاکنو د اعلان او استقرار تر وخته د پلازمینې د ټولو امنیتي، ملکي او نظامي چارو مسؤلیت په غاړه واخلي او د گډوډیو، لوټ تالان او نورو ناوړه کړنو مخنیوی وکړي.

د کابل له فتحې وروسته د ملا محمد عمر مجاهد لخوا دریمه اعلامیه د یو لړ نورو انتظامي امورو په رابطه نشر شوه چې څو مادې یې په دې ډول وې.

لومړی: تر دې وروسته به په افغانستان کې سوچه، خالص اسلامي نظام حاکم وي.

دوهم: ټول هغه افغاني سفیران چې په بهرنیو هیوادونو کې مقرر دي د دوی کارونه معطل دي او د کارونو د اجراء صلاحیت نلري. ټول بهرني هیوادونه دي د افغانستان د نقد او جنس اموالو ساتنه وکړي.

دریم: د کابل له ټولو ښاریانو غوښتل کیږي چې له ښار نه دې کډې نه باسي او څوک چې له ښاره وتلي هغوی دې بیرته خپلو کورونو ته راستانه شي. ځکه طالبانو د دوی د سر، مال او ناموس امنیت نیولی دی.

څلورم: د ماینونو د پاکولو موسسې دې کابل ته تلونکې ټولې لارې له ماینونو څخه پاکې کړي. تر څو کابل ته د تګ او راتګ په لارو کې ټول مشکلات له منځه لاړ شي.

پنځم: ټول ملي سوداګر دې ژرتر ژره د کابل ښاریانو د ورځنیو مشکلاتو د له منځه وړلو لپاره د خوړو او د سون د موادو په رارسولو لاس پورې کړي تر څو له دې پلوه کابل ښاریان له ستونزو سره لاس او ګریوان نه شي.

## د شمالي او مرکزي ولایاتو فتحه

د پلازمینې کابل له فتحې وروسته یوازې د هیواد شمالي، شمال ختیځې او ځینې مرکزي سیمې د مخالفینو تر واک لاندې پاته شوې. په بلخ، سمنګان، جوزجان، سرپل او فاریاب د جنرال دوستم واک و او په بادغیس کې ورسره د اسلامي امارت مجاهدین په جګړو بوخت وو. بامیان او هزاره میشتې سیمې د حزب وحدت تر واک لاندې وې او شمال ختیځ ولایات د رباني او مسعود تر واک لاندې وو.

د ۱۳۷۶ لمریز کال په ثور کې د جنبش ګوند مرستیال جنرال عبدالمالک له دوستم سره د مخالفت له امله اړخ بدل کړ، له طالبانو سره یې پټې خبرې شروع کړې او وروسته د یوې في الجمله موافقې له مخې له طالبانو سره یوځای شو. دا چې دا موافقه څنګه وه او څه پایلې یې درلودې په خپل ځای(په پنځم فصل)کې به بحث وربانده وکړو. خو له جنرال مالک سره د طالبانو د موافقې هدف دا و چې د هیواد شمالي ولایات د جنرال دوستم څخه ونیول شي او د اسلامي امارت تر واک لاندې راشي، تر څو له دې ولایاتو د فساد او ظلم هغه ټغر ټول شي چې د کمونیست رژیم د ملیشه جګړه مار دوستم لخوا وربانده خپور شوی و. د همدې کال د ثور له وروستیو له جنرال مالک سره په ګډه د جنرال دوستم خلاف عملیات پیل شول، فاریاب، سرپل، جوزجان ونیول شول او د جوزا په دریمه د مزار شریف ښار هم د دوستم له واکه ووت.

دا وخت چې د کابل شمالي سیمې تر جبل السراج پورې د اسلامي امارت تر واک لاندې وې، له دې استقامته هم د شمال په خوا پرمختګ پیل شو. د جوزا په څلورمه د

سالنګ ولسوالي او لويه لاره ونيول شوه او په سيمه کې د مسعود مشهور قومندان بصير سالنګی د طالبانو خوا ته واوښت. يوه ورځ وروسته د طالبانو لوی لښکر د وتلي قومندان ملا داد الله اخند په مشرئ چې د قرغې د څلويښتمې فرقې قومندان امير خان حقاني هم ورسره و د سالنګ له تونل د بغلان خواته ووتل چې په څو ورځو کې يې تر پلخمري پورې سيمې ونيولې. خو په همدې وخت کې جنرال مالک له حزب وحدت سره په ګډه دسيسه يو ځل بيا اړخ بدل کړ او په مزار شريف کې يې د طالبانو په خلاف جګړه پيل کړه. د څو ورځو په جريان کې يې د بلخ، جوزجان، سرپل او فارياب ولايتونه بيرته ونيول.

په ورته وخت کې احمد شاه مسعود د پنجشير له اړخه په سالنګ او جبل السراج بريد وکړ، د چاريکارو او جبل السراج تر منځ د کابل ـ مزار شريف په لويه لاره د غوربند په سيند تېر شوی پل (پل متک) يې والوځاوه او په دې ډول د سالنګ له لارې د شمال پر خوا د تلليو طالبانو لار بنده شوه.

دغه وخت ملا صاحب ډېر پريشانه او مصروف و، له يوې خوا په مزار شريف کې ګڼ شمير طالبان محاصره و چې برخليک يې نه معلوميده، بل اړخ ته د سالنګ له لارې بغلان ته اوښتی د طالبانو لوی لښکر چې شمير يې زرګونو ته رسيده محاصره شوی و. خو د بغلان محاصره طالبانو ته د خلاصون لار هغه وخت جوړيدای شوای چې طالبان د غوربند له سينده اوښتي وای، جبل السراج او د سالنګ ولسوالي يې نيولې وای، تر څو په بغلان کې محاصره طالبان بيرته په همدې لاره راغلي وای. اما د دې طرحې په وړاندې لوی خنډ د پل متک له منځه تلل و چې د مسعود لخوا منفجر او مکمل تخريب شوی و.

ملا صاحب د دې لارې د خلاصون او پله د جوړولو لپاره د خپل دفتر څو تنه ملګري سيمې ته وليږل تر څو سيمه وګوري د پله د جوړولو يا لارې خلاصولو لپاره ټول امکانات وکاروي. د ملا صاحب د دفتر ملګري وايي موږ په کابل کې له نظامي مشرانو لکه د دفاع وزير ملا عبيدالله آخند او لوی درستيز ملا فاضل اخند سره وليدل، دغه راز مو د فوائد عامې وزارت له مسؤلينو سره خبره شريکه او د ملا صاحب خبره

مو ورته ورسوله چې د لارې د خلاصون او پـل متـک پلـه د جوړولـو لپـاره دې عاجـل اقدام وشي.

خو چې کله سیمې ته ورغلو نو و مو لیـدل چـې د مسـعود لخـوا دغـه لـوی پـل مکمـل تخریب شوی دی او سیند دومره پراخ دی چې پـه دې جنګـي وضـعیت کـې د بـل پلـه جوړول آسانه کار نه دی، وروسـته د سـیند پـه امتـداد د غوربنـد خواتـه لاړو. د غوربنـد درې ته نږدې یو ځای چې اوبه هوارې روانې وې، د ملا خان محمد په مشـری طالبـان پیاده له سیند اوښتي و او په مخالفینو یې برید کړی و چې ځینـې سـیمې یـې هـم نیـولې وې.همدلته له ګاډرونو څخه طالبانو یو پل جوړ کړی او په سیند تړلی و چې یـوازې یـو یو کس ورباندې تیریدلای شوای. د غوربند د درې اړخ ته یـو ځـای د استحکام پلـه د جوړولو لپاره په نښه شو. وروسته همدلتـه د استحکام پـل جـوړ او طالبـان تـرې پـورې وتل، په همدې وخت کې د پلازمینې کابل د دفاع د تقویـه کولـو او وضـعیت لـه نـږدې څارلو لپاره ملا محمد عمر مجاهد خپله هم د لـومړي ځـل لپـاره لـه کنـدهاره کابـل تـه راغی، دلته یې بیلابیل نظامي او ملکي مسؤلین ولیدل. د نوي رامنځته شوي وضـعیت پـه اړه یې ورسره سلا مشورې وکړې او څو ورځې پـه کابـل کـې و. پـه همـدې ورځـو کـې طالبان د استحکام پله څخه په استفاده د جبل السراج خواته واوښتل او یـو ځـل بیا یـې ډیرې سیمې ونیولې اما دا چې وروسته د پـروان او چاریکـارو پـه نـورو سـاحو کـې د مسعود ځواکونو بریدونه پیل کړل، طالبان ونه توانیدل چې تر سالنګ پـورې لار مکملـه تصفیه کړي. په دې ډول بغلان ته اوښتي طالبان محاصره پاته شول.

په بغلان کې محاصره طالبان په مرکزي بغلان کې د سیمه ییزو خلکو په ملاتړ وتوانیدل

چې د مسعود، حزب وحدت او سید منصور نادري د قواوو په وړاندې مقاومـت وکـړي، دغه وخت طالبان هغه وخت له ستر ازمون سره مخ شول چې د پلخمري ښـارګوتې یـې هم له لاسه ووت او د مرکزي بغلان په محـدوده سیمه کـې کلابنـد شـول. خـو همدغـه طالب مشـرانو د څو قومندانانو لکه عارف خان، ارباب هاشم، میرزا ناصري او نورو سره رابطه ونیوله، د هغوی په همکاری یې په کندز ولایت برید وکړ او دغه ښار یې تر خپـل تصرف لاندې راووست. د کندز د هوایي ډګر په تصرف سره دغـو محـاصره مجاهـدینو

ته د هوا له لارې اکمالات پیل شول، چې بیا یې د راتلونکي کال د اسد تر میاشتې
څوارلس میاشتې د محاصرې په حالت کې ویاړلی مقاومت وکړ.

د ۱۳۷۷ لمریز کال په سرطان میاشت کې (ربیع الاول ۱۴۱۹ هـق) طالبانو د ملا برادر اخند تر مشرۍ لاندې د فاریاب په غورماچ کې د دوستم په خط پراخ تهاجم وکړ، غورماچ او ورپسې د فاریاب مرکز میمنه فتح شول او مجاهدینو تر جمعه بازار پورې پرمختګ وکړ. د جمعه بازار په سیمه کې دوستم ځان ټینګ کړ او ځو اونۍ سختې جګړې ورسره وشوې. په دې جګړو کې د امارت دوه وتلي نظامي مشران ملا فاضل اخند او ملا داد الله دواړه سرسري ټپيان شول. څه موده وروسته د ملاصاحب په امر ملا فاضل اخند مشر وټاکل شو او له هرات څخه د کومکي کسانو له راتګ وروسته یې د دوستم په ځواکونو د پراخ برید تشکیل جوړ کړ چې په ملا فاضل اخند، ملا برادر اخند او ملا داد الله آخند سربیره ملا خیر الله خیرخوا، ملا دوست محمد آخند، ملا عبدالسلام آغا، ملا جانان آخند، ملا محمد صدیق اغا، ملا غلام نبي جهاديار، ملا عبدالحق، د حاجي ملا عبدالسلام مجروح ملګري او د جهادي مدرسې ګڼ شمیر طالبان په کې برخوال وو. د جمعه بازار په استقامت له تعرض وروسته د دوستم قواوو شکست وخوړ او مجاهدینو ډيرې سیمې ونیولې. د همدې عملیاتو عمومي قومندان ملا فاضل آخند وايي: د دښمن د خط له ماتیدو وروسته موږ پر دولت اباد د جګړې تصمیم ونیو، له یوه اړخه موږ او له بله اړخه ملا برادر اخند و چې له لږ څه جګړې وروسته مو د دولت اباد ولسوالي هم ونیوله. د دولت اباد له نیولو وروسته یوه لویه قرارګاه وه چې دوستم هم ورته راغلی و، موږ تصمیم ونیو چې په دغه قرارګاه به برید کوو او هر څنګه چې وي موږ به موټران تر قرارګاه پورې رسوو، همداسې مو وکړل د الله تعالی په نصرت مو قرارګاه ونیوله، خو متأسفانه جنرال دوستم زموږ له بریده ۲۰ دقیقې له مخه په هلیکوپتر کې له قرارګاه تښتیدلی و او موږ یې په نیولو بریالي نه شوو.

د یادې قرارګاه تر نیولو وروسته له دولت اباد څخه د اندخوی پر لوري روان شوو، اندخوی ته له جګړې پرته ورسیدلو، یواځې په سر کې یې لږ جګړه وشوه هغه هم زر

تمامه شوه. موږ اراده وکړه چې په اندخوی کې د شپې لپاره پاته شو، خو ښه ناوخته و چې ملا صاحب رابطه وکړه او ويې ويل چې پرمخ لاړ شئ انتظار مه کوئ.

سهار كيدونكى و، د ملا صيب د امر مطابق مو د مخته تګ تصميم ونيو، خو موږ چې وړاندې لاړو (غالبا د خواجه دوکوه سیمه وه) چې په کمين واوښتلو، مګر ملګرو په ښه ميړانه د ټانګونو او هليکوپټرو مقابله وکړه او دلته له نيم ساعت جګړې وروسته شبرغان ته ورسيدلو او پر هوايي ډګر ننوتلو.

هلته مو يوازې دوه شپې تيرې کړې، له هغه وروسته د سرپل په لور رهي شوو، له معمولي جګړو وروسته مو د سرپل فتحه هم نصيب شوه. بيا مو بلخ ته مخه کړه، هلته له دښمن سره داسې مهال مخامخ شوو چې دوی د مرميو صندقونه خلاص کړي ول او غوښتل يې په خپلو جنګياليو يې ووېشي، خو موږ پرې وروړسېدلو او ومو نيول، دلته مو خط واچاوه، ملګري راورسيدل قلعه ای زيني مو ونيوله. په بلخ کې ډيره سخته جګړه وشوه، د محقق پر مرکز چې يوه لويه کلا وه داسې جنګ وشو چې طالبانو آن د ټانګ ميل کلا ته ور دننه کړ او فيرونه يې پرې وکړل، بيا هم د الله تعالى مرسته وه دوی مات شول، پر دښتونو دوی بيا د تعرض هڅه وکړه خو له سختې ماتې سره مخ شول او ډېر يې ووژل شول. د اسد په اوولسمه د مزار شريف له فتحې وروسته مونږ تاشقرغان ته راغلو، خو دغه وخت کې امير المؤمنين صاحب ته چا پيغام رسولی و چې دوستم حيرتان ته راغلی، هغه موږ ته حيرتان ته د تګ امر وکړ، موږ د هغه له امر سره سم شپه هلته ورسوله، خو د دوستم حملې کوم څرک مو ونه ليد.

دا مهال چې موږ حيرتان ته رارسېدلو، نو د کندز بغلان لار هم زموږ تر واک لاندې راغلې وه، څکه نو کندز او بغلان ته لاړو او بيا رباطک ته راغلو، دلته د حزب اسلامي مشهور قومندان بشيرخان هم راسره ملګری شو او ويل به يې چې د طالبانو غوندې جنګ مې تر اوسه نه و ليدلی. د رباطک له جنګ وروسته سمنګانو ته لاړو، هلته د شيخ سلطان په نوم يوه ولسوالي ده، هلته تر لږ جګړې وروسته تاشقرغان ته ورسيدو او د مزار شريف په خوا تللې عمومي لاره خلاصه شوه.

له سمنگانه څخه مو پلخمري ته تشکیل وکړ، دلته مو د کیان په دره باندې د برید تصمیم ونیو، یوه ډله طالبان د ډنډغوري له لوري پرې ورغلل، مونږ د دوشي له لوري د کیان درې پر لور رهي شولو، د دوشي پر لار زه ټپي شوم خو الحمد لله کار پاته نه شو او موږ خپل هدف ته ورسېدلو)

پر کیان درې د تعرض په وخت د مجاهدینو د مشر ملافاضل اخند له ټپي کیدو وروسته ملا صاحب د جګړې مشري ملا برادر آخند ته وسپارله، چې د سنبلې په دوهمه یې دکیان دره ونیوله. د سنبلې د میاشتې په ۱۹ مه نیټه طالبانو د ملا برادر آخند تر مشرۍ لاندې د بغلان له اړخه په بامیان ولایت برید وکړ چې د درې ورځني جنګ په ترڅ کې یې د افغانستان دغه مرکزي ولایت تر کنترول لاندې راووست.

په دې ډول د افغانستان مرکزي او شمالي سیمې د طالبانو تر واک لاندې راغلې، هغه یوازینی ولایت چې تر پایه د مخالفینو په واک کې پاته شو، د بدخشان ولایت و. د څمکنۍ محاسبې له مخې اسلامي امارت د افغانستان له ۹۰ فیصده په زیاته سیمه واکمني درلوده.

****

# څلورم فصل

## د افغانستان اسلامي امارت

د افغانستان د پایتخت او ختیځو ولایاتو له فتحې وروسته د افغانستان د جغرافیې زیاته برخه د اسلامي امارت تر واک لاندې راغله. په دې توګه د ملامحمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې اسلامي امارت په ملي او بین المللي کچه د یوه معتبر او نماینده حکومت په حیث بروز وکړ چې له سیاسي وجود او اعتبار یې چا انکار نه شوای کولای اګر که د نړۍ اکثره هیوادونو او نړیوالو سازمانونو په رسمیت نه پیژاند.

د افغانستان او اسلامي نړۍ په تاریخي تسلسل کې د ۱۳۷۵ لمریز کال له میزان څخه( چې کابل ونیول شو) بیا د ۱۳۸۰ لمریز کال د قوس تر میاشتې پنځه کلنه مرحله د افغانستان د اسلامي امارت د حکومت مرحله بلل کیږي. په دې موده کې د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې یو سوچه اسلامي نظام په افغانستان حاکمیت درلود چې نړۍ ته یې د شریعت تطبیق، د اسلامي عدل تحکیم، امر بالمعروف و نهی عن المنکر، جهاد،د مسلمانانو تر منځ اخوت او نور هیر شوي مفاهیم ور په زړه کول.

دا چې د اسلامي امارت تأسیس د امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد تر ټولو ستره، ویاړمنه او تجدیدي کارنامه وه د همدې تړاو له امله په مختصره توګه د اسلامي امارت جوړښت، خدمتونو او لاسته راوړنو ته کتنه کوو.

### د اسلامي امارت جوړښت

د افغانستان اسلامي امارت تشکیل په تدریجي ډول بشپړ شو. د کندهار د سنګ حصار له سیمې د ملا محمد عمر مجاهد د قیام له نیټې بیا د پلازمینې کابل د فتحې تر وخته د اسلامي امارت تشکیلاتي اډانه پرلپسې د انکشاف او بشپړتیا په حالت کې وه. د کابل له فتحې وروسته اسلامي امارت په اداري او تشکیلاتي لحاظ د یوه بشپړ حکومتي نظام

چوکاټ ته ولوېد چې امير، اجرائيه او قضائيه څواک، وزارتونه، واليان، پوځ، مطبوعات او يوه فعاله اداري دستگاه يې درلوده.

د اسلامي امارت امير ملا محمد عمر مجاهد و. شورى چې د کابل له فتحې وړاندې يې د عالي شورى په نوم شهرت درلود د کابل له فتحې وروسته يې ډيرى اعضاء د وزيرانو په حيث وټاکل شول او د وزيرانو شورا يا کابينې نوم ورته کارول کيده. دا مشورتي جوړښت که څه هم د شورى عنوان ورته نه کارول کيده مگر عملا يې د حکومتي تصاميمو د اتخاذ او سياست گذارۍ په برخه کې له امير وروسته دوهم ځای درلوده او په ټولو چارو کې يې خپل نظرونه او سلا مشورې له امير سره شريکولې.

قانون نافذوونکي دستگاه وزارتونه او مستقل رياستونه وو چې په بيلابيلو برخو کې يې دحکومت طرحې او پلانونه تطبيقول. اداري دستگاه يعنې هغه له عمودي او افقي اداري ارتباطاتو څخه جوړ شوی اداري ماشين چې په ورځني شکل يې د حکومتي چارو څرخ ته حرکت ورکاوه او په مټ يې وزارتونو، رياستونو، مديريتونو، شعبو او اورگانونو خدمات عرضه کول. د اسلامي امارت قضائيه قوه په ولسواليو او ولاياتو کې له ابتدائيه او مرافعه محاکمو دغه راز د تميز، استيناف محکمې، نظامي محاکمو او سترې محکمې څخه عبارت وه چې د اسلامي شريعت له مخې يې فيصلې کولې.

دافغانستان په شاوخوا ديرش ولاياتو کې اسلامي امارت واليان درلودل چې په خپل مربوطه ولايت کې د امير د استازي او باصلاحيته واکمن په حيث يې اجراآت کول دغه راز اسلامي امارت پراخ پوځي تشکيلات درلودل چې رهبري او څارنه يې تر ډيره حده شخصا د اميرالمؤمنين ملامحمد عمر مجاهد په غاړه وه.

## د امارت مقام او رياست الوزراء

که د اسلامي امارت اداري جوړښت د اوسني حکومتي عرف (درى گونو قواوو) په قالب کې تعريفوو نو ويلی شو چې د ديني علماء کرامو شوراگانې يا د قوانينو ارزوونکی ځانگړی هيئت د مقننې قوې په رول کې و. محاکم قضائيه قوه او د رياست

الوزراء تر امر لاندې وزارتونه او مستقل رياستونه د اجرائيه قوې په رول کې وو چې ددې درې واړو قواوو په رأس کې د امارت مقام يا شخصا اميرالمؤمنين و.

د امارت د مقام او رياست الوزراء تر منځ واکونه د رسمي فرمان په اساس بيل شوي وو چې دلته د موضوع د اهميت له امله د رسمي جريدې د ۷۸۸ گڼې او د چارو د ادارې د لوی رياست د يوه رسمي سند په استناد دغه تقسيم الوظائف رانقلوو.

## د اسلامي امارت د مقام ځيني خاص واکونه

۱ـ د اسلامي امارت د مقام د مرستيال يا مرستيالانو ټاکل او د لزوم ديد پر بنسټ د هغوی گوښه کول.

۲ـ د وزيرانو شورى د رئيس او مرستيالانو د ټاکلو منظوري او هغوی گوښه کول د لزوم ديد پر بنسټ او د قانون مطابق.

۳ـ د وزيرانو، معينانو، په خاص ډول د دفاع وزير او د هغه مرستيال ټاکل او گوښه کول. همدا راز د فرقه مشرانو، غونډ مشرانو او نورو هغو پوستونو مسؤلين ټاکل چې د امارت مقام يې لازم وگڼي.

۴ـ د کورنيو چارو د وزير او د هغه د مرستيال ټاکل او گوښه کول.

۵ـ د استخباراتو د عمومي رئيس ټاکل او گوښه کول، دغه راز د مستقلو ادارو د رئيسانو او معاونينو ټاکل او د لزوم ديد له مخې يې گوښه کول.

۶ـ د قاضي القضات ټاکل او گوښه کول.

۷ـ د ولاياتو د محاکمو د رئيسانو منظوري د سترې محکمې د وړانديز له مخې او د هغوی گوښه کول د سترې محکمې د وړانديز پر بنسټ يا د خپل لزوم ديد له مخې.

۸ـ د افغانستان د اسلامي امارت د علماء شورى ايجادول، د علماء شورى د رئيس ټاکل او گوښه کول او د علماء شورى منحل کول.

۹ـ د هيواد د اساسي قانون شورى ايجادول د اساسي قانون د ترتيب په مقصد. د شورى د دندې د پای ته رسيدو يا د مقام د لزوم ديد په اساس د يادې شورى انحلال.

۱۰ــ د هیواد د اساسي قانون توشیح

۱۱ــ د لزوم دید له مخې د اساسي قانون د اعلان لغو کول.

۱۲ــ د اساسي قانون په یوه ماده، یا ټولو مادو کې د تغیراتو منظورول.

۱۴ــ د عمومي بښنې اعلان.

۱۵ــ د هیواد د اساسي قانون د موادو مطابق د ملي مجرم د خیانت اعلان او هغه ته د مجازاتو ټاکل.

۱۶ــ د محبوسینو د حبس بښنه یا په پاته حبس کې تخفیف.

۱۷ــ د جهاد اعلان.

۱۸ــ د یوه نوي ولایت ایجادول یا د یوه ولایت رسمیت له منځه وړل.

۱۹ــ د وزارت یا کوم اداري واحد ایجادول یا د اسلامي امارت له تشکیلاتي چوکاټ څخه حذفول.

۲۰ــ په نورو ملکونو کې د سفارت تأسیس.

۲۱ــ په نورو هیوادونو او نړیوالو سازمانونو کې د اسلامي امارت د دیپلوماتیکو نمایندگیو د رئیس او اعضاوو ټاکل.

۲۲ــ له نورو هیوادونو سره د سیاسي یا اقتصادي اړیکو قطع کول د لزوم دید له مخې.

۲۳ــ د هیواد اتباعو ته د سیاسي پاسپورتونو د اجراء منظوري ورکول.

۲۴ــ د نورو ملکونو د سفیرانو باورلیک قبلول.

۲۵ــ د افغانستان د اسلامي امارت د خارجه پالیسی ټاکل.

۲۶ــ په بین المللي استثنائي حالاتو کې د اسلامي امارت د موقف تعینول.

۲۷ــ د مالي او بودجوي کال تغیر.

۲۸ــ د مسلحو ځواکونو په جوړښت کې تغیر راوستل.

۲۹ـ له يوه هيواد څخه د مسلحو قواوو لپاره د وسلو او جنګي تجهيزاتو د اخيستلو منظوري ورکول.

۳۰ـ د مسلحو ځواکونو د وسلو او تجهيزاتو د پلورلو منظوري ورکول.

۳۱ـ په يوه پوځي سازمان کې د داخليدلو تصميم.

۳۳ـ په نورو هيوادونو کې د ځمکې ادعاء.

۳۴ـ د هيواد د ملي ورځو اعلان او تثبيتول.

۳۵ـ د نويو القابو او مډالونو منظوري.

۳۶ـ داخلي او بهرنيو اشخاصو ته د ورکړل شويو القابو سلبول.

۳۷ـ داخلي او بهرنيو دوستو اتباعو ته د لقب او مډال ورکول.

۳۸ـ د سکې او بانکنوټ نشر، په پولي پشتوانو کې تغيرات، د اسلامي امارت په داخلي او خارجي اسعاري ذخائرو کې د هيواد د بانکي او تجاري سيستم مطابق تغيرات.

۳۹ـ د امارتي ۹۰۰۰ باب څخه د استفادې منظوري.

۴۰ـ په بيلابيلو عرصو کې د بهرنۍ پانګې اچونې منظوري ورکول.

۴۱ـ له هيواده بهر د اسلامي امارت د پانګې اچونې منظوري ورکول.

۴۲ـ د هيواد د بانکي سيستم د عالي شورى په ترکيب کې تغير راوستل د لزوم ديد پر بنسټ.

۴۳ـ د پولي ريفورم د ايجاد منظوري.

۴۴ـ د اسلامي امارت رياسة الوزراء مقام ته له ورکړل شويو واکونو څخه لوړ حکومتي واکونه د امارت مقام په واک کې لري.

## د رياسة الوزراء واکونه

رياست الوزراء ته د تفويض شوی واکونو تفصيل د اميرالمؤمنين پـه ۱۱۸ شـماره فرمان کې په لاندې ډول راغلی دی.

۱ـ د وزيرانو شوری د غونډو دائرول، د دغو غونډو د تصميمونو او تصـويبونو څارل د هغو واکونو په بناء چې په دې فرمان کې ذکر کيږي.

۲ـ د قانون د حکمونو مطابق له دويمې رتبې تـر مـافوق رتبې پـورې د لـوړ رتبه کار کوونکو او له بريد جنرالۍ تر ډگر جنرالۍ رتبې پورې د پـوځ د افسرانو د تقـرر، تبديل او ترفيع منظورول،د خدمت د مودې اوږدول، تقاعد او د تقاعد رفع کول.

۳ـ د قانون د حکمونو مطابق د خدمتي پاسپورټ د اجراء منظوري ورکول.

۴ـ د تقنيني سندونو پر بنسټ د علمـي او تحقيقـاتي ادارو د کـارکوونکو د علمـي رتبو منظورول.

۵ـ د قانون د حکمونو مطابق د اسلامي امارت کارکوونکو ته د تقـدير نـامې او تحسين نامې ورکول.

۶ـ د عاجلو او ضروري کارونو لپاره د ۷۰۰۰ باب څخه د نقدي وجوهو منظورول.

۷ـ د قانون د حکمونو مطابق دمقررو، لايحو او اساسنامو د تعديلونو وړانديز کول.

۸ـ د افغانستان د اسلامي امارت د مقام له هداياتو سره سم د امر بـالمعروف و نهی عن المنکر د ادارو د د اجرآتو نظارت کول.

۹ـ د عريضو او شکايتونو څېړل.

۱۰ـ په ورسپارل شويو چارو کې د شـريعت او قـانون د ټينگښـت پـه هکلـه د اسلامي امارت مقام ته رپوټ برابرول.

۱۱ـ د امارت مقام ته د امارتي او غير امارتي مؤسسو د څارنې او نظارت پـه اړه ربع وار رپوټ ورکول.

۱۲ـ د اسلامي امارت د مقام په موافقه د هیواد څخه بهر ته د امارتي هیئتونو د سفر منظوري او دغو هیئتونو ته د سفریې او خرڅ اجراء کول.

۱۳ـ نورو هیوادونو ته د تحصیلي بورسونو منظورول.

۱۴ـ د توشیح په مقصد د اسلامي امارت مقام ته د بهرنیو قراردادونو او مهمو داخلي قراردادونو وړاندې کول.

۱۵ـ د قانون د حکمونو مطابق داسلامي امارت د وزارتونو او ادارو د قراردادونو منظورول.

۱۶ـ د حج او عمرې د مناسکو د اجراء په مقصد د امارتي ادارو لخوا د امارتي یو شمیر کارکوونکو د وړاندیزونو منظورول.

۱۷ـ د رئیس الوزراء د غیاب په حالت کې د ریاست الوزراء مرستیال دغه واکونه اعمالوي.

۱۸ـ د اسلامي امارت د مقام د لزوم دید سره سم د حالاتو او اوضاع پر بنیاد د دغه فرمان نه بهر نور واکونه په خاصو وختونو کې ریاسة الوزراء ته ورکول کیدلای شي.

۱۹ـ دغه فرمان د توشیح له نیټې څخه نافذ دی او په رسمي جریده کې دې خپور شي.

**وزارتونه او ولایات**

د کابل له فتحې وروسته چې د اسلامي امارت د بشپړې واکمنۍ مرحله پیل شوه په پیل کې د اسلامي امارت کابینه له ۲۵ وزارتونو او ۱۱ لویو ریاستونو څخه جوړه وه چې د کابل ښاروالي او ځارنوالي هم په کې راتلې.

د کابل له فتحې وروسته د حکومتي نظام د احیاء لپاره ملا صاحب لومړنۍ کابینه د کندهار ولایت له رئیسانو تشکیل کړه. د ملا صاحب په یوه فرمان سره د کندهار ټول رئیسان مامور شول تر څو هر یو په کابل کې د اړوند وزارت د سرپرست وزیر په حیث کار پیل کړي. د وزارتونو او عمومي ریاستونو په رأس کې د ریاست الوزراء په نوم یوه باصلاحیته اداره وه چې وړاندې یې یادونه وشوه.

خـو وروسـته چـې د عـدلیې وزارت پـه هڅـو د وزیرانـو شـورى قـانون جوړ اود امیرالمؤمنین لخوا توشیح شـو ورسره د وزارتونـو شـمیر هـم تغیـر وکـړ د دې قانون په اساس د اسلامي امارت په تشکیل کې ۲۱ وزارتونه او ۸ لوی ریاستونه رامنځته شول.

ددې قانون په یوه برخه کې راغلي (وزارتونه د اسلامي امارت مرکزي اداري ګڼل کیږي چـې د خپلـو اړونـدو برخـو مشـري پـه غـاړه لـري. وزارتونـه خپـل فعالیـت د اسلامي شـریعت د حکمونو، قوانینو، د امارت د مقام د فرامینو د احکامو او د اسلامي امارت د وزارتونو د قانون له هدایاتو سره سم پر مخ بیایي او د هغو له پلي کولو نظارت کوي)

د اسلامي امارت وزارتونه په پلازمینه کابل کې پـه خپلـو پخوانیـو ودانیـو کـې فعال وو، وزیران د امیرالمؤمنین لخوا تعین، تبـدیل او معـزول کیـدل دغـه راز وزارتونـه د ریاست کچې ته ټیټول یا لوی ریاست وزارت کول او وزارتونه یو په بـل کـې ضـم کـول یـا لغو کول هم د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د صلاحیت کار وو.

د افغانستان د ۳۲ ولایاتو له جملـې یـوازې د بدخشـان مرکـز داسـلامي امـارت تـر واک لاندې رانغی په نورو یو دیرشو ولایاتو د اسـلامي امـارت واکمنـي وه. د پخوانیـو اداري تقسیماتو موافق د اسلامي امارت پـه مهـال هـم افغانسـتان د ولایتـي ویـش لـه اړخـه په زونونو تقسیم شوی وو چې په هـر خـوا کـې مرکـزي یـا تـر ټولـو مهـم ښـار د ورنږدې ولایاتو د زون مرکز ګڼل کیده. والیان په ولایاتو کې د اسلامي امارت رسمي نمایندګان او د امـارت د هـر اړخیـزو پالیسـو تطبیقـوونکي وو. والیـان د امیرالمـؤمنین لخوا ټاکل کیدل او مخامخ هغه ته مسؤل وو.

## د علماء کرامو شورى ګانې

د ۱۴۲۰ هجري قمري کال په جـمادی الثـاني میاشـت کـې (۱۳۷۸ هــ ش میزان) امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په یـوه ابتکـاري اقـدام سره د اسـلامي امـارت تـر واک لاندې د هیواد په ټولو ولایاتو او ولسوالیو کې د علماء کرامو د شـورى ګـانو د تأسـیس فرمان صادر کړ. له فرمان سره هم مهال د علماوو د شورى ګانو لائحه یـا دسـتور العمل

هم د امارت د مقام لخوا صادر شو، چې دغو شورى گانو ته يې د يوې واکمنې او نظارت کوونکې حکومتي قوې په حيث رسميت ورکاوه.

د علماء کرامو شورى گانې چې وروسته د هيواد په تقريبا ټولو سيمو کې جوړې شوې، که له يوې خوا يې د حکومتي چارو د څار وظيفه درلوده، بل اړخ ته يې په حکومتي چارو کې د هرې سيمې محلي خلکو ته د برخې ورکولو او د قدرت د توزيع يا ولسي-کولو معنى هم درلوده. څکه د هر ولايت او ولسوالۍ د شورى اعضاء د هماغې سيمې د خلکو څخه انتخاب شوي وو چې په محلي چارواکو يې د نظارت او د هغوى د رهنمايي دنده يې درلوده.

د دې شورى گانو د عضويت مهم شرائط لږ تر لږه متوسط علميت، ښه سابقه او له غير مذهبي ډلو يا د اسلامي امارت له مخالفينو سره ارتباط نه درلودل ښودل شوي وو. د هرې شورى تشکيل له رئيس، مرستيال، اداري مسؤل او د اړيکو له مسؤل څخه عبارت و. د شورى د غړو تعداد حد اقل لس تنه تعين شوى و، چې بايد په هره مياشت کې حد اقل يو ځل د ولايت يا ولسوالۍ په مرکز کې غونډه ولري. البته د ضرورت په اساس فوق العاده غونډې هم دائرولاى شي.

د دې شوراگانو له اساسي وظائفو څخه لومړۍ وظيفه دعوت و چې د دين د دعوت لپاره به پروگرامونه جوړوي، د خلکو د اصلاح هڅه به کوي. د اسلام د دښمنانو توطيې به شنډوي او خلک به د اسلام د دښمنانو له توطيو باخبره ساتي. دغه راز به د جهاد او اسلامي نظام د ټينګښت په مقصد په اجتماعي او ځانګړو پروگرامونو کې د عوامو او خواصو اذهان تنويروي.

د علماء کرامو د شورى گانو دوهمه مهمه وظيفه د نظارت او اطلاع وظيفه وه. په دې اړه د شورى په لائحه کې راغلي: د علماء کرامو شورى به په هر ولايت او ولسوالي کې د اسلامي امارت د مسؤلينو اجراآت تعقيبوي. که کوم مسؤل د شريعت او اسلامي امارت د قانون او لائحې خلاف عمل کاوه، شورى به هغه نفر خپل مجلس ته راغواړي او پوښتنه به ځنې کوي. که مسؤل معقول دلائل ونه لري او مخالفت يې ثابت شي، علماء کرام به توصيه ورته کوي، چې داسې کار ونه کړي، که د جزاء او عزل کيدو وړ

وي، د امارت مقام ته به تحریري او مستنده اطلاع ورکوي، د امارت مقام به یې اصلاح کوي او یا به یې له وظیفې لرې کوي. په دې اجراآتو کې ضروري ده چې مسؤل نفر حتما د شورى په حضور کې وپوښتل شي. داسې نه چې په مطلق شکایت سره د مسؤل په غیاب کې فیصله وشي، بله دا چې د شورى هر فرد نه شي کولای چې مسؤل یا قاضي راوغواړي، بلکې د شورى رئیس به یې د شورى د غړو په مشوره راغواړي.د علماء کرامو شورى به د مسؤلینو او قاضیانو په کارونو کې هیڅ نوع مداخله نه کوي تر څو په اجراآتو کې ټکر او مایوسي رانه شي. دا کافي ده چې مسؤل د لائحې او قانون په چوکاټ کې کار وکړي او د شورى له خوا یې نظارت وشي او مسؤلین متوجه کړي.

د علماء کرامو د شورى ګانو دریمه وظیفه مشوره بلل شوې، په ولایاتو او ولسوالیو کې جوړې شوراګانې به والیانو او ولسوالانو ته مشورې ورکوي. دغه راز که شورى وغواړي په کومه غونډه کې یې والي یا ولسوال ګډون وکړي نو محلي چارواکي او مسؤلین به د شورى په غونډو کې ګډون کوي. د دې شورى ګانو په لائحه کې راغلي چې د علماء کرامو شورى کولای شي د خلکو دعوى د جانبینو په رضایت په صلحه ورفیصله کړي. او که څوک په دې فیصله قناعت نه لري هغه به محکمې ته مراجعه کوي.

د علماء کرامو د شورى ګانو په اړه د امیر المؤمنین په فرمان کې راغلي وه چې دغه شورى ګانې به د مسؤلینو د اصلاح کوښښ کوي.مسؤلین به د نصیحت له لارې خپل کار ته متوجه کوي او د عوامو به ذهنونه جوړوي.

مفتي محمد معصوم افغاني چې د علماء د شورى ګانو په تشکیل کې یې مسؤلیت درلود وایي: دغه تشکیل د هیواد په سطحه ( پرته له یوې وړې سیمې چې د امارت تر واک لاندې نه وه) د علماء او مشایخو یو عظیم تشکیل و، چې تر ۷۰۰۰ زیات علماء او مشائخ کرام په امر بالمعروف نهي عن المنکر، اصلاح او ارشاد، د حاکمانو څارنه او نظارت، د عامه خلکو ستونزي او مشکلات خلاصول، د دوو متخاصمو ډلو تر منځ د یوې فقهي قاعدې په اساس په صلح سره روغه او جوړه کول او داسې نورو د خیر کارونو باندې مصروف وو.

مفتي معصوم افغاني صاحب زياتوي: کله چې به د ولسوالي يا ولايت د عالمانو شورى ته د ولس له لوري دسيمي له کوم مسؤل څخه شکايت وړاندي شو، که به د عالمانو له لوري راسا اصلاح مناسبه وه خو هغوى به اصلاح راوسته او که نه نو دغه شکايت به تر مرکزي دفتره د شورى د يو نماينده په ذريعه را رسيده، د مرکزي د فتر له لوري به دغه شکايت تر اميرالمؤمنين رحمه الله پوري ورسول شو، د تحقيق لپاره به يې اکثره وخت د شورى د مرکزي دفتر مسئول ته هدايت وکړ او يا به يې کوم بل ارگان يا هيئت ته امر کاوه چې د موضوع په اړه تحقيق وکړي. د ثبوت په صورت کې به امير المؤمنين اجراآت کول، هغه مسؤل به يې د هغه مقام څخه بدل کړ، يا به يې له وظيفې منفک کړ. د جرم د نوعيت په اساس به سزا ور کول کېدله، تقريبا د يوه کال په جريان کې تر ځلويښت زيات مختلف النوع تغيرات راغلل.

**د اسلامي امارت لاسته راوړنې**

د افغانستان اسلامي امارت په افغانستان د ځو کلنې واکمنۍ په مهال که څه هم پرلپسې له جگړو، داخلي او خارجي مخالفتونو، بنديزونو، اقتصادي ستونزو او گڼو نورو مشکلاتو سره لاس او گريوان و خو دا چې د خپل مظلوم ولس هيلو ته يې درناوى او خپلې سپيڅلې داعيې ته يې عملي تعهد درلود په دې وتوانيد چې په ټولو برخو کې د پام وړ او تاريخي خدمات انجام کړي.

داسلامي امارت د بيلابيلو ديني، اصلاحي، انکشافي، عمراني او نورو خدمتونو د پوره څېړلو او يادولو لپاره يوه بشپړ کتاب ته ضرورت دى او شايي دغه يو فصل يې د احتواء تاب ونلري خو د دې لپاره چې په دې تاريخي کارنامو کې د امير په حيث د ملامحمد عمر مجاهد رول جوت و، د نوموړي د ژوندليک په ضمن کې ورته ځغلنده کتنه کوو.

د شريعت نفاذ

د ملا محمد عمر مجاهد په مشرى د اسلامي امارت تر ټولوستره، تاريخي او وياړمنه

کارنامه د الله تعالی پر ځمکـه د اسلامي شـریعت نافذول و. د اسـلامي امـارت شـرعي اجراآت په لاندې ډول خلاصه کولای شو.

د اسلامي حکومت او د قرآن د حاکمیت رسما اعلانول.

سیاسي زعامت مؤمن او صالح قشر تـه سـپارل بالمقابـل بـدکاره، لیبرال، کمونیست او کفرپلوه اشخاص د زعامت له مقامه شړل.

د قضائي نظام بشپړ اسلامي کول او اسلامي عدالت تأمینول

د شـرعي حدودو او قصاص اجراء کول

د امر بالمعروف و نهی عن المنکر عملي اجراء

د غلا، قتل، قطاع الطریقي، ګډوډۍ او ظلم له منځه وړل

د سینما، فحش فلمونو، سازو سرود او نورو فحشاوو له منځه وړل

د سود، احتکار، ناروا معاملاتو، نقدي جریمو او نورو مالي انحرافاتو ختمول.

د اداري فساد، رشوت، غصب، اختلاس او له بیت المال څخه د ناروا اسـتفادې د کلتور له منځه وړل

د چارواکو او حاکمانو د امتیازي مرفه ژوند، فضول خرچي او تشـریفاتي القابو کلتور له منځه وړل.

په حکومتي او تعلیمـي ادارو، کارخـایونو او د اجتماعـي ژونـد پـه نـورو ډګرونـو کـې د ښځو او نارینه وو تر منځ ناروا اختلاط له منځه وړل.

د شـرعي حجاب ترویج او تطبیق.

د نوروز په شان د جاهلي رواجونو او ډول ډول خرافاتو او بدعتونو ختمول.

د چرسو، بنګـو، کوکنـارو او نـورو مخـدراتو ختمـول او امـارتي منسـوبین د سـګرټو له استعمال منع کول.

د اسلامي قيافې، ږيرې، دستار او محلي لباس ترويج.

د ښځو د اسلامي حقوقو د اعادې کوښښ، په ميراث کې د برخه ورکولو او په بدی کـه د نه ورکولو لپاره يې اجراآت.

د مدرسو او مساجدو خدمت او په حکومتي ادارو خصوصا وازرتخانو کې د مساجدو تأسيس.

د قومي، لساني، سمتي او نژادي جاهلانه تعصباتو ترديد

د شريعت له هداياتو سره سم د اهل ذمه وو د ټولو حقوقو رعايت.

او داسې نور شرعي اجراآت

**د اسلامي عدالت تطبيق**

د اسلامي واکمنۍ يو مهم رکن قضاء او شرعي محاکم دي چې د اسلامي عدالت د تطبيق او حق حقدار ته د رسولو مسؤليت لري. ملا محمد عمر مجاهد د قضائيه امورو بررسي او د عدالت تطبيق ته ځانگړې توجه درلوده.

ملا صاحب د کندهار لـه فتحې وروسته د روس ضد جهاد د وخت يو پياوړی او مشهور قاضي مولوي سيد محمد( چې په مولوي پاسني صاحب يې شهرت درلود) د کندهار د مرافعې محکمې مشر وټاکه، نوموړي په قاطعيت کې له پخوا شهرت درلود چې په قاضي کيدلو سره يې د قضاء مسند يو ځل بيا خپل اصلي شان او شوکت وموند.

مولوي شهاب الدين دلاور صاحب چې درې نيم کاله په کندهار کې د تميز مشر پاتـه شوی وايي چې ملا صاحب په کندهار ولايت کې د ځانگړي تميز په اړه راته وويل: ما د جنوب غرب حوزې ۹ ولايـات د کنـدهار د تميز مربوط کړي دي، دا ځکه چې د تحريک اکثره نظامي مشـران د همدې ولاياتو دي، نو زما غرض دا دی چې د دې تميز چارې زما تر نظارت لاندې وي چې هسې نه د نظامي مشرانو د فشار يا لحاظ کولو په خاطر د چا حقوق ضائع شي.

دلاور صاحب وايي چې ملا صاحب د قضاء مسند ته په هماغه مقام او منزلت قائل و چې په شريعت کې ځومره مهم بلل شوی دی. هغه د قضاء په چارو کې مداخله نه کوله په درې نيم کلنه موده کې زما نه ياديږي چې ملا صاحب دې د قضاء په چارو کې صراحة، اشارة يا دلالة کومه مداخله کړي وي او يا يې د چا په هکله سفارش او د فيصلې د تغير او تبديل په اړه څه ويلي وي. د لاور صاحب يوه واقعه بيانوي:

يو طالب چې د کندهار په امنيه قومندانۍ کې يې وظيفه درلوده د عبيدالله په نوم د يوه سړي زوی يې وژلی و او موضوع يې محکمې ته لاړه، په دوو اونيو کې ابتدائيه او مرافعې محاکمو پر قاتل د قصاص فيصله وکړه او موضوع تميز ته راغله. موږ چې وځيړله مسئله همداسې وه چې قاتل بايد قصاص شي. دغه وخت د قاتل قريبان او انډيوالان چې د امارت ځو لوړپوړي چارواکي هم په کې و، په دې هڅه کې و چې قصاص وځنډوي تر ځو که وکولای شي د مقتول کورنۍ عفوې ته وهڅوي. موږ چې د قصاص حکم د نهايي فيصلې لپاره ملا صاحب ته وليږه، ملا صاحب د قاتل په اړه د هيچا سفارش ونه مانه او د قصاص حکم يې توشيح کړ، ورپسې په راډيو کې اعلان هم وشو چې سبا په ځلورو بجو به فلان طالب قصاصيږي.

دا وخت د قاتل قريبانو او سفارش کوونکو د قصاص د ځنډولو لپاره بله خبره راپورته کړه، دوی وويل چې په قاتل باندې پوروونه دي، دعوې هم ورباندې شوي دي او سلمونه يې کړي دي چې هغه حسابونه يې بايد تصفيه شي. ملا صاحب د دې موضوع په اړه ماته ټيلفون وکړ، زه چې ورغلم نو دا خبره يې راسره شريکه کړه. ما ورته وويل چې په دې اړه بايد له علماء کرامو پوښتنه وشي چې آيا قرضونه او داسې جنجالونه د قصاص د حکم د تعطيل سبب جوړيدای شي. علماء کرامو چې دا مسئله وکتله هغوی وويل دا مانع د قصاص نه دي.

بيا ملا صاحب وويل چې قصاص دې اجراء شي. سبا د قصاص مراسمو ته ډېر زيات خلک راغلي وو، خو د مقتول ورثه چې د اسلامي امارت د محاکمو انصاف او حق حقدار ته سپارل يې ليدلي وو، کله چې د وژلو لپاره قاتل په لاس ورکړل شو، نو په دې

آخري مرحله کې يې قاتل ته عفوه وکړه او ويې ښايه چې دا صحنه د حاضرو خلکو لپاره ډېره جالبه وه.

د اسلامي امارت محاکمو د شرعي احکامو په تطبيق سره وکولای شول چې هم تر ډېره حده حقوق خپلو حقدارانو ته ورسوي او هم د قصاص او حدودو په تطبيق سره په ګڼ‌وړی ځپلي افغانستان کې مثالي امن رامنځته کړي. د اسلامي امارت په ټوله موده کې د ترسره شويو قصاصونو شمير ښايي تر سلو ونه رسيږي، خو په همدې کم شمير شرعي اجراآتو کې الله تعالی داسې اثر ايښی و چې په برکت يې د لسګونو ميليونه انسانانو سر، مال، عزت او حيثيت خوندي شول. د اسلامي امارت په موده کې لکه څنګه چې د حد زنا، حد سرقه، رجم او نور حدود تطبيق شول همدا راز هغه قاضيان هم د عامو خلکو په حضور کې دُرو ووهل شول چې په قضايي چارو کې يې خيانت کړی و او رشوت يې اخيستی و.

**اصلاحات او مصطلحات**

د غربي استعمار له پيل راپديخوا په تير يو نيم قرن کې د افغانستان په شمول په ټولو اسلامي هيوادونو او ولسونو غربي اشغال اغيز کړی تردې چې خپل اصيل اسلامي تشخص يې زيانمن شوی او پر ځای يې په سياسي، اقتصادي، فرهنګي، تعليمي او ټولنيزو ډګرونو کې غير اسلامي او غربي اقدارو ريښې ځغلولي.

ملا محمد عمر مجاهد دخپلې لنډمهاله خو فعالانه واکمنۍ په مهال يو ځل بيا د افغانستان حکومت او ټولنه خپل اسلامي اصالت ته ستنه کړه.د ۱۴۱۹ هـ ق کال د د صفر المظفر مياشتې په ۲۵ مه نيټه (۱۳۷۷/۳/۳۱ هـ ش) ملا صاحب داسې فرمان صادر کړ.

د عدليې محترم وزارت ته !

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته

په هيواد کې د شرعي نظام د ټينګښت په خاطر تاسو د هيواد ټول قوانين او مقررات د سترې محکمې په مشرۍ د ديني علماوو د يوه هيئت تر نظر تير کړئ، غيرشرعي او

غیرمذهبي مادې څنې حذف کړئ او د امارت د مقام له منظورۍ وروسته یې په رسمي جریده کې خپاره کړئ. والسلام.

دا سلام خادم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد

د افغانستان د پخوانیو رژیمونو اساسي قانون دغه راز نور قوانین او مقررات چې د فرانسې هیواد د اساسي قانون څخه په تقلید جوړ شوي او ځینې مادې یې له حنفي فقهې څخه ځای شوې وې په مجموع کې د دیني او غیر دیني اصولو د ګډولې یا معجون شکل یې درلود. چې د ملا صاحب د همدې فرمان په تعقیب د دیني علماء کرامو د یوې ځانګړې هیئت لخوا ټول قوانین له نظره تېر او په بشپړه توګه اصلاح شول.

د ټولو قوانینو د اصلاح په شان په کلتوري او تعلیمي برخو کې هم دیني اصلاحات راوستل شول، د افغانستان د مرکزي او ولایتي راډیوګانو لپاره مشترک نوم (د شریعت غږ راډیو) انتخاب شو. او د شریعت په نوم د امارت مرکزي اخبار هم خپرېده. له ټولو نشراتو څخه ناروا نشراتي توکي لرې شول او په ځای یې دیني لیکنې، اصلاحي خپرونې، اسلامي اشعار او ترانې او د سوچه اسلامي او افغاني فرهنګ له ذخیرې نور بیلابیل مواد نشر ته وړاندې شول. په نشراتو کې تغیر د فورم په اعتبار نه بلکې د محتوا له مخې و. له امارتي رسنیو د ستیج د سرننداري، غزلونه، داستانونه او بیلابیلې بوختوونکې خپرونې نشریدلې البته محتوا یې له غیر شرعي موادو تصفیه شوې وه.

په ۲۰/۱۲/۱۳۷۴ نیټه د کندهار په ښار کې پخوانۍ مشهوره سینما د امیرالمؤمنین په امر ونړول شوه او په ځای یې د (جامع عمر) په نوم د یو لوی مسجد او مدرسې د بنسټ ډبره کیښودل شوه.

همدا راز د ملا محمد عمر مجاهد په امر په بامیانو او د هیواد نورو سیمو کې د بودا بتان چې له اسلام وړاندې کفري دورې میراث ول، د انبیاء کرامو علیهم السلام د سنت د احیاء په نیت ونړول شول.

د فرهنګ او هنرونو په برخه کې د اسلامي او افغاني ثقافت د احیاء لپاره هڅې وشوې، د غربي لباس په ځای په حکومتي او تعلیمي ادارو کې د افغاني لباس او لنګوټې د

استعمال تلقین کیده. د لمانځنو په برخه کې د غربي او پخوانیو خرافاتي جشنونو په ځای د اسلامي اخترونو ورځې او د کفري اشغال څخه د هیواد د خپلواکۍ ورځې لمانځل کیدلې.

اسلامي امارت زموږ هغه اصیل مصطلحات هم راژوندي کړل چې د تاریخ په دوړو کې رانه ورک و. د هیواد رسمي نوم یې د (دافغانستان اسلامي امارت) اعلان کړ او د نظام مشر ته یې د ولسمشر یا شاه په ځای د امیرالمؤمنین لقب غوره کړ. رسمي تاریخ یې ځکه هجري قمري وټاکه چې زموږ دیني مناسبتونه لکه رمضان، اخترونه، حج او متبرکه ورځې په همدې حساب راځي خو د هیواد پخوانی تقویم هجري شمسي-هم د اړتیا او عمومي بلدتیا له مخې کارول کیده.

طالبانو د مسلح پوځ نوم له ملي اردو څخه په اسلامي اردو واړاوه. په نړیواله کچه یې د اسلامي اخوت هیره شوې اصطلاح راژوندۍ کړه. د نړۍ هر مستضعف مسلمان ته یې په خپله غیږ کې پناه ورکړه او هغوی یې د ورونو په حیث له ځان سره وساتل. د نړۍ په بیلابیلو برخو کې یې له مسلمانانو سره د خواخوږۍ غږ پورته کړ. د فلسطین، کشمیر، برما او چیچنیا د مسائلو په اړه یې خپل موقف روښانه کړ او هغه مهال چې په چیچنیا کې روس ضد مجاهدینو خپلواک حکومت جوړ کړ ملا محمد عمر مجاهد یوازینی اسلامي رهبر و چې دغه اسلامي حکومت یې په رسمیت وپیژاند.

اسلامي امارت د اسلامي ټولنې د ثقافتي اصالت خوندیتوب ته تردې حده ژمنتیا درلوده چې د ریاست الوزراء لخوا ټولو امارتي منسوبینو ته ځانګړی حکم صادر شو چې د غربي اصطلاحاتو په ځای دې په ټولو رسمي مکتوباتو کې د هغوی پښتو، فارسي یا عربي معادلات وکارول شي.

## عمراني او انکشافي خدمتونه

افغانستان چې د شوروي یرغل په بمبارونو او جګړو کې سخت ځپل شوی و د تنظیمي هرج و مرج دورې داسې لوټ کړ چې حتی د کابل ښار تر ځمکه لاندې د بریښنا

تارونه يې هم را وايستل شول اود برق پايې له اره کیدوورسته د کباړ په نوم خرڅې شوې.

اسلامي امارت په يوه وران، لوټ شوي او تر وروستی کچې فقر او جګړې ځپلې هیواد باندې واکمني پيل کړه. دې ته په پام سره د انکشافي او عمراني پروژو د ترسره کولو امکانات خورا محدود و خو بيا هم د اسلامي امارت مخلص او فداکار مسؤلين وتوانيدل چې په خپله لنډه واکمني کې د هیواد او ولس لپاره نه هیریدونکي خدمتونه ترسره کړي. چې دلته ورته مختصره او ځغلنده کتنه کوو.

طالبانو د هيواد د بریښنا توليدونکي مراکز محفوظ او حتی الوسع ورغول او د بريښنا د ماشينونو پرزې چې ټوپکيانو د کباړ په بيه خرڅې کړي وې بيرته يې راپيدا او ګټه اخيستلو ته وسپارلې.

د هيواد پلازمينه چې له دې وړاندې په تيارو کې ډوبه وه طالبانو د ماهيپر، نغلو او سروبي بندونو د بريښنا په توحيد سره يو ځل بيا روښانه او له بريښنا برخمنه کړه.

د هلمند د کجکي څخه تر کندهار ښار پورې چې مخکينی د بريښنا پايې او مزي يې يو مخ له منځه تللي وو د نويو پايو او مزو په لګيدلو سره يو ځل بيا بريښنا ورسول شوه. دغه راز د هيواد ټولو سترو ښارونو ته بريښنا ورسول شوه او د بريښنا په برخه کې د اړتياوو پوره کولو لپاره يې له ترکمنستان څخه د بريښنا د راوستلو کار پيل کړ.

ښاروالیو په ټولو ښارونو کې د بيت المال غصب شوي املاک اعاده کړل، ښاري پلانونه يې تطبيق او په روزمره شکل منظم خدمتونه يې سرته رسول.

د هيواد په ښارونو کې د وزارتخانو، رياستونو، شفاخانو، تعليمي او فرهنګي بنسټونو او نورو ادارو اړوندې هغه ودانۍ چې په جګړو کې بشپړې نه وې نړيدلي خو زيانمنې شوې وې، د اسلامي امارت لخوا يې اکثره بيرته ترميم او ګټه اخيستنې ته اماده شوې.

د هيواد لويې لارې چې اوږدو جګړو د بيارغولو فرصت ترې اخيستی و اسلامي امارت له خپل وس سره سم بيا بيا ورغولې، په کندهار، هرات او کابل کې يې ځينې لارې په

پاخه ډول جوړې کړې او د ښارونو داخلي سرکونه چې د تانګونو ګشت وګذار او جګړو ورته زيانونه اړولي وو داغګيري شول.

په هيواد کې د موجود تعليمي ادارو په فعالولو سربيره په سلګونو نوې مدرسې جوړې شوې،د ديني او عصري زدکړو لپاره نوی نصاب ترتيب او د چاپ لړۍ يې پيل شوه.اسلامي امارت له نظامي چارو وروسته ډيره بوديجه په تعليم او تربيه لګوله. د هيواد په ټولو لويو ښارونو کې هغه پوهنتونونه او د تخصصي عالي زده کړو ادارې چې پخوا له فعاليته لويدلې وې د اسلامي امارت لخوا فعالې شوې. نړيوالو څارونکو ادارو که څه هم له اسلامي امارت سره يې دښمني درلوده خو په رسمي احصائيو کې يې دا خبره منله چې د اسلامي امارت په ديني او عصري تعليمي ادارو کې تر يو ميليون زيات د هيواد بچيان په زده کړو بوخت دي. د معارف په برخه کې بله لويه کارنامه دا وه چې پخوا د افغانستان په ښارونو کې ديني مدارس ډير کم او تقريبا په نشت حساب وو. د اسلامي امارت په دوره کې په ټولو لويو او وړو ښارونو کې ديني مدارس جوړ او فعال شول. د دې ابتکار اثرات تر اوسه پورې څرګند دي. په ښارونو کې د مدارسو، طالبانو او علماء کرامو ډيربښت په ديني او اجتماعي برخه کې ډير ښه اثرات درلودلي او په ښارونو کې د ديني فرهنګ تعميم او تقويې ته يې زمينه برابره کړې ده.

د اسلامي امارت د واکمنۍ په وخت کې د مساجدو د تأسيس، ترميم او پراختيا په برخه کې د پام وړ کارونه وشول او د هيواد پوځي او ملکي ادارې په خاص ډول وزارتخانې چې پخوا په کې مساجد نه وو په ډيرو کې يې مساجد ودان شول.

په فرهنګي برخه کې که له يوې خوا ټول نشرات او کلتوري فعاليتونه اصلاح او د اسلامي فرهنګ د ودې او پراختيا لپاره بنيادي اقدامات وشول. له دې علاوه د ادبي غونډو، مشاعرو او بيلابيلو نشراتو له لارې هڅه کيدله چې هيواداوالو ته په خپل سوچه اسلامي او افغاني فرهنګ قناعت ورکړل شي او ذوقونه يې سيراب شي. د اسلامي امارت لخوا ګڼ شمير مجلې او اخبارونه چاپيدل چې د ځينو نومونه يې په دې ډول دي. شريعت اونيزه، هيواد ورځپاڼه، انيس ورځپاڼه، کابل ټايمز اونيزه، په کندهار کې طلوع افغان ورځپاڼه، د مزارشريف بيدار ورځپاڼه، په ننګرهار کې ننګرهار ورځپاڼه، په

هرات کې اتفاق اسلام ورځپانه، دغه راز په بیلابیلو ولایـاتو کـې مهـالنی جریـدې، لکه سنايي، وړانګه، کندز او داسې نـورې نشـريې. لـه دې عـلاوه خلافـت مجلـه، کندهار مجلـه، الامـارة الاسـلاميه عـربي او انګريـزي مجلـه، او د روغتيـا وزارت، دفـاع وزارت، سترې محکمې، علومو اکاډمۍ او نورو ځينو وزارتونو خاصې خپرونې هغـه نشـرات وو چې د اسلامي امارت د رسنيزې پاليسـۍ سره سـم خپريـدل. اسـلامي امـارت د کابل د شـريعت غږ راډيو په نوم يوه مرکـزي راډيـو درلـوده چـې سـهار ماښـام يـې ګڼ شمېر خبري، تحليلي او بوختوونکې خپرونې درلودې. له دې عـلاوه پـه بيلابيلـو ولايـاتو کې ۱۴ پايې نور راډيو سټيشنونه هم فعال و چې په محلي کچه يې خپرونې کولې.

د توليداتو په برخه کې د هلمند د بست تصدۍ چې د حلاجي، غوړيو، صابون او نورو توليداتو فابريکې يې درلودې، د پلخمري د غوري سمينټو فابريکه، د کنـدز د سپين زر شـرکت د غوړيو او حلاجۍ فابريکې، د مزار شـريف د برېښنا او کود د توليد فـابريکې او د هيواد په لراوبر کې نـور توليـدي منـابع چـې جګـړو يـې فعاليـت درولـی او يـا هم اغيزمن کړی و د اسلامي امارت په وخـت کـې پـه ټـول قـوت فعـالې او د توليـد جوګه کړای شوې تر دې چې د غوري سمينټو فابريکه چې پخوا يې د ورځې ۵۰ ټنـه سمېنټ توليدول د اسلامي امارت د واکمنۍ په وروستيو کلونوکې يې توليد د ورځې ۴۰۰ ټنه ته لوړ شوی و.

د مخابراتو په اړه ويلی شو چې جګـړو د افغانسـتان پخـوانی د اتصـالاتو سيسـتم بشپړ ويجاړ کړی و، د اسلامي امارت په مهال د هيواد ۹۳ مخابراتي کوډ بيا فعال شو او هيواد بيا له نړۍ سره وصل شو. په لويو ښارونو کې د ډيجيټل ځـو زره لينـه دسـتګاوې نصب شوې دغه راز د سټلايټ ټيلفونونو په راواردولو سره د هيوادوالو مخابراتي مشـکلات تر ډيره حل شول. د اسلامي امارت د مخابراتو وزارت په هيـواد کـې د موبايـل ټيلفونونو د فعاليت او تعميم لپاره له يوه لويديځ شـرکت سره قرار داد وکړ چې له مخې يـې د افغان بيسيم شـرکت رامنځته شو. خو نړيوالو بنـديزونو دا پروسـه وځنډولـه او وروسـته هماغه شـرکت په هغه نوم فعال او په هيواد کې يې د مبايل ټيلفونونو د خدماتو اساس کېښود.

د هوايي چلند په برخه کې هم اسلامي امارت خورا مثبت کردار اداء کړ، د هوايي ځواک او د اريانا افغان هوايي شرکت تيرو جګړو او ګډوډيو سخت زيانمن کړي و، طالبانو د هيواد ټولې فعالې الوتکې او چورلکې د قومندانانو له واکه وايستې او د ملي شتمنۍ په حيث يې خوندي کړې. د هوايي ډګرونو او رادار سيستم په ترميم سربيره د اسلامي امارت په موده کې ۹ ترانسپورتي الوتکې، ۱۶ جنګي الوتکې او ۱۹ بيلابيلې څرخکې چې په جګړو کې زيانمنې او له پرواز پاته وې ترميم او خدمت ته چمتو شوې.

اسلامي امارت او شخصا ملا صاحب د هيواد او هيوادوالو اقتصادي ستونزو ته ډېر متوجه و چې په دې برخه کې يوه لويه مسئله د پولي سيستم اصلاح کول و. د اسلامي امارت د بهرنيو چارو وزير متوکل صاحب په دې اړه وايي (ملامحمدعمر مجاهد د پولي تورم د اصلاحاتو طرحه ومنله د افغانستان بانک او ماليې وزارت په ګډون يې پلاوی وګماره چې زه متوکل هم پکښې شامل وم. په افغانستان کي د رباني لخوا د لس زريز او پنځه زريز نوټونه په روسيه کې پربمانه چاپېدل. د جنرال دوستم لخوا هم بې رجسټره ډېري افغانۍ چاپېدلې چې د هيواد پولي ارزښت او اقتصاد يې خراب کړی وو. نوي معياري افغانۍ بايد چاپ شوي وای څو د رباني شنې افغانۍ پنځوس په يوه او جنبشی سل په يوه راټولي شوي وای.

د همدې هدف لپاره د اسلامي امارت لخوا ديوه ګون څخه تر زرګون پوري ۹ ډوله نوټونه په ملي تاريخي يادګارونو ډيزاين شول، په واحد پټ مارک چې ارزانه تمامېده د ميرويس نيکه مقبره ورکول شوه د مخصوص کاغذ او چاپ لپاره له جرمني کمپنۍ سره تړون وشو چې لومړی قسط پيسې يې ورکول شوې خو له بده مرغه چې د ملګرو ملتونه د امنيت شوری تعزيراتو دا پروسه معطله کړه. او کله چې د امريکايي يرغل په نتيجه کې حامد کرزی راغی دا پروسه يې تکميل کړه، زړې افغانۍ يې راټولي کړې نوې د افغانستان داسلامي امارت لخوا چمتو شوې افغانۍ يې ووېشلې)

په دې سربيره د معادنو، روغتيا، زراعت، آبياری، ترانسپورټ، ورزش او نورو برخو کې هم حتی الوسع کارونه او خدمات وشول. خو هغه څه چې اسلامي امارت د لويو

انکشافي پروژو له تطبیق څخه راګرځاوه پرلپسې جګړییز وضعیت او بل اړخ ته د نړیوالو بندیزونو او د ځینو ګاونډیو هیوادونو دښمنانه چلند و. نړیوالو ډول ډول اقتصادي بندیزونو د ټولو هغه انکشافي پروژو مخه نیوله چې د نړیوالو سرمایه ګذارانو او شرکتونو سره قراردادونو او یا هم د وسائلو واردولو ته په کې اړتیا وه.

## د اسلامي هیواد له ارزښتونو دفاع

افغانستان د نړۍ یوداسې هیواد دی چې له ۹۹ فیصده زیات اوسیدونکي یې مسلمانان دي.د اسلامي خلافت د متحد وجود له ټوټه کیدو وروسته چې په عباسي دور کې د مستقلو او موازي سلطنتونو دوران پیل شو، افغانستان یا پخوانی خراسان هم له هغه مهاله د مسلمانانو د یوې ځانګړې جغرافیې په حیث د اسلامي نړۍ په زړه کې اوسیدلی او تاریخي پړاوونه یې وهلي دي. په اوسنۍ نړۍ کې چې د اسلامي اخوت ضد افکارو او غربي نړۍ لید د غلبې له امله خلک د ګمراهۍ تر کچې په نشنلیزم کې ډوب او وطن یا وطن پرستي ته د مقدساتو په نظر ګوري طالبانو د دې منحرف او ناوړه تعبیر په اساس نه بلکې د لوی اسلامي وطن د یوې ټوټې او د اسلامي امت د یوې برخې په حیث یې د افغانستان او افغان ولس له ټولو ارزښتونو او منافعو څخه دفاع د ځان وجیبه بلله.

اسلامي امارت د افغانستان استقلال په داسې ډول را اعاده او خوندي کړ چې ښايي په وروستیو لسیزو کې دا هیواد او ولس کله هم دومره نه وي خپلواک شوی.د افغانستان د چارو واک د ملا محمد عمر مجاهد په غاړه و. د ده استقلال او خپلواک فطرت چې چا له نږدې لیدلی نو په دې خبره اعتراف کوي چې د افغانستان او اسلامي هیوادونو په معاصر تاریخ کې یې دومره د حُر او ازاد فطرت څښتن مسلمان حاکم نه دی لیدلی.

د اسلامي امارت زعیم ملامحمد عمر مجاهد هغه مسلمان حاکم و چې ټولې سیاسي، نظامي، اقتصادي او نورې بیلابیلې پریکړې دغه راز د کورنۍ او بهرنۍ پالیسي-اړوند فیصلې یې یوازې د خپلې عقیدې، شریعت او اسلامي ټولنې د مصالحو په رڼا کې کولې او له دې اخوا یې د نړیوالو قدرتونو، بین المللي ټولنو، ګاونډیو هیوادونو او یا هم

د دوديز سياست د نورو تاثيرګذارو جهتونو خوشالۍ يا لحاظ ساتلو ته يې ډېر التفات نه کاوه.

په فيصلو او سياسي تصاميمو کې د ملا صاحب د خپلواکۍ ښه بېلګه د شيخ اسامه بن لادن موضوع او يا هم د بودا د بتانو د نړولو قضيه وه، چې د نړۍ له سترو ځواکونو رانيولې بيا تر ملل متحد او ګاونډي هېواد پاکستان پورې ټولو د خپلو لوړو پوړو هيئتونو په استولو سره کوښښ وکړ چې د ملا صاحب تصميم بدل کړي مګر په نهايه کې ټول په دې ارمان کې نامراده شول او ملا محمد عمر مجاهد خپل د پرېکړې استقلال په اثبات ورساوه.

اسلامي امارت د هېواد په استقلال سربېره د هېواد له سرحداتو هم په ټينګه دفاع کوله، تر دې چې د ډيورنډ کرښې په اوږدو کې د برامچې، پکتيکا، ځاځي اريوب، خوست او تورخم ساحو کې طالبانو د ګاونډي هېواد پاکستان له عسکرو سره جګړې وکړې او له کرښې نه د افغانستان غاړې ته جوړ کړي تأسيسات يې ورونړول.

اسلامي امارت افغانستان له حتمي تجزيې وژغوره. له طالبانو وړاندې عبدالعلي مزاري په افغانستان دننه د هزارستان په نوم د مستقل هېواد نقشه جوړه کړې وه او د کابل په لويديځ کې خپل پلويان يې (ملت غرب کابل) بلل. جنرال دوستم په شمالي ولاياتو کې ځانګړې پيسې را ايستلې وې او د مغرضو ګاونډيانو په ديکته يې د هېواد د ټوټه کولو هڅه کوله. په لويديځ اسمعيل خان ځان ته امير وايه دغسې په نورو سيمو کې د اسلامي ټولنې د يووالي دښمنانو هڅه کوله چې دا په ټوټو ويشل شوي مسلمانان نور هم سره ريز مريز او ټوټه ټوټه کړي. خو اسلامي امارت د تجزيې د مدعيانو ټغر ټول کړ او افغانستان يې يو ځل بيا تر يوه بيرغ او اسلامي حاکميت لاندې متحد کړ.

## څو تورونه او د هغو سپيناوی

### آيا اسلامي امارت د ولس ملاتړ درلود؟

د اسلامي امارت پر خلاف د تبليغ شويو تورونو له جملې يو دا دی چې دغه خوځښت له يوه خاص قشر څخه جوړ و، په ولس کې يې ريښې او ملاتړ نه درلود او له همدې

یوه قشر نه علاوه په کې د ولس نورو اقشارو ونډه نه درلوده. حقیقت دا دی چې د اسلامي تحریک لومړني مؤسسین رښتیا هم د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ د مدرسو طالبان وو. اما د پاڅون له پیل وروسته سمدستي د افغان ولس بیلابیلو اقشارو د دې پاڅون ملاتړ وکړ. مالي او تسلیحاتي مرستې یې ورسره وکړې او خپله د مبارزې په صف کې شامل شول.

د افغانستان په بیلابیلو ولایاتو کې د پخواني جهاد ګڼ شمیر مجاهدین، قومندانان او مخور شخصیتونه د اسلامي امارت سره ملګري او ستر خدمتونه یې ترسره کړل. کله چې لوی ښارونه لکه کندهار، کابل، مزار شریف، هرات، جلال اباد، غزني او نور فتحه شول، نو د افغانستان د دولتي دستګاه ټول هغه مامورین چې له پخواني کمونیست رژیم سره یې ګوندي تړاو نه درلود بلکې خپل ژوند یې د افغان ولس په خدمت کې تېر کړی و، اکثرو یې د اسلامي امارت په تشکیل کې خدمتونه شروع کړل. له ماموریتونو او ریاستونو نیولې بیا د وزارتونو تر معینیتونو پورې په وظائفو وټاکل شول او د اداري نظام په احیاء کې یې ستر رول ترسره کړ. اسلامي امارت یوازې هغه کمونیستان چې په خپل دور کې د افغان ولس سره په ظلم او زیاتي کې برخوال وو او یا یې کمونیزم ته لا هم اعتقاد درلود د نامطلوبو اشخاصو په نوم له اداراتو وشړل، له هغو پرته په ټولو وزارتونو، ولایاتو حتی امنیتي او پوځي ادارو کې هغو اداري کدرونو دندې اجراء کولې چې طالبان یا ملایان نه وو.

عام ولس د اسلامي امارت په قیام، پوځي پرمختګونو او پایښت کې هم اساسي نقش درلود. په پیل کې د اسلامي امارت مجاهدین ډېر کم وسه وو، په هره سیمه کې ورسره عامو خلکو د ډوډۍ، وسلو او نورو ضرورت وړ شیانو مرسته کوله. په جهادي ډلګیو او ګروپونو کې که څه هم مشري د طالبانو په غاړه وه خو په افرادوکې یې د طالبانوتر څنګ ډېر د عام ولس رضاکار مجاهدین هم وو. د سختۍ او اړتیا په وخت کې ولس د عمومي پاڅون یا نفیر عام په شکل د اسلامي امارت ملاتړ کاوه. د ۱۳۷۴ لمریز کال د سنبلې په میاشت کې کله چې تورن اسمعیل خان د فراه له اړخه لوی تعرض وکړ، د هلمند تر ګرشک پورې راورسید او مجاهدین له سخت حالت سره مخامخ شول، د

کندهار د ښار او شاوخوا ولسواليو خلک د ولسي قيام په شکل لـه وسلو سره راووتـل او د اسلامي امارت د مجاهدينو د ملاتړ لپاره د هلمنـد پـر خـوا روان شـول. پـه دې جگـړه کې نه يوازې عام ولس سلگونه ځوانان د اسلامي امارت ملاتـړ تـه وقـف کـړل بلکـې د وسلو، خوراکي موادو او پيسو مرستې يې هم له اسلامي امارت سره وکړې.

دغه راز د ۱۳۷٦ لمريز کال په جوزا مياشت کې کله چې پـه شـمال کـې جـنرال مالـک تاريخي غدر وکړ، مزار شـريف ته په سوله ييزه توگه ورغـلي طالبـان يـې شـهيدان او يـا بنديان کړل، دغه راز د اسلامي امارت يوه لويه برخه مجاهدين پـه کنـدز کـې محـاصره شول او د احمد شاه مسعود قواوو د کابل شمالي سيمې يو ځل بيـا ونيـولې او پلازمينـې کابل ته يې گواښ متوجه وکړ. په همدې سخت وخت کـې د افغانسـتان عـام ولـس يـو ځل بيا له اسلامي امارت سره خپل پيوستون او ملاتړ ثابت کړ. د افغانستان لـه جنـوبي او جنوب ختيځو ولاياتو څخه ولسي مجاهدين د لښکرو په شـکل راووتـل. خصوصـا لـه لوی کندهار او لويې پکتيا څخه په زرگونو ولسي مجاهدينو کابل ته ځانونـه ورسـول، د دې ولسي رضاکارو مجاهدينو شمير دومره زيات وو چې اسلامي امارت يـې پـه مسلح کولو او تشکيل پسې نه شـوای رسـيدلی نـو ځکـه ډېـرو تـه بيرتـه د کورتـه تـگ اجازه ورکول شوه. د همدې ولسي مجاهـدينو د ملاتـړ پـه برکـت اسـلامي امـارت لـه هماغـې امتحاني مرحلې هم بريالی ووت. هم د پلازمينې کابل دفـاعي خطـوط محکـم شـول او هم کنـدز تـه دومـره مجاهـدين د هـوا لـه لارې انتقـال شـول چـې هلتـه يـې پـه دښـمن څپونکي بريدونه وکړل او ډېرې سيمې يې فتحه کړې.

همـدا اوس د امريکايـانو او نړيـوالې اشـغالگرې ټـلوالې پـه وړانـدې د اسـلامي امـارت متداوم جهاد د دې خبرې نغد دليل دی چې اسلامي امارت پـه افغـان ولـس کـې ژورې ريښې او پراخ ملاتـړ لـري. ځکـه د نړيوالـو اشـغالگرو پـه شـان د ځـواکمن دښـمن پـه وړاندې دومره اوږد او بريمن جهاد پرته له ولسي ملاتړه اصلا ممکن نه بريښـي. دا چـې د اسلامي امارت په وړاندې د دښمن ټولې پوځي او تبليغاتي ستراتيژۍ يـو پـه بـل پسـې ناکامېږي او د اسلامي امارت د محو کولو ارمان يې لا هم نيمگړی پاتـه دی، علـت يـې له اسلامي امارت سره د الله تعالی نصرت او د مؤمن ولس کلک ملاتړ دی.

## آیا د طالبانو تحریک د پاکستان په کویټه کې جوړ شو؟

د افغانستان په اوسني سیاست کې دخیل زیاتره احزاب له افغانستانه بهر جوړ شوي دي، د روس ضد جهاد پر مهال په پاکستان کې اوه او په ایران کې اته تنظیمونه جوړ شول، ځینو خلکو طالبان هم په همدې احزابو قیاس کړي او وایي د طالبانو اسلامي تحریک هم د پاکستان د بلوچستان ایالت په مرکز (کوټه ښار)کې جوړ شوی دی.

اما واقعیت داسې نه دی، د طالبانو اسلامي خوځښت چې وروسته په اسلامي امارت بدل شو، د افغانستان په پخوانۍ پلازمینه (کندهار) کې تاسیس شوی، وده یې کړې او له همدې ولایته نور افغانستان ته خپور شوی دی. په دې اړه مو ډېر تفصیل د کتاب په تیرو فصلونو کې لوستی خو د لوړې عنوان شوې ادعاء د تردید لپاره لاندې څو خبرې د یادولو وړ ګڼو.

ـ د اسلامي امارت مؤسس ملا محمد عمر مجاهد کله هم په پاکستان کې نه دی اوسیدلی، د ده کورنۍ د شوروي یرغل په کلونو کې پاکستان ته هجرت نه و کړی، بلکې په روزګان ولایت کې اوسیده، ملا صاحب د شوروي ضد جهادپه وخت کې که د نورو مجاهدینو په څېر د معالجې په خاطر پاکستان ته تللی وي هم، هلته یې یوازې د ورځو په حساب لنډ وخت تیرکړی دی اما د تحریک د پیل څخه بیا د وفات تر وخته د یوه ساعت لپاره هم د افغانستان څخه د باندې نه دی وتلی. نو بناء دا له امکانه لرې ده چې ملا محمد عمر مجاهد د پاکستان له سیاسي او ټولنیز وضعیت سره د نابلدۍ سره سره توانیدلی وي په دې هیواد کې سیاسي فعالیت وکړي او یو لوی سیاسي، پوځي خوځښت تأسیس کړي.

په اصل کې دا یو بې بنیاده خبره او کاذبه اوازه وه چې د دښمن لخوا زمزمه شوه که نه په واقع کې هرڅوک پوهیږي چې حقیقت څه دی.

ـ که د طالبانو خوځښت په پاکستان کې جوړ شوی وای، نو باید د پاکستان تر اغیز لاندې به هم وای، مګر برعکس دا څوک نه شي ثابتولای چې ملا محمد عمر مجاهد دې یوه هم داسې پریکړه کړې وي چې هغه د پاکستان د ګټو په خاطر وي. د اسلامي امارت لپاره د موقف ګیرۍ معیار یوازې د الله تعالی د دین لوړتیا وه. له پاکستان څخه د

اسلامي امارت د عدم تأثر يو دليل دا دی چې پاکستاني واکمنو هم د ډېرو نورو هيوادونو د مشرانو په شان ډېره هڅه وکړه چې اسلامي امارت د اسامه بن لادن پر سر معاملې ته وهڅوي. حتی د دې لپاره يې لوړ رتبه هيئتونه هم کندهار ته وليږل. خو ملا محمد عمر مجاهد د دوی هيڅ فرمايش هم ونه مانه او يوازې هغه تګلاره يې تعقيب کړه چې خپل ايمان او وجدان يې پرې قانع و.

## د نصير الله بابر کاروان

په ۱۹۹۴ ميلادي کال کې چې په افغانستان کې کورنۍ جګړه او د ټوپکيانو لخوا پيل شوی فساد او ناامني اوج ته رسيدلې وه په پاکستان کې د بې نظير بوټو په مشرۍ حکومت د قدرت واګې په لاس کې درلودې. د پيپلز ګوند حکومت غوښتل چې پاکستاني مصنوعاتو ته د بازار موندلو په موخه د منځنۍ آسيا له نويو آزاد شويو هيوادونو سره اقتصادي اړيکې جوړې کړي. دا چې په پلازمينه کابل کې تنظيمي جګړې رواني وې د ۱۹۹۴ م کال په جون مياشت کې د پاکستان حکومت اراده وکړه ترڅو د کندهار ــ هرات له مسير څخه په استفاده تر ترکمنستان هيواد پورې عمومي لاره د خپلو ترانزيتي مالونو د حمل و نقل لپاره وکاروي. هغه مهال چې په افغانستان کې يو مقتدر مرکزي حکومت موجود نه و، نو پاکستاني چارواکو د هرات له واکمن اسمعيل خان او د کندهار او هلمند له محلي قومندانانو سره خبرې پيل کړې، تر څو له دې لارې د پاکستان تجارتي لاريو ته د تيريدو اجازه ورکړي. د ۱۹۹۴م کال په سبتمبر مياشت کې (سنبله ۱۳۷۳ هـ ش) د پاکستان د کورنيو چارو وزير نصير الله بابر د دې تجارتي لارې د خلاصولو په هڅو بوخت و. نوموړی د شپږو اروپايي هيوادونو د سفيرانو په ملتيا د يوه لوی هيئت سره کندهار ته لاړ، د کندهار محلي قومندانان يې تشويق کړل ترڅو پاکستاني لاريو ته لار ورکړي چې له دې لارې به دوی ته د حق العبور په نوم لوی مقدار پيسې په لاس ورشي. د کندهار زياتره قومندانانو د بابر طرحه ومنله خو د امير لالي په نوم يو ځواکمن قومندان يې مخالفت وکړ. بابر وروسته هرات ته لاړ، هلته يې د تورن اسمعيل خان توافق هم ترلاسه کړ چې د فراه او هرات په سيمو کې يې په دې لويه لار کنترول درلود. د يادونې وړ ده چې د پاکستان حکومت هغه

وخت د هرات له حاکم اسمعیل خان سره خورا تودې او دوستانه اړیکې درلودې او د استخباراتو یو مشهور افسر کرنیل امام یې د اسمعیل خان په واکمنۍ (هرات) کې د قونسل په حیث ټاکلی و. د اکتوبر په میاشت کې نصیر الله بابر په ترکمنستان کې له جنرال دوستم او اسمعیل خان سره یوه بله غونډه جوړه کړه، تر څو خپل تجارتي پلان نهایي کړي. د ترکمنستان ولسمشر سفر مراد نیازوف په دې غونډه کې اسمعیل خان او جنرال دوستم وهڅول چې له پاکستان سره همکاري وکړي تر څو دغه تجارتي طرحه کامیابه شي.(افغانستان طالبان و سیاست های جهاني ۱۲۱ ص)

په اکتوبر میاشت کې پاکستانیانو غوښتل د ترکمنستان په خوا د تجارتي اموالو په نمونو بار لومړنی موټریز کاروان تېر کړي. د اکتوبر په ۱۳ مه نیټه (۲۱ / ۷ / ۱۳۷۳ هـ ش)چې بولدک ښارګوټی تازه د طالبانو لخوا نیول شوی و د پاکستان تجارتي کاروان چې په ۸ بار وړونکو موټرو مشتمل و، له کرښې څخه د افغانستان خواته واوښت. افغانستان ته په اوښتلو پاکستاني چارواکي له نوې حالت سره مخامخ شول. ځکه دوی د کندهار او بولدک له پخوانیو ټوپکي قومندانانو سره تعهد کړی و او اوس د بولدک، ژړۍ او میوند ولسوالیو واک د طالبانو د نوي راټوکیدلي خوځښت په لاس کې و. د دې لپاره چې دغه کاروان د طالبانو تر واک لاندې سیمو څخه هم په امن تیر شي دوی مجبور و چې له طالبانو سره هم خبرې وکړي.

د اسلامي امارت د و اکمنۍ پر مهال د سرې میاشتې د خیریه ټولنې رئیس سید عبدالله اغا (تورک اغا) چې د دې حالاتو عیني شاهد دی وایي، د بولدک له نیولو وروسته د طالبانو د تحریک مشران په همدې ښارګوټي کې په خپل منځي مشورو بوخت وو، چې د پاکستان د تجارتي کاروان خلک راغلل. دوی د موضوع په اړه خبرې وکړې او په پای کې یې وویل چې موږ له بولدک بیا تر هرات پورې د لارې په اوږدو کې له ټولو قومندانانو سره یو تعهد کړی او لیکلي ضمانتونه مو ترې اخیستي چې زموږ په کاروان به غرض نه لري اوس چې د دې لارې ځینې برخې (د بولدک، ژړۍ او میوند په ساحو) ستاسو تر واک لاندې دي. نو که موږ ته اجازه راکړئ چې له دې لارې خپل کاروان تېر کړو. دا لومړی ځل و چې طالبان له دې موضوع څخه خبر شول. په

موضوع د سم پوهیدو لپاره یې څه مهال کاروان وځنډاوه. تر دې چې د کندهار محلي قومندانانو طالبانو ته لیکونه واستول چې کاروان ته اجازه ورکړي. د موضوع له روښانوالي وروسته طالبانو هم کاروان ته د تګ اجازه ورکړه او دغه تجارتي موټر د کندهار پر خوا روان شول. دا چې د کندهار ځینو قومندانانو لکه منصور او امیر لالي د دې کاروان له تیریدو سره توافق نه درلود، نو یې هوایي ډګر ته نږدې په کاروان برید وکړ، تجارتي مالونه او موټر یې لوټ او موټر چلوونکي یې بندیان کړل. له دې پېښې څو ورځې وروسته چې کله طالبانو په کندهار ښار برید وکړ او ښار یې په مکمل ډول ونیو، د پاکستاني کاروان یو شمیر موټر او موټر چلوونکي یې د نساجی په ساحه کې پیدا کړل چې د قومندان امیر لالي کسانو بندیان کړي وو. د دې کاروان لوټ کیدلو د نصیر الله بابر د تجارتي طرحې ناکامي ثابته کړه، نو ځکه پاکستان هم هغه طرحه د تل لپاره پریښودله او بیا یې د عملي کولو هڅه ونه شوه.

که څه هم د طالبانو تحریک د بولدک له نیولو دوه نیمې میاشتې وړاندې د کندهار په مرکزي ولسوالۍ میوند (سنګ حصار) کې پیل شوی و. خو دا چې د بولدک د نیولو حادثه افغانستان ته د پاکستاني کاروان له را اوښتلو سره په نږدې ورځو کې وه، د دې زماني نږدې والي او تصادف څخه یو شمیر تاریخ لیکونکو خورا غلط استنباط کړی دی. مثلا د انتوني ډیویز په نوم یو بهرني خبریال په هماغو وختونو کې د طالبانو د تحریک د پیل په اړه یوه اوږده مقاله ولیکله چې نړیوالو مطبوعاتو له پراخ انعکاس علاوه ډیرو لیکوالو د دې موضوع په اړه د مأخذ په حیث هم ترې استفاده وکړه. نوموړي په دې مقاله کې ولیکل (د طالبانو لومړني نظامي عملیات له افغانستان څخه د نصیر الله بابر د لومړنۍ کتنې او بولدک ته د پاکستاني کاروان د اوښتو ترمنځ زمانه کې ترسره شول. د اکتوبر په ۱۲ د طالبانو یوه ۲۰۰ کسیز لښکر د پاکستان چمن ښار ته نږدې د بولدک په ښارګوټي برید وکړ، دغه سیمه د اختر جان په نوم د حزب اسلامي د یوه قومندان تر واک لاندې وه چې د دوو ساعتونو په ترڅ کې د طالبانو د مجهز ځواک تر تصرف لاندې راغله) (د یوه نظامي ځواک په حیث د طالبانو منځته راتګ — د انتوني ډیویز مقاله) انتوني ډیویز له دې مبهم روایت سره یو بل دروغ هم ملګري کړي دي او لیکلي یې دي چې کله طالبانو په بولدک حمله کوله نو د پاکستان له چمن

ښارګوټي ورسره د پاکستان د توپخانې ملاتړ هم ملګری و چې په چمن کې يې د مخالف لوري سنګرونه ويشتل.

که يو ناخبره لوستونکی د انتوني ډيويز او نورو مغرضو او طالب دښمنو ليکوالو دغه وړ ليکنې لولي، نو سمدستي يې ذهن ته دا خبره لويږي چې طالبانو د پاکستان له اړخه په بولدک بريد کړی دی، دوی د نصير الله بابر د کاروان لپاره د مخې خلاصولو مسؤليت درلود، چې په دې ډول يو لوی حقيقت تر خاورو لاندې کيږي.

ځکه په دې کې هيڅوک شک نلري چې د طالبانو خوځښت د بولدک له نيولو دوه نيمې مياشتې وړاندې د ميوند ولسوالۍ په اړوند سيمه (سنګ حصار) کې رامنځته شو، له هغه ځايه يې د ميوند مرکز او بيا ډنډ ولسوالي ته لاړل او بيا يې له ميوند څخه د بولدک په ولسوالۍ بريد وکړ، چې هلته له پاکستاني کاروان سره په تصادفي ډول مخامخ شول. خلاصه دا چې طالبانو بولدک له ختيځ اړخ (چمن) څخه نه دی نيولی، بلکې له لويديځ (کندهار ښار) له اړخه يې په دې ولسوالۍ بريد کړی. خو څرنګه چې د طالبانو د خوځښت خبر د بولدک له نيولو وروسته رسنيز شو او په همدې وخت کې د نصير الله بابر د کاروان خبره هم د رسنيو سرټکی وه، همدې زماني نږديوالي يې يو شمير مغرضو ليکوالو ته بهانه په لاس ورکړه تر څو د طالبانو خوځښت د نصير الله بابر د تجارتي طرحې يوه برخه وګڼي.

بله دا چې که چيرې طالبانو د نصير الله بابر پر لاس د خپل تجارتي کاروان د حفاظت يا لارې خلاصولو په مقصد رامنځته شوي وي نو پاکستان بيا له دې وړاندې د کندهار له قومندانانو، د هرات اسمعيل خان او د ترکمنستان له چارواکو سره ولې په لوړه سطحه خبرې او توافقات کول تر څو دا لاره د دوی په مخه خلاصه شي؟ همدا راز دا پوښتنه چې که طالبان د دې کاروان محافظين وای نو د پاکستان کاروان له بولدک څخه ولې له طالبانو وړاندې د کندهار پر خوا حرکت وکړ تر دې چې د کندهار د ټوپکيانو په لاس لوټ شو؟ بله دا چې کله طالبانو کندهار، هلمند، فراه او تر هرات پورې ټولې سيمې ونيولې، نو ولې د پاکستان تجارتي کاروانونو له دې لارې منځنۍ آسيا ته تېر نه

شول؟ هیڅوک نه شي ثابتولی چې د اسلامي امارت دواکمنی په ټوله دوره کې دې د پاکستان کوم تجارتي کاروان د افغانستان له لارې منځنۍ اسیا ته تللی وي.

دا ټول حقائق ثابتوي چې د نصیر الله بابر د کاروان خبره او بیا یې د اسلامي امارت له تأسیس سره پیوندول هم یو له هغه بې اساسه تورونو څخه دی چې طالب دښمنه لیکوالان ورباندې یوازې خپل ناخبره لوستونکي تیرباسي او د ثبوت لپاره هیڅ منطقي دلیل او کره شواهد نلري.

**آیا طالبان د مجاهدینو پر ضد راپورته شول؟**

پر طالبانو د خپلو مخالفینو لخوا یو تور دا هم لګول کیږي چې وایي دغه ډله د مجاهدینو د ځپلو په مقصد رامنځته شوه او هدف یې دا وه چې د شوروي یرغلګرو پر خلاف جنګیدلي مجاهدین د افغانستان له سیاسي صحنې وباسي.

دا تور یا مدعا به هغه وخت پر ځای او د منلو وړ وای کـه چیرې طالبان له مجاهدینو غیر کومه بله داسې فرقه یا ډله وای چې نه یې جهادي سابقه درلودای او نه یې هم د جهاد ارمانونو او اهدافو ته تعهد درلودای. واقعیت دا دی چې طالبان د شوروي ضد جهاد په صفوفو کې هغه پاک، مخلص، فداکار او اغیزناک مجاهدین وو چې په هر ولایت کې د جهاد اصلي پیټی د همدې ګمنامو او بې ریا غازیانو په اوږو پروت و خو د جهاد په نوم امتیازات نورو اخیستل.

تاریخ شاهد دی چې د کمونیزم او شوروي یرغل په وړاندې لکه څنګه چې دیني عالمانو او طالبانو د جهادي خوځښت د پیل ویاړ درلود همداسې د جهاد په اوږدو کې په هر ولایت کې علماء کرامو او طالبانو لویې جبهې درلودې. له دې جملې مولوي محمد نبي محمدي، مولوي محمد یونس خالص، مولوي نصرالله منصور، مولوي جلال الدین حقاني، مولوي رفیع الله مؤذن، مولوي عبدالله ذاکري او مولوي محمد میر هغه ملایان وه چې مستقل جهادي تنظیمونه یا د تنظیم په کچه جهادي تشکیلات یې

درلودل. دغه راز په هر ولایت کې د طالبانو مستقل جبهات هم موجود و، چې په جهاد کې يې مهم نقش درلود.

هغه وخت چې شوروي يرغلگر له افغانستانه وتلي او کمونيست رژيم نړېدلی و، د فرض عين جهاد علت ساقط شوی و، ځکه نه کافر اشغالگر پاته و او نه هم د کمونيزم فتنه، نو ځکه اکثره مخلصو او سوچه مجاهدينو وسله پر ځمکه کيښوده او خپل عادي ژوند ته ستانه شول. خو خبر نه و چې د کمونيزم له سقوط وروسته به يوه بله داسې فتنه سر را پورته کوي چې د هيواد او ولس په زيان به وي.

د کمونيستي رژيم له نړېدو وروسته جهادي رهبران ونه توانيدل چې هيواد په کنترول کې وساتي او يو متحد اسلامي نظام جوړ کړي، د قدرت د همدې خلا نه په استفاده په ډيرو سيمو کې فاسد ټوپکيان، د کمونيست رژيم پاتي شوني او داړه ماران راپورته شول. هر چا د يوې سيمې واک په لاس کې واخيست او د غلا، لوټ تالان، د ولس ځورول او نور شريرانه اعمال يې پيل کړل.

دغه خلک چې د هرج و مرج په کلونو کې يې د ولس برخليک يرغمل کړی و، مجاهدين نه وو. بلکې اکثره يې د مجاهدينو په نوم پخواني فرصت طلبه، قدرت غوښتونکي، د قوم او سمت په نوم د جاهلي شعارونو پالونکي، د کمونيست رژيم پاتي شوني وو. کله چې د دوی فساد او ظالمانه اعمال له حده زيات شول، نو د شوروي ضد جهاد د وخت واقعي مجاهدين مجبور شول چې يو ځل بيا د جهادي ارمانونو د تحفظ لپاره لاس په کار شي نو بناء ويلی شو چې د طالبانو اسلامي خوځښت په حقيقت کې د افغانستان سياسي صحنې ته د همدې واقعي مجاهدينو بيا راگرځېدل دي.

د دې خبرې کره ثبوت دا دی چې که داسلامي امارت د هر مشر او مهم شخص ژوندليک وکتل شي نو دا به په کې ووينئ چې نوموړي لومړنی جهاد د شوروي يرغلگرو پر خلاف پيل کړی دی. د بيلگې په توگه د کندهار په سطحه امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد يو له تکړه پخوانيو مجاهدينو څخه و. رئيس الوزراء مرحوم ملا محمد رباني د کندهار په ختيځو ولسواليو کې د هغې جبهې مرستيال و چې په کندهار

ولایت کې د کمونیزم پر خلاف د جهاد د آغاز له لومړنیو جبهاتو څخه وه. دغه راز د دفاع وزیر شهید ملا عبیدالله آخند، لومړنی نظامي قومندان شهید ملا محمد آخند، د کابل فاتح شهید ملا بورجان آخند، د ریاسة الوزراء مرستیال الحاج ملامحمد حسن آخند، د غزني والي شهید ملا یار محمد آخند، د امارت اوسنی مرستیال محترم ملابرادراخند، د هوانوردۍ وزیر او بیا امیر المؤمنین شهید ملا اختر محمد منصور(۱) صاحب ، د کندهار والي ملا محمد حسن رحماني او د امارت د سیاسي او پوځي رهبرۍ نور ډېر د سر کسان، ټول هغه خلک وو چې د شوروي یرغلگرو او کمونیزم پر ضد جهاد کې یې فعاله برخه درلوده او هر یوه په خپل سیمه کې په تکړه مجاهد شهرت درلود.

بله دا چې که طالبان د مجاهدینو پر ضد وای، نو مطلب یې دا دی چې طالبان باید د جهاد له ارمانونو سره هم مخالفت درلودلای. حال دا چې طالبان هغه خلک وو چې د

---

(۱) شهید ملا اختر محمد منصور د الحاج محمد جان زوی په ۱۹۶۸ میلادي کال کې د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ په بند تیمور سیمه کې زیږیدلی و. نوموړي د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د هوانوردۍ وزارت په شمول بیلابیلې ملکي او نظامي دندې اجراء کړې وې.

د امریکایانو پر خلاف د جهاد په اوږدو کې نوموړي لومړی د کندهار ولایت جهادي مسؤل و او وروسته چې د اسلامي امارت مرستیال ملا عبیدالله آخند د پاکستاني حکومت لخوا ونیول شو، نو د ملا محمد عمر مجاهد د فرمان له مخې منصور صاحب د اسلامي امارت د مرستیال په حیث وټاکل شو. چې له ملا برادر اخند سره په گډه یې د مرستیالۍ وظیفه ترسره کوله.

کله چې د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د وفات خبره اعلان شوه، د اسلامي امارت د رهبري شورۍ لخوا ملا اختر محمد منصور د اسلامي امارت د زعیم او امیرالمؤمنین په حیث وټاکل شو. نوموړي په یوه سخته او امتحاني مرحله کې دغه وظیفه په غاړه واخیسته خو په پوره میړانه، تدبیر او لوړ عزم یې دغه وظیفه ترسره کړه، تر دې چې د ۱۴۳۷ هـ ق کال د شعبان المعظم د میاشتې په ۱۴مه نیټه د امریکایي ډرون الوتکې په برید کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید. انا لله و انا الیه راجعون.

مقدس جهاد ارمانونه يې ترسره کړل. د کمونیزم پر خلاف د څوارلس کلن جهاد ستر هدف او ارمان دا و چې له هیواد څخه د کفر او فساد ټغر ټول شي او يو اسلامي نظام حاکم شي. داسې نظام چې په شرعي اصولو استوار وي او کړنلاره يې محمدي شریعت وي. داسې نظام چې د شریعت، عدالت او امنیت زیری له ځان سره ولري. د افغانستان اسلامي امارت هغه نظام و چې زموږ د مجاهد ملت او لکونو شهیدانو دغه ارمان يې ترسره کړ. شریعت يې تطبیق، عدالت يې تأمین او هیوادوالو ته يې د باسعادته ژوند داسې پر امنه فضاء برابره کړه چې ښايي داسې امنیت او اطمینان کله هم دې ولس نه وي لیدلې.

بله دا چې د شوروي ضد جهاد اکثرو مجاهدینو د اسلامي امارت تائید وکړ، د اوو رهبرانو له جملې څلورو رهبرانو کندهار ته سفرونه وکړل او له امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد سره له لیدلو وروسته يې د اسلامي امارت تائید وکړ. د مولوي جلال الدین حقاني، مولوي نصر الله منصور، شهید ملا مدد خان، ملا محمد شفیق محمدي او ګڼو نورو جهادي کورنیو نه یوازې د اسلامي امارت ملاتړ وکړ بلکې عملا د اسلامي امارت برخه شول. دا ټول شواهد ښيي چې اسلامي امارت د مجاهدینو ضد نه بلکې د واقعي مجاهدینو کور و. چې هدف يې د جهادي ارمانونو خوندي کول و.

## آيا اسلامي امارت یوازې د کوم خاص قوم خوځښت و؟

د تنظیمي هرج و مرج په کلونو کې یوه لویه بدمرغي چې زموږ هیواد ته راپیښه شوه دا وه چې جګړه مارو ډلو او تنظیمونو د ملاتړ جلبولو په مقصد تر قومي شعارونو لاندې جګړې پیل کړې. هرې جګړې مارې ډلې چې د څوکۍ ګټل يې اصلي مقصد و په ظاهره يې د یوه خاص قوم د حقوقو ساتنه خپل شعار جوړ کړ. د جګړه مارو دې جاهلي شعارونو که څه هم د افغانستان متحد ملت سره تقسیم نکړ، خو د قومي تفرقې موضوع يې د بل هر وخت په نسبت برجسته کړه. کله چې اسلامي امارت رامنځته شو نو د نورو بدمرغیو په شان يې د قومي تفرقې د له منځه وړلو پر ضد هم مبارزه پیل کړه. د اسلامي امارت شعار اسلامي اخوت و، نو ځکه يې د افغانستان د هرې سیمې، هر قوم، هرې ژبې او هر سمت خلکو ته غیرږه خلاصه کړه.

اما له دې سره سره ځينو تاريخ ليکونکو اسلامي امارت د تنظيمي جګړه مارو ډلو په رديف کې شميرلې او تور يې لګولی چې اسلامي امارت د يوه خاص قوم خوښنت و او قومي تمايلات يې پالل.

واقعيت دا دی چې ملا محمد عمر مجاهد شخصا له قومي، لساني او سمتي تعصب پاک انسان و. هيڅوک نه شي ثابتولای چې نوموړي دي د تعصب په اساس چلند کړی و. دغه راز د اسلامي امارت تګلاره په اسلامي اخوت ولاړه وه. نه يوازې د افغانستان ټولو وروڼو قومونو ته يې په يوه نظر کتل بلکې د درستې نړۍ په سطحه يې د هر هيواد، هرې ژبې او هر رنګ مسلمان خپل ورور ګاڼه.

د اسلامي امارت په صفوفو کې له بدخشان او تخار ونيسه، تر بادغيس هرات، نيمروز، پکتيا او نورستان پورې د ټولو ولاياتو مجاهدينو او لوړ رتبه مسؤلينو وظائف ترسره کول. د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې د بيلابيلو سيمو او ژبو مجاهدين تر يوه بيرغ او يوه فرمان لاندې په متحد صف کې بسيج شول. په داسې ډول چې د کندهار مولوي احسان الله احسان د هيواد په شمال د مزار شريف د آزادۍ لپاره خپل وينه قربان کړه او د تخار مولوی محمد سرور حق پرست د هيواد جنوب ختيځ خوست کې د شهادت جام نوش کړ.

د اسلامي امارت په جهادي برياوو کې د نورو ولاياتو د مجاهدينو په څېر د بدخشان، تخار او کندز طالبانو ځانګړی نقش درلود. د دې سيمو مسافر طالبان چې يوازې د کلمة الله د اعلاء په خاطر يې خپل کورونه پرې ايښي وو، د اسلامي امارت په جهادي صفوفو کې يې خدمت کاوه. د دوی د قربانۍ يوه عيني بيلګه دا ده چې په لوګر ولايت کې د بدخشان او تخار شهيد شوي طالبان ځانګړې هديره لري چې د اسلامي نظام لپاره يې ځانونه قربان کړي دي.

بله خبره دا ده چې که موږ د اسلامي امارت او مخالفو ټوپکيانو تر منځ د جګړې ماهيت و ارزوو، نو را معلومه به شي چې د دې جګړې ماهيت قومي يا نژادي نه و. بلکې جګړه د ارزښتونو پر سر وه. د شر او فساد ټوپکيانو شرعي حدود پايمال کړي وو. د الله تعالی د بندګانو حقوق يې ضائع کول، پر ځمکه يې فساد او منکرات خپرول.

د شرعي قانون د نفاذ مخنيوی یې کاوه او بالمقابل اسلامي امارت د جهادي ارمانونه د خونديتوب، شرعي قانون د نفاذ او له ځمکې د شر او فساد د محو کولو په مقصد قيام کړی و.

په همدې اساس هغه خلک چې له شرعي قانون څخه باغيان او فساد کوونکي وو، هغه که د هر قوم و په مخالف صف کې ودريدل، د کندهار، غزني، ميدان وردگ، کابل، مشرقي ولاياتو او ډيرو نورو سيمو ټوپکيان او مفسدين چې اکثره يې پښتانه وو د طالبان له راتگ وروسته له مسعود، اسمعيل خان او نورو مخالفينو سره ملگري شول. بالمقابل د شمالي ولاياتو ټول واقعي مجاهدين د اسلامي امارت ملگري شول. په دې اساس ويلی شو چې د دې جگړې ماهيت قومي نه و بلکې د شريعت غوښتونکو او فسادکارانو تر منځ جگړه وه.

په وروستيو کلونو کې د امريکايي يرغل په وړاندې د جهاد په مرحله کې د اسلامي امارت شموليت او په ټولو قومونو، ولاياتو او سمتونو کې ژور نفوذ نور هم روښانه شو. د امريکايي يرغل په وړاندې د اسلامي امارت تر بيرغ لاندې د هيواد په ټولو ۳۴ ولاياتو کې جهاد پيل شو.

د اسلامي امارت تر بيرغ لاندې په دې جهاد کې لکه څنگه چې د کندهار او پکتيا پښتانه مجاهدين برخوال دي، همداسې د د بدخشان او تخار تاجک، د فارياب او جوزجان ازبک، د نيمروز بلوڅ، دغه راز ترکمن، نورستانيان، پشه يان، عرب، گوجر وغيره د بيلابيلو قومونو او سيمو مجاهدين په کې پوره ونډه لري.

د ملا محمد عمر مجاهد يوه ستره کارنامه دا وه چې په هيواد کې يې د قومي نفاق فتنه انگيز بحث ورک کړ. د بيلابيلو سيمو مجاهدين يې تر يوه بيرغ لاندې را ټول کړل او په دې ډول يې نه يوازې هيواد له تجزيې وژغوره بلکې د ورونو مسلمانانو تر منځ د بدبينۍ عوامل يې هم خنثی کړل.

## د سخت دریځی یا افراطیت اتهام

د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې په اسلامي امارت یو بل تـور دا لګیږي چې د اسلامي نړۍ د نورو حکومتونو پـه نسبت یـې جـلا مفکـوره او پالیسي-درلـوده. مثلا خلک یې لمانځه ته دعوتول، د امر بالمعروف و نهی عن المنکر اداره یـې جـوړه کـړې وه، چې بیلابیـل دعـوتي او اصـلاحي فعالیتونـه درلـودل. ځینـي د اسـلام او اسـلامي حکومت له حقیقته ناخبره خلک د اسلامي امارت دا کارنامه د طالبـانو سـخت دریځـي بولي او طالبان په افراطیت تورنوي.

اما دا خلک له دې خبر نه دي چې اصلا د اسلامي حکومت اساسي وظائف کـوم دي؟ د اوسنۍ نړۍ په اکثره هیوادونو سیکولر یا په دیـن نـه ولاړ نظامونـه حاکمیت لـري. پـه سیکولر نظامونو کې د حکومت اساسي وظیفه تر ډېره حده مـادي پیشـرفت یـا د دوی په اصطلاح د خلکو لپاره د ژوند د سهولتونو برابرول او د مادي ژونـد د سـطحې لـوړول ګڼل کیږي.

اما په اسلام کې مادي ګټې او پرمختـګ دوهمـه درجـه ارزښـت لـري. ځکـه د اسـلامي حکومت او مسلمان حاکم اساسي دندې هغه امور دي چې الله تعالی د سـورة الحـج پـه ۴۱ نمبر آیت کې ورته اشاره کړې ده. الله تعالی فرمایي: ﴿الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾

ژباړه: دوی هغه خلک دي چې که موږ په ځمکـه کـې قـدرت ورکـړو ، لمـونځ تـرسره کوي، زکات ورکوي، د نیکي امر کوي او له بدي څخه ایسارول کـوي او د ټولـو چـارو خاتمه الله لره ده.

په دې آیت کریمه کې له تمکین او قدرت مونـدلو وروسـته د اسـلامي واکمنـو اسـاسي وظائف څلور شیان ذکر شوي دي. لمونځ، زکات، امر بـالمعروف او نهـی عـن المنکـر. له دې څلورو علاوه د اسلامي واکمن لپاره پنځمه مهمـه وظیفـه د عـدالت تـأمینول دي. الله تعالی فرمـایي: ﴿يَا دَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُم بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوَىٰ فَيُضِلَّكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ﴾ [سورة ص/۲۶]

ترجمه: اې داوده! موږ په ځمکه کې خلیفه ټاکلی یې نو د خلکو ترمنځ په حقه فیصله کوه او په هوس پسې مه ځه چې بیا به دې د الله له لارې واړوي.

نو ملا محمد عمر مجاهد که د لمانځه ډېر اهتمام ساته او حتی د لمونځونو د اقامې زده کړې او جماعت د ترویج لپاره یې ګڼ شمیر رسمي فرامین صادر کړي وو، دا کوم افراط یا سخت دریځي نه وه، بلکې د مسلمان حاکم په حیث د هغه اساسي وظیفه وه. لمونځ چې عماد الدین (د دین ستنه) بلل شوې تر ټولو مهم عبادت دی او په جماعت اداء کول یې دومره مهم دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو ټولو د لمانځه امامت خپله همیشنی وظیفه ګڼله.

د اسلامي امارت د رسمي جریدې ۷۸۸ فوق العاده ګڼه چې د امیر المؤمنین فرمانونو ته ځانګړې شوې، تر ټولو ډېر فرامین په کې د لمانځه په اړه دي، د دین اساسي عبادت لمانځه ته د ملا صاحب دومره توجه اصلا د صدر اسلام د صالحو خلفاوو سنت را ژوندي کول وو. په موطا امام مالک اول جلد شپږمه صفحه کې د عبدالله بن عمر له آزاد شوي غلام نافع څخه روایت دی چې فرمایي: أن عمر بن الخطاب رضی الله عنه کتب الی عماله أن أهم أمرکم عندی الصلوة. فمن حفظها و حافظ علیها حفظ دینه، و من ضیعها فهو لما سواها أضیع. ژباړه: عمر بن الخطاب خپلو والیانو ته ولیکل چې زما په فکر ستاسو په کارونو کې اهم ترین کار لمونځ دی، څوک چې د لمانځه ساتنه او پابندي وکړي هغه خپل دین وساته او څوک چې لمونځ ضائع (خراب) کړي نو هغه به نور کارونه تر دې ډېر خراب کړي.

د عمر فاروق رضی الله عنه دا توصیه کوم عام لیک نه و، بلکې یو رسمي فرمان و چې په هغه کې د لمانځه وختونه هم بیان شوي وو. دغه راز د ورپسې خلفاوو (عثمان بن عفان او علي رضی الله عنهما) په اړه هم داسې روایات شته چې د خپل خلافت په وخت کې به یې خلکو ته د اوداسه او لمانځه تعلیم ورکاوه. او دا ځکه چې لمونځ د مسلمان په ژوند کې ډېر مهم نقش لري، د لمانځه په اصلاح سره د مکلف انسان ټول ژوند او کړه وړه اصلاح کیږي، همدا لمونځ دی چې انسان له ناوړه کارونو څخه منع کوي او دا چې د سیاست یوه معنی د أمورو تدبیر او اصلاح دی نو ځکه مسلمان

حاکم باید د فردي او اجتماعي اصلاح په مقصد د لمانځه اقامه کولو او اصلاح ته ډيره توجه ولري.

په قران کريم کي ډير ځله له لمانځه سره متصل د زکات حکم هم بيانيږي، نو ځکه زکات هم همدومره مهمه فريضه ده او دا چې لمونځ د انسان روحاني روزنه کوي او زکات د فرد او ټولنې مالي کړنلاره اصلاح کوي، نو ځکه بايد مسلمان حاکم دې فريضې ته هم بشپړه توجه ولري.

د مسلمان حاکم له مهمو وظائفو بل هم امر بالمعروف و نهى عن المنكر دى. مسلمان حاکم په دې مکلف دی چې خپل رعيت د نيکيو او فلاح په خوا رهبري کړي او له بدو کارونو او تباهۍ څخه يې راوګرځوي چې همدا د امر بالمعروف و نهى عن المنكر معنی ده. اصلا امر بالمعروف و نهى عن المنكر په خپله درجه کې پر هر مسلمان فرض دی. الله تعالى فرمايي: ﴿كُنتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ وَتُؤْمِنُونَ بِاللهِ﴾ [آل عمرن/۱۱۰]

ترجمه: تاسو يو غوره امت ياست (له هغو نه) چې خلکو ته رابرسيره شوي دي چې د نيکۍ امر کوئ او له بديو ايسارول کوئ او په الله ايمان لرئ.

دغه راز رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: من رأى منكم منكراً فليغيره بيده، فإن لم يستطع فبلسانه فإن لم يستطع فبقلبه وذلك أضعف الإيمان. رواه مسلم.

ژباړه: له تاسو که څوک بد کار ويني نو په لاس دې منع کړي که د لاس وس يې نه وی په ژبه دې منع کړي او که د ژبې وس يې نه وي په زړه کې دې بد وګڼي او همدا د ايمان تر ټولو ټيټه مرتبه ده.

په فتاوای عالمګيري ۵ جلد ۳۵۳ مخ کې راغلي دي: و يقال: الأمر بالمعروف باليد على الأمراء، و باللسان على العلماء و، و بالقلب لعوام الناس.. يعني په لاس امر بالمعروف د حاکمانو کار دی، په ژبه د علماوو کار دی او په زړه کې بد ګڼل د عامو خلکو کار دی.

نو ملا محمد عمر مجاهد چې مسلمان حاکم و، دا شرعا وربانديې لازمه وه چې په لاس او ځواک سره خلک له بدو کارونو منع کړي او ښو کارونو ته يې رهبري کړي. امر بالمعروف و نهی عن المنکر د مسلمان حاکم اساسي وظيفه ده، له دې پرته په ټولنه کې فساد او ګډوډي خپريږي. لکه څنګه چې په غربي سيکولر حکومتدارۍ کې کارونه په قانوني او غير قانوني تقسيم شوي دي او سياسي واکمن مکلف دي چې قانون عملي کړي او د بې قانونۍ مخه ونيسي. همداسې په اسلامي شريعت کې ټول امور په حلال او حرام يا روا او ناروا ويشل شوي دي او مسلمان حاکم مکلف دی چې خلک له حرامو څخه منع کړي او د روا کارونو ښودنه ورته وکړي. دا کار نه افراطيت دی او نه هم سخت دريځي بلکې په اسلامي فرهنګ کې د مسلمان حاکم اساسي دنده او مکلفيت دی.

دغه راز مسلمان حاکم په دې مکلف دی چې عدالت تأمين کړي، شرعي حدود جاري کړي او د شرعي قضاء له مخې هر چا ته خپل حق وسپاري. د اسلامي امارت په واکمنۍ کې حدودو اجراء کول، له غلو او قطاع الطريقو لاس او پښې غوڅول، دغه راز قاتلان په عام محضر کې قصاص کول د اسلامي عدالت تر ټولو ښکاره نمونې وې. د همدې حدودو په برکت په هغه هيواد کې د نړۍ تر ټولو ډاډمن امن راغی چې تر دې وړاندې په نړيواله کچه په بې امنيتۍ او ګډوډۍ کې بې ساری و. د حدودو اجراء او د اسلامي عدالت پلي کول د ملا محمد عمر مجاهد کوم شخصي ابتکار نه و، بلکې همدا د اسلامي شريعت غوښتنه وه چې ملا صاحب يې د مسلمان حاکم په حيث په تنفيذ مکلف و.

هغوی چې اسلامي عدالت په سخت دريځۍ تعبيروي، ښايي د اسلام له حقيقت څخه به ډېر ناخبره او يا به هم د دې مبارک دين د قوانينو په وړاندې د عناد په مرض مبتلاء وي.

## د بتانو ماتولو موضوع

په ملا محمد عمر مجاهد يو انتقاد دادی چې د نوموړي په امر په باميان کې د بودا د بتانو په شمول پخوانۍ مجسمې ماتې شوې. دا موضوع يوه له هغو موضوعاتو څخه وه

چې کفري نړۍ ورباندې ډېره غوغا جوړه کړه. خو ملا محمد عمر مجاهد د هغوی فشار ته تسليم نه شو او د اسلامي افغانستان خاوره يې د کفر او شرک له آثارو څخه تصفيه کړه.

دا چې ملا صاحب د بلې هرې مسئلې په شان دې موضوع ته هم له ديني نقطه نظره کتل نو که موږ د قرآن کريم او احاديثو پلټنه وکړو او يا د اسلامي تاريخ مطالعه کړو، نو را معلومه به شي چې د ملا صاحب دا کار که څه هم د اسلام د دښمنانو په مزاج برابر نه و اما له اسلامي لارښوونو سره يې بشپړ تطابق درلود.

د الله تعالی په نزد تر ټولو ستره گناه له الله سره شريک نيول دي او دا چې بتان او تماثيل د الله تعالی د شريکانو په حيث لمانځل شوي نو ځکه الله تعالی ته ډېر مبغوض دي او پيغمبرانو ته يې د ماتولو امر شوی دی. په قران کريم کې د ابراهيم عليه السلام لخوا د بتانو د ماتولو واقعه، دغه راز د موسی عليه السلام لخوا د سامري د بت سوځولو او بيا ذره ذره کولو واقعات بيان شوي دي. الله تعالی د سامري د بت په واقعه کې له موسی عليه السلام څخه حکايت کوي چې ويې ويل: ﴿وَانْظُرْ إِلَى إِلَهِكَ الَّذِي ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا لَنُحَرِّقَنَّهُ ثُمَّ لَنَنْسِفَنَّهُ فِي الْيَمِّ نَسْفًا﴾[طه/۹۸]

ژباړه: او خپل هغه خدای (بت يا معبود) ته دې وگوره چې ته يې په عبادت ټينگ ولاړ وې، موږ به هغه وسوځوو او ذره ذره به يې په سيند کې وغورځوو.

همدا شان په احاديثو کې راځي چې زموږ د پيغمبر محمد صلی الله عليه وسلم يوه مهمه وظيفه د بتانو ماتول و. عن عمرو بن عبسة انه قال للنبى ﷺ: وَبِأَيِّ شيءٍ أَرْسَلَكَ، قالَ: أَرْسَلَنِي بصِلَةِ الأرْحَامِ، وَكَسْرِ الأوْثَانِ، وَأَنْ يُوَحَّدَ اللَّهُ لا يُشْرَكُ به شيءٌ. . . رواه مسلم.

له عمرو بن عبسة رضی الله عنه څخه روايت دی دی وايي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ته مې وويل: ته د کوم کار لپاره راليږل شوی يې؟ ځواب يې راکړ، د خپلوي پاللو او بتانو ماتولو او د دې لپاره چې په واحد خدای جل جلاله عقيده وساتل شي او هيڅ شريک ورسره ونه نيول شي.

همدا راز په صحیح البخاري صحیح مسلم، نسائي، طبقات ابن سعد او د احادیثو په نورو کتابونو کې روایات دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله مکه فتح کړه، نو بتان يې مات کړل،دغه راز یې جریر بن عبدالله، خالد بن ولید، مغیرة بن شعبة، ابو سفیان بن الحرب، علي بن ابی طالب، عمرو بن العاص او طفیل بن عمرو رضی الله عنهم یمن، نخله، طائف، الفلس او نورو ځایونو ته ولیږل تر څو د مشرکینو مشهور بتان مات کړي.

که په تاریخي لحاظ وګورو هم زموږ په اسلامي هیواد کې د بت شکنۍ ډیرې بیلګې وینو. په معجم البلدان دوهم ټوک ۴۳۴ ص کې راغلي چې د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه په زمانه کې کله چې د عبد الرحمن بن سمرة رضی الله عنه په مشرۍ مجاهدینو د افغانستان سیستان نومې سیمه فتحه کړه، نو هلته د زمینداور په سیمه کې خلکو په یوه غره باندې د سروزرو بت ایښی و، نو عبدالرحمن بن سمرة د هغه لاسونه غوځ کړل او بیا مجاهدینو هغه ټوټه ټوټه کړ.

دغه راز ابن الجوزي په تلبیس ابلیس ۷۷ صفحه کې وايي چې کله مسلمانان په لومړي ځل بلخ ته ورسیدل نو هلته یې د بلخ د خلکو بت مات کړ. لوی مؤرخ ابن کثیر په البدایة والنهایة کې لیکي چې د افغانستان مشهور حاکم سلطان محمود غزنوي چې په ۳۱۶ هـ کال کې په هند کې غزا کوله نو هلته یې د سومنات په نوم مشهور بت مات کړ.

ځینې خلک دا اعتراض کوي چې که د بامیانو د بتانو ماتول پر ځای کار وای نو باید دافغانستان پخوانیو مسلمانو حاکمانو دا کار کړی وای. دا سوال یوازې د بامیانو د بت په اړه نه بلکې په مصر کې د فرعوني اهرام او د شرک او کفر د نورو پخوانیو اثارو په اړه هم کیږي. علامه ابن خلدون په خپل کتاب مقدمه کې په صفحه ۳۸۳ کې دې سوال ته په ځواب کې ویلي چې له اسلام نه وړاندې د جهالت د وخت ځینې بتان او آثار د ډیرو کلونو او حتی پیړیو په ترخ کې دومره محکم جوړ شوي چې یو مخ ورانول یې آسان کار نه و. د بیلګې په توګه عباسي خلیفه هارون رشید اراده وکړه چې د کسری ایوان ونړوي، دغه راز مأمون په مصر کې د فرعوني اهرامو د نړولو اراده وکړه، خو له ډیرو هڅو سره سره هم ونه توانیدل چې یو مخ یې ونړوي. که د بامیانو د بتانو

تصویرونه وکتل شي معلومیږي چې له طالبانو وړاندې یې هم د نړولو هڅې شوې وې، ځکه پښې او د بدن ځینې برخې یې خرابې شوې وې،د تاریخي روایاتو له مخې د اموي خلیفه ولید بن عبدالملک، اورنگزیب عالمگیر او په وروستیو کې د امیر عبدالرحمن لخوا هم د بودا مجسمو د نړولو هڅې شوې وې او ځینې برخې یې له منځه وړل شوې وې اما څرنگه چې دا بتان په ډیرو کلکو ډبرو کې کیندل شوي وو نو ځکه یې د پخوا زمانې په وسائلو نړول آسانه کار نه و.

نو خلاصه دا چې ملا محمد عمر مجاهد د بتانو د نړولو موضوع ته له دیني زاویې کتل او له دیني اړخه د بتان نړول یو پر ځای او غوره تاریخي کار و چې په دې ډول ملا صاحب د ابراهیم علیه السلام،موسی علیه السلام، رسول الله صلی الله علیه وسلم، علي بن ابي طالب، خالد بن ولید، عمرو بن العاص، عبد الرحمن بن سمرة رضی الله عنهم او په افغان تاریخ کې د سلطان محمود غزنوي رحمه الله کارنامه را ژوندۍ کړه. د ایمان او توحید خاوندان یې خوشال او د کفر، شرک او فسق پیروان یې خوابدي کړل.

هغه وخت چې د بودا بتانو د نړولو لپاره تیاری نیول کیده د امریکا په نیویارک کې د مشهور موزیم میترو پولیتن لخوا طالبانو ته وړاندیز وشو چې دغه بتان دې د ماتولو په ځای ورباندې خرڅ کړي. خو ملا صاحب دا غوره بلله چې په تاریخ کې د بت فروش نه بلکې د بت شکن په حیث یاد شي.

****

# پنځم فصل

## د امارت مقام او د امیرالمؤمنین روزمره فعالیت

ملا محمد عمر مجاهد اسلامي واکمني د افغانستان په جنوب کې له کندهار ښار څخه اعلان کړه او د امریکایي یرغل تر وخته په کندهار کې پاته شو چې له همدې ځایه یې د ټول افغانستان نظامي او ملکي چارې کنټرولولې.

د افغانستان اوسنۍ پلازمینه کابل دی، وزارتونه، عمومي ریاستونه، ستره محکمه او د حکومت اجرائیه دستګاه که څه هم په کابل کې وه خو بیا یې هم مهمې او د امارت مقام اړوند چارې خپله د ملا محمد عمرمجاهد لخوا اداره کیدلې.

دا چې د طالبانو اسلامي تحریک له کندهار څخه راپورته شو، د تحریک اکثره نظامي مشران هم د کندهار او شاوخوا ولایاتو څخه وو، اکثره نظامي ډلګیو په کندهار کې خپلې نمایندګۍ درلودې او له همدې ځایه به یې تشکیلات کیدل. بله دا چې د اسلامي امارت د وسلو او پوځي امکاناتو تر ټولو سترې زیرمې هم په کندهار کې وې. د دې لپاره چې د مجاهدینو تشکیلات او رهبري په سمه توګه ترسره شي، ملا صاحب د کابل پر ځای په کندهار کې اوسیدل غوره ګڼل.

ملا صاحب د امارت د واکمنۍ په ټوله موده کې کابل ته یوازې یو ځل څو ورځنی سفر وکړ، ښایي د امارت په مقام کې د ورځنیو چارو ډیربښت و چې په وروستیو کلونو کې ملا صاحب حتی د کندهار ځنګلورو ولایاتو ته هم ډېر سفر نه کاوه او ټول وخت یې په کندهار کې په خپل میشت ځای او کار ځای (د امارت مقام) کې تېرېده.

### د امیرالمؤمنین دفتر او عامه مراجعین

ملا محمد عمر مجاهد د تحریک له پیل نه بیا د کندهار د نیولو تر وخته کوم معلوم دفتر نه درلود. دا وخت د ده کور د کندهار د میوند په سنګ حصار سیمه کې په

پخواني ځای کې و او ورځنی مصروفیت یې د نظامي چارو سمبالول او تحریک ته د ملاتړو او نویو ګډونوالو جلبول و.

د کندهار له فتحې وروسته ملا صاحب د کندهار ښار د ولایت په مقام کې میشت شو او له همدې ځایه یې په رسمي توګه د تحریک د مشر په حیث کار پیل کړ. په دې وخت کې د تحریک عالي شورى هم د ولایت په مقام کې ترسره کیدله چې زیاتره غونډې به یې د ډیرو مصروفیتونو له امله د ورځې پرځای د شپې مهال کیدلې. ملا صاحب د نظامي مصروفیت له امله کله کله جنګي کرښو ته تلو او مصروفیت یې هم تر ډیره حده نظامي و.

په دې مرحله کې د ملاصاحب د ملاقاتونو د تنظیم او عرائضو لپاره کوم خاص ترتیب موجود نه وو. ملا صاحب چې د ولایت د مقام په کوم اطاق کې اوسیده هماغه یې دفتر هم و. کله چې به پر ځای و نو له سهاره تر ماښامه یې ملاقاتونه او د عرائضو کتل هم مهاله ترسره کول. ملکي، نظامي عرائض او ولسي درخواستونه ټول مخامخ دفتر ته راتلل او ملا صاحب به ځای پر ځای اجراء کول. په دې مرحله کې مراجعینو کولای شوای پرته له خنډ او ځنډ له ملاصاحب سره ملاقات وکړي.

په همدې مرحله کې د ۱۳۷۴ لمریز کال د سرطان د میاشتې په دوهمه نیټه د ملا صاحب د لزومدید له مخې مولوي وکیل احمد متوکل چې تر دې وړاندې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور رئیس و د ولایت په مقام کې د عالي شورا د مشاور او د ملا صاحب د دفتر د منشي په حیث وټاکل شو. متوکل صاحب د ملا صاحب دفتر په منظم ډول فعال کړ. په دې وخت کې به ملا صاحب چې له نظامي چارو او ملاقاتو څخه فارغ شو راغلي عرایض به ورته وړاندې کیدل او احکام یې صادرول.

لږ وخت وروسته چې د ملا صاحب د دفتر کارونه زیات شول ملا عبدالسلام کاتب هم په دفتر کې وټاکل شو چې بیا تر پایه د ملا صاحب د ځانګړي محرر په حیث د امارت په مقام کې په وظیفه بوخت و. د دفتر کارکوونکو به په روزمره شکل د حکومتي او غیر حکومتي عارضینو عرائض تسلیمول، ترتیبول او وروسته به یې د ملا صاحب د هدایت سره سم احکام وربانديې لیکل.

دا مرحله او بیا هغه وخت چې د امارت دفتر د کندهار ارگ ته انتقال شو، د ملاصاحب د تر ټولو زيات د مصروفيت کلونه وو. ځکه په دې مرحله کې په خو خواوو کې نظامي عملياتو جريان درلود او مجاهدينو به هره شيبه د اکمالاتو، د تازه دمو ځواکونو د لېږلو او يا نورو ضروریاتو غوښتنې کولې او یا به یې د نظامي پرمختګونو په اړه هدایات غوښتل. دغه راز هغه وخت امارتي اداري او محاکم بشپړ نه و فعال شوي. د ملکي چارو احياء د امارت د مقام ډېره توجه غوښته، ډېرو خلکو خپلې حقوقي لانجې هم د امارت مقام ته راوړې او ملاصاحب چې د عارضينو خبره یې له نظره نه غورځوله، شخصا به یې عریضې قبلولې او د حل او فصل لپاره به یې کوښښ کاوه. ځینې موضوعات به همدلته حل کیدل، ځینې لوی موضوعات به تر امر ثاني پورې معطل کیدل تر څو د امارت محاکم ثلاثه په سمه توگه فعال شي او ځینې به یې په اختصاصي ډول د تکړه علماء کرامو هیئت ته سپارل تر څو یې حل راوباسي.

کله چې دفتر د ولایت له مقام څخه د کندهار ارگ ته انتقال شو، نو دغه وخت د ارگ د داخلي دروازې سره یو امنیتي گروپ ځای په ځای شو چې د دروازې امنیت بې ساته. دغه ځای په نظام قراول ونومول شو. په دې وخت کې به عارضینو مخامخ ملا صاحب ته عریضه نه وړاندې کوله، بلکې د نظام قراول مسؤلینو ته به یې لیکل شوې عریضه سپارله او د یوه خاص مسؤل شخص په واسطه به عرائض ملا صاحب ته رسیدل. ولسي عرائض به جمع کیدل او سهار به تر ټولو مخکې په یو ځای ملا صاحب ته اینښودل کیدل چې تر اجراء وروسته به بیرته د نظام قراول مسؤلینو عارضینو ته سپارل. نور ملکي او نظامي درخواستونه به د ورځې په جریان کې تر غرمې او ماښامه ملا صاحب ته وړاندې کیدل او که به ملا صاحب به دفتر کې و نو د ماښام د خوب تر وخته یې د عرائضو او مکتوبونو کتلو او اجراء ته دوام ورکاوه.

د یادونې وړ ده چې امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد ته د درخواست یا عریضې وړاندې کولو کوم خاص شرط او قید نه درلود. هر چا کولای شوای د هر وړ موضوع په اړه خپل غږ تر امیر المؤمنین ورسوي. چې په مقابل کې ملا صاحب لیکلی هدایت

يا حکم ورکاوه، يا به شفاهي هدايت ورکول کيده او که به عريضه د اجراء وړ نه وه نو معذرت خواهي به ورته ليکل کيدله.

د پلازمېنې کابل له نيولو وروسته د ملا صاحب د دفتر کارکوونکي نور هم زيات شول، چې ورسره د دفتر په اداري کارمندانو کې هم زياتوالی راغی. د ارتباط خارجه څانګه دغه راز د مالي امورو د تنظيم لپاره ځانګړې شعبه فعاله شوه چې د امارت د مقام لخوا د ورکول کيدونکو پيسو د حسابونو د ثبت او سجل مسؤليت يې درلود. دغه راز په نظام قراول کې د مراجعينو د هوساينې لپاره داسې نظم رامنځته شو چې د حکومتي او ولسي-مراجعينو لپاره ځانګړې لارې او انتظارګاوې جوړې شوې او د ښځينه عارضينو لپاره د ستر او حجاب له رعايت سره د عرائضو د تسليم خاص ترتيب رامنځته شو.

دغه وخت ملا صاحب د عامه عرائضو کتلو ته له سهار تر غرمې رسمي وخت وټاکه. له هغه وروسته يې يوازې عاجل او ضروري عرائض اجراء کول او نور وخت يې له ملکي او نظامي مسؤلينو سره په ليدو کتو، دغه راز له علماء کرامو، قومي مشرانو، د ټولنې له بيلابيلو اقشارو او کله ناکله له بهره راغليو وفدونو سره په ملاقاتونو تېريده او په عين حال کې به يې د لويې مخابرې له لارې د جهادي سنګرونو له مجاهدينو او نظامي مشرانو سره هم احوال اخيست او د هغوی له حاله يې ځان باخبره ساته.

کله چې د ملا صاحب په کور دروند انفجار ترسره شو، نو د امنيتي ملحوظاتو په خاطر څه وخت ملا صاحب خپل کور ته نږدې يو سرای د دفتر په حيث انتخاب کړ. خو عرائض د پخوا په څير د ارګ په نظام قراول کې تسليميدل او له اجراء وروسته همالته خلکو ته سپارل کيدل. ملا صاحب دلته شاوخوا يو کال تېر کړ. تر څو نوی دفتر او د امارت مقام جوړ شو. وروستی يو نيم کال چې ملا صاحب د امارت په نوي جوړ شوي مقام کې اوسيده، بيا هم عرائض په پخواني ترتيب د ارګ په نظام قراول کې اخيستل کيدل او په هماغه ترتيب اجراء کيدل. دغه وخت چې نظامي فعاليتونه تر پخوا کم شوي وو، ورسره د امارت دفتري امور هم خپل منظم چوکاټ ته لويدلي وو، نو ځکه د ملاصاحب مصروفيت او ستړيا تر پخوا کمه شوې وه. د امارت د واکمنۍ وروستی يو نيم کال د ملاصاحب لپاره نسبتا د هوساينې وخت وو.

**په اونۍ کې شپږ شبانه روزه مصروفیت**

د ملا صاحب کور د تحریک له پیل نه بیا تر یوه کال پورې په پخواني ځای د میوند په سنګ حصار کې و، د هرات له فتحې وروسته یې کور د کندهار د نساجي سیمې ته راووست او وروسته یې د کندهار ښار د والي کوټې او میخانیکي لیسې تر منځ حکومتي ځای د کور لپاره انتخاب کړ چې همدلته وربانديې درونـد انفجار هم ترسره شو. تر انفجار وړاندې د ملا صاحب کور او دفتر همیشه سره لرې و، په دې موده کې چې د اسلامي امارت د واکمنۍ اکثره موده وه ملا صاحب په اونۍ کې یوازې یوه شپه کور ته تلو او د اونۍ نورې شپږ ورځې او شپې یې ټولې په دفتر او کارځای کې تیرولې.

د ملا صاحب نږدې ملګري وايي چې هغه هر وخت کار ته اماده و، تردې چې په نیمه شپه به هم د مخابرې په خصوصي نمبر کې وربانديې غږ وشو بې ځوابه یې نه پریښود.

د ملا صاحب د امنیتي مسؤلینو له جملې یو ملګری وايي ملا صاحب د امارت له نورو چارواکو سره د رابطې بیلابیل نمبر درلودل چې په دې کې یو نمبر د اول نمبر مخابرې و چې د کندهار ښار په سطحه له خاصو کسانو سره و. یوه ورځ د کندهار والي ملا محمد حسن رحماني او ملګري یې پنجوایي ته تللي وو او د بیرته راتګ په مهال د شپې ناوخته د پنجوایي په دوراهي امنیتي مسؤلینو ځکه درولي وو چې د شپې نوم ورسره نه و.

د شپې دوه بجې وې چې والي صاحب په اول نمبر کې په امنیه قومندان حافظ عبدالمجید غږ وکړ، په اول غږ باندې چا ځواب ونه وایه خو چې دوهم غږ یې وکړ، ملا صاحب غږ وکړ او پوښتنه یې وکړه چې څه مشکل دی. هغه ورته ستونزه یاده کړه او وروسته ملا صاحب د امنیت له طالبانو سره خبره وکړه او والي صاحب ته یې لاره ورکړه. داسې مثالونه نور هم شته چې له دې څخه معلومیده چې نوموړی د شپې هم غافل نه و.

**له سهاره تر ماښامه**

ملا صاحب ته راتلونکې عرایض یو ډول نه وو بلکې هر چا هـر ډول عریضـه د امـارت مقام ته وړاندې کوله، لـه ملکـي عرایضـو، شـکایاتو، د دعـواوو پـه اړه د استیناف یـا د محکمې د تبدیل غوښتنلیکونه، د نظامي مسؤلینو شکایات او غوښتنلیکونه، د زخمیـانو، فلج شـویو مجاهـدینو او عـامو خلکـو د مـالي مرستې غوښـتنلیکونه او نـور ډول ډول عرایض د امیرالمؤمنین دفتر ته راتلل. زیاتره ولسي عرایض د ملا عبدالسلام کاتب لخوا امیرالمؤمنین ته وړاندې کیدل او اوامر وربانډې لیکـل کیـدل، د نظـامي عرایضـو کـار د ملا عبدالاحد جهانګیروال صاحب او د مالي او نقدي کومک د عرایضـو کـار د حـافظ عبدالغني صاحب په غاړه و.

له دې برخې سره په څنګ کې د لـویې مخـابرې ځانګـه وه چې مسؤلیت یـې د مـلا حیات الله آخند (نصرت حـاجي لالا) په غاړه و د دې مخابرې له لارې د هیواد لـه ګـوټ ګوټ نه له جنګي کرښو او نظـامي مراکـزو څخـه نظـامي مشـرانو او لـه ولایـاتو څخـه والیانو لـه ملاصـاحب سره اړیکـه نیولـه او د خپلـو ورځینـو چارو پـه اړه یـې هـدایات اخیستل. نوموړی په ورځني شکل د هیواد پـه ټولـو برخـو کې لـه نظـامي قومنـدانانو او جنګي کرښو له مسؤلینو سره په رابطه کې و، ورځني ملاقاتونه یې هـم زیـاتره لـه نظـامي مسؤلینو سره و.

یوه بله شعبه چې د ملا صاحب ورځني کار ورسره اړیکه درلوده هغـه د سید طیب اغا تر مشرۍ لانـدې هغـه شـعبه وه چې د بهرنیـو اړیکـو، اعـلام او اداري امـورو د تنظیم مسؤلیت یې درلود. دا شعبه د ځای په لحاظ د امیرالمؤمنین له دفتر نه جلا خـو ورځنـی کار یې ورسره تړلی و. د دې ځانګې لخـوا لـه امیرالمـؤمنین سره د د داخلي او خـارجي علـماء کرامـو، سـیاسي مشـرانو، یـا د امـارت د ملکـي مسـؤلینو او وزیرانـو ملاقاتونـه تنظیمیدل. دې ځانګې د امیرالمـؤمنین رسـمي بیانـات او اعلامیې هـم ترتیبولې چې د ملاصاحب له تصویب وروسته به رسنیو ته لیږل کیدلې. که به کومې رسنۍ یا خبریال لـه ملا صاحب سره د مرکې غوښتنه درلوده هم د همدې شعبې لـه لارې یـې رابطـه کولـه.

دغه راز هغه ځانګړي خطونه چې ملاصاحب د نورې ځينو مشـرانو تـه ليږل د همدې ځانګې لخوا يې د استولو کار ترسره کيده.

په پلازمينه کابل کې د مرکزي حکومـت پـه خـاص ډول د وزيرانـو شـورى پيشنهادونه، مصوبات، عرائض يا نور ليکونه چې د اداره امور لخوا د اميرالمـؤمنين د دفتر پـه ادرس ليږل کيدل په کندهار کې د همدې ځانګې لخوا ترلاسه کيدل او بيا د نهـايي تائيد لپاره ملاصاحب ته وړاندې کيدل چې له توشيح وروسته د اړتيا په صورت کې بيرته کابل ته استول کيدل. د دې ځانګې په دفتر کې يو ځانګړی بخش د مرکز الاعلام تر نوم لاندې رسنيز فعاليت درلود. د مرکزالاعلام لخوا په عربي او انګليسي ژبـو د (الامـارة الاسلامية) په نوم مياشتنۍ مجله چاپيدله.

## هميشنی پوځي قوماندان

دا يو منل شوی حقيقت دی چې د واک او ځـواک د اکتسـاب او دفـاع پـه مبـارزو کې مهم او ټاکونکی عامل پوځي يا نظامي قوت دی چې پـر ارزښـت يـې سـترګې نـه شي پټيدای. زموږ دين اسلام د وخت دوديزه وسـله يـا جنګـي وسـيله (غشي-ويشـتل) پـه (قـوت) سره تعبيـروي. همـداراز د رسـول الله صـلى الله عليـه وسـلم جهـادي ژونـد او له رحلت وروسته ترې د پاته شويو پوځي وسائلو لکه تورو، نيزو، ليندېو او ډالونو تنوع او ډيرښت موږ ته راښيي چې پوځي اړخ ته توجه د يوه نظام يا خوځښت د بقـا او پرمختيا لپاره څومره اړينه مسئله ده.

ښايي د همدې اهميت پيژندنې اثر به و چې ملا محمد عمر مجاهد د خپـل زعامـت پـه مهال ډيره توجه نظامي اړخ تـه درلـوده او ورځنـۍ بوختيـا يـې د يـوه سياسي مشـر پـه نسبت تر ډيره د يوه نظامي قوماندان په څير وه.

که څه هم په وروستيو کې د اسلامي امارت د دفاع وزارت لخوا د منظم پـوځ د جوړولو پروګرام د حربي ښوونځي او حربي پوهنتون د روزنيزو پروګرامونـو پـه توسـط پيـل شـو، خو له لويه سره د اسلامي امارت پوځي تشکيلات له بيلابيلو ډلګيو څخه جوړ شوي وو چې د ډلګی مشر په نوم به يې يو تن مسؤل او نـور تـر امـر لانـدې افـراد وو او ډلګی

مشر به په مخامخ ډول امیرالمؤمنین ته مسؤل و. د پوځي ډلګیو جوړول، انحلال یا په نورو کې مدغمول، د هغوی د مشرانو ټاکل او عزل کول، هغوی ته د وظیفوي استقامتونو ټاکل او تقریبا اکثره چارې یې مخامخ تر امیرالمؤمنین پورې تړلې وې. که ووایو چې ملا محمد عمر مجاهد د طالبانو د تحریک ټول ډلګی مشران چې شمیر یې تر سلګونو اوښت هر یو په نوم او څېره پېژاند نو مبالغه به نه وي.

ملا صاحب له مهمو نظامي ډلګی مشرانو سره مستقیمه، ژوندۍ او حتی په خاصو حالاتو کې د ورځې او ساعتونو په حساب رابطه درلوده، د کټونکو په باور د ملا محمد عمر مجاهد د بریا له رازونو یو دا و چې نوموړي د یوه پوځي قائد په حیث د نظامي استعداد درلودونکي خلک ډېر ښه پیژندل او په اغیزناکه توګه یې استخدامول. نوموړي چې کوم کسان د پوځي مشرانو او مسؤلینو په حیث تعین کړي وو تقریبا ټول یې په خپلو دندو کې بریالي وو. هغوی د دوستم غونډې له کمونیستي جنرالانو نیولې د افغانستان د کورنیو جګړو تر نورو تجربه کارو جنګیالیو پورې د افغانستان د پوځي ډګر نږدې ټول لوبغاړي د جګړې په ډګر کې مات او له صحنې وایستل.

که د طالبانو د پوځي برلاسي او فتوحاتو اصلي عامل د هغوی حقانیت، د ارمان او داعیې تقدس او له هغوی سره د الهي نصرت ملګرتیا وه د پوځي بریا د ظاهري عواملو له جملې تر ټولو بارز یې د پوځي تشکیلاتو تر شا د امیرالمؤمنین له حوصلې ډکه قومنده، بشپړ ملاتړ، هماهنګي او د هغوی کارنامو ته په درنښت کتل و چې مجاهدینو ته یې روحیه او انګیزه ورکوله او د جهاد په لاره کې یې له هیڅ راز قربانۍ څخه هم ځان نه دریغاوه.

په عادي حالاتو کې به ملا صاحب ماخستن له هغه وروسته د خوب او آرام بستر ته ځان سپاره چې یو ځل به یې د ټولو جنګي کرښو د وضعیت راپور ترلاسه او د هغوی د اکمالاتو یا نورو ضرورتونو د رفع کولو لپاره به یې لازم هدایات صادر کړل او کله به که طالبانو پر کومه خوا جنګي عملیات پیل کړي وو، د پرمختګ یا شاتګ په حال کې به وو او یا به هم چیرته محاصره او په سخت حالت کې وو په داسې حال کې به ملاصاحب خپله د لویې مخابرې له لارې له اړونده نظامي مشرانو سره په رابطه کې و

او شیبه په شیبه یې د هغوی حال اخیست او لازم هدایات به یي ورتـه کـول، د هغوی د ضرورتونو د رفع کولو هڅه به یې کوله او په خپله ژونـدۍ ملگرتیـا یـې د هغـوی مورال لوړ ساته.

له نظامي مجاهدینو سره د امیرالمؤمنین همدې همغږۍ که له یوې خـوا هغـوی د سترو فتوحاتو جوگه کول، له انحرافاتو او جنگي اشتباهاتو یې هـم سـاتل، بـل اړخ تـه یـې په سخت حالت کې هم هغوی په خپله خاصـه رهنمایـي لـه تلفـاتو او خطرونـو سـاتل. په ۱۳۷۶ لمریز کال کې چې طالبان د سالنگ له تونله ووتل تر پلخمري ورسیدل او بیا په مرکزي بغلان کې محاصره شول،د محاصره طالبانو له نظامي مشـرانو سره د ملا صـاحب همیشنی مخابروي ملگرتیا دوی د دې جوگه کړل چې په سخت حالت کـې خپـل نظم او جمعي حالت وساتي، روحیات ونه بایلي او د یوه پر ځای پلان په اساس کنـدز فتحه او د هوایي ډگر په نیولو سره د بشپړې محاصرې له حالته ځان وباسي.

په جگړه ایزو حالاتو کې له مجاهدینو سره د امیرالمؤمنین د همیشنی مخابروي ملگرتیا خبره دومره مشهوره وه چې حتی د اسلامي امارت مخالفین هم پرې خـبر وو. احمدشاه مسعود یو ځل په یوه وینا کې خپلو عسکرو ته چې د ده له اوامرو یې سرغـړاوه د پیغور په ډول ویلي وو چې ملا محمد عمر له کندهاره په تخار کې په طالب غږ وکړي او هغه یې په سر سترگو قبلوي او اطاعت یې کوي مگر تاسو مخـامخ زمـا اوامـر نـه منئ او په خپل سر ځغلئ.

د افغانستان په جگړه ایز تـاریخ کـې دا دود پاتـه شـوی چـې سیاسي مشـران لـه خپلو پوځي کسانو او جنگیالیو د محروقاتو په حیـث اسـتفاده کـوي، هغـوی د خپلـو سیاسي اهـدافو لپـاره اسـتخداموي او نـور ورتـه لازم التفـات نـه کـوي او نـه یـې هـم د قربـانیو قدرداني کوي. خو ملا محمـد عمـر مجاهـد چـې لـه لویـه سره یـې مبـارزه پـه دینـي او معنوي اساساتو ولاړه وه له خپلو جهادي ملگرو سره یې ژور عقیدوي تړون او اخـلاص درلود. لکه الله تعالی چې مجاهدین او غازیان تر نورو خلکو افضل بللي او فرمایلي یـې دي ﴿فضل الله المجاهدين على القاعدين اجرا عظيما﴾

ژباړه: الله تعالی فضیلت ورکړی مجاهدینو ته په ناستو خلکو په لوی اجر سره.

ملا صاحب هم نظامي مجاهدین تر نورو لوړ او معزز بلل، هغوی ته یې په اکمالاتو او اعزازاتو کې د اولیت حق ورکاوه، د هغوی شهیدان یې ډېر ځله د چورلکو په توسط تر کورونو رسول، د هغوی د بندیانو د ازادۍ او د زخمیانو د علاج لپاره یې ټولې ممکنه هڅې کولې تر دې چې په افغانستان او ګاونډیو هیوادونو کې د علاج نه کیدلو په صورت کې یې ځیني ټپیان حتی اروپايي هیوادونو ته لیږل تر څو یې سمه معالجه وشي. او د زخمیانو د تداوۍ د ځانګې مسؤلینو ته یې امر کړی و چې که د ډاکټر د نظر مطابق د یوه زخمي علاج ممکن وي د مصارفو پروا یې مه کوئ او هر ځای چې علاج کیدلای شي ورباندې علاج وکړئ. کوم کسان چې په پخواني یا د امارت د مرحلې په جهاد کې فلج شوي وو د امیرالمؤمنین لخوا د ګرځیدو لپاره موټر ورکول کیده.

ملا صاحب چې خپله یې عادي غذا خوراک وه او په ملکي اداراتو کې یې هم په ډوډۍ او میلمستیاوو کې د عادي خوراکونو د تیارولو دود عملي کړی و کله به چې د جهادي کربنو د مجاهدینو د متنوعو خوراکونو په اړه ورته شکایت راغی. نو ویل به یې (هغه څوک چې خپل سر یې د الله تعالی د دین د حاکمیت لپاره وقف کړی زه یې په هغه مصرف نه رانیسم چې په جنګي خط او سنګر کې یې کوي. هو که مو داسې ولیدل چې د بیت المال پیسې کور ته وړي بیا مو شکایت او اعتراض پر ځای دی)

ملا محمد عمر مجاهد ځکه همیشنی پوځي مشر بللی شو چې نوموړی د تحریک په پیل کې عملا د طالبانو نظامي مشر او د عملیاتو رهبري کوونکی و په مابیني مرحله کې یې د مخابرې له لارې له جهادي لښکرو سره همیشنی همغږي درلوده او له امریکایي یرغل وروسته یې چې کله واکمني د افغانستان تر جنوب پورې راټوله شوه په هماغه سخته مرحله کې یې یو ځل بیا په مخامخ ډول د مقاومت رهبري په غاړه واخیسته چې د دې وروستۍ مرحلې په تفصیلاتو به په خپل ځای کې بحث وکړو.

### د امیرالمؤمنین د نوي دفتر او میشت ځای تأسیس

ملا محمد عمر مجاهد ځینو بهرنیو او کورنیو لیکوالو چې د اسلامي امارت د مؤسس ملا محمد عمر مجاهد په اړه یې د ګوتنیونې او اعتراض بل مورد نه دی پیدا کړی نو یې دا خبره رابرسیره کړې

چې ملا صاحب د خپلې واکمنۍ په وروستيو کې د کندهار ښار په شمال لويديځ کې د ځان د هوساينې لپاره يو ستر کور او پراخ دفتر جوړ کړ او ډېر زياتې پيسې يې وربانديې ولګولې.

خو دا انتقاد کوونکي په دې اړه له ډېرو حقائقو ناخبره دي او حتی په دې هم نه پوهيږي چې د کندهار له ښاره بهر د دفتر او کور انتقال د ملا صاحب د ځان د هوسايي په خاطر نه بلکې د خلکو د امن او ژوند ساتلو په مقصد يو داسې اقدام و چې اصلي طراح يې ملا صاحب خپله نه بلکې د هيواد ګڼ شمير علماء کرام، مشران او نور هغه خلک وو چې د ملا صاحب ژوند او امنيت يې د افغان ولس لپاره د اهميت وړ بلل نو ځکه يې په ډېر اصرار سره دې ته اماده کړ چې د دغسې نوې ودانۍ د جوړولو اجازه ورکړي.

د افغانستان د حاکم په حيث دا د ملا محمد عمر مجاهد استثنائي افتخار دی چې د خپلې واکمنۍ په موده کې يې کله هم د مادياتو، ځمکو، پيسو او نورو مالي سرمايو د حصول او ساتلو کوښښ نه دی کړی.

ملا صاحب د امارت وخت کې او تراوسه هم په افغانستان کې کوم داسې کور، ودانۍ، دوکان يا بله سرمايه نه درلوده او نه يې لري چې دی يې شخصي- مالکيت ولري. کله چې د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د ملګرو ملتونو امنيت شورى د امارت په مشرانو بنديزونه ولګول په دې بنديزونو کې يو دا و چې د طالبانو د مشرانو بانکي سرمايې به کنګل کيږي. خو د امارت د مشر په حيث ملا محمد عمر مجاهد د افغانستان يا نړۍ په هيڅ بانک کې نقدي سرمايه نه درلوده.

د ملاصاحب په کور مشهوره هغه ودانۍ چې د امارت په وروستيو کلونو کې د کندهار ښار شمال لويديځ کې جوړه شوه، د ملا صاحب شخصي ملکيت نه و بلکې پردولتي ځمکه جوړه ودانۍ او د حکومت ملکيت ګڼل کيده.

## د کندهار ښار کې د ملا صاحب پر کور لویه چاودنه

د ملاصاحب د نوي دفتر او میشت ځای خبره له هغه ځایه راپیل شوه کله چې د ۱۳۷۸ لمریز کال د سنبلې په دوهمه نیټه (۱۲ / ۵ / ۱۴۲۰هق) په کندهار ښار کې د ملاصاحب د کور له خوا سره د موټر بم په توسط درنه چاودنه وشوه. دغه وخت د ملا صاحب کور له کندهاره د هرات په خوا د غزیدلي سرک سره نږدې د والي کوټې او میخانیکي لیسې تر منځ په دولتي ودانیو کې و. یوه ورځ ماښام مهال یو لوی باربري کراز موټر چې ظاهرا د تیلو بیلرونه په کې بار و (خو په حقیقت کې بیلرونه له انفجاري موادو ډک وو) چا راوستی او د عمومي جادې په غاړه یې د ملاصاحب د کور په برابري درولی دی. د موټرچلوونکو داسې ښودلې وه چې موټر خراب شوی نو یې د والي کوټې ساتونکو ته ویلي وو چې تاسو ورته پام کوئ موږ مستري راولو. هغو طالبانو هم د خپل صادقانه برخورد او حسن ظن په اساس وربانديې باور کړی و.

خو لږ ځنډ وروسته د ملاصاحب شخصي محافظین په موټر شکمن شوي نو یې د ښار د یوې حوضې د امنیت آمر ملا بخت محمد راغوښتی او له موضوع یې خبر کړی و. دا د اوني هغه شپه ده چې ملا صاحب هم په دې شپه له دفتره کور ته راغلی چې دې خبرې د دوی شک نور هم زیات کړی. ماخستن دوی هڅه کړې چې د نورو وسیلو په توسط موټر له دې ځایه بل ځای ته کش کړي په همدې وخت کې چې دوی د موټر په کشولو بوخت وو د شپې لس نیمي بجې وې چې موټر انفجار وکړ او په شاوخوا کې ګڼ کسان یې په شهادت ورسول.

د چاودنې په وخت ملا صاحب د چاودنې له ځای نه تقریبا ۹۰ متره لرې ځای کې و، دچاودنې د ځای او د ملاصاحب د کور ترمنځ څلور یا پنځه کوچني سرایونه چې د ملاصاحب ساتونکي په کې اوسیدل او یا یې هم د ورونو کورونه وو په بشپړ ډول ویجاړ شول. په چاودنه کې د ملاصاحب د دوو ورونو او یوه اخښي په شمول د ده یوولس ساتونکي هم شهیدان شول.

دغه راز د امنیت آمر ملا بخت محمد د لسو تنو ملګرو سره یو ځای شهید او د لسو شاوخوا ملکي کسان چې په لویه لاره د تګ راتګ په حال کې وو هم په شهادت

ورسیدل. چاودنه دومره زوروره و چې نږدې د آبرسانی د ریاست یوشمیر کارکوونکي او د والي کوټې څو ساتونکي یې هم شهیدان او ټپیان کړل.

دې چاودنې د ملاصاحب د شخصي امنیت په اړه جدي اندیښنې راپورته کړې او د اسلامي امارت مشران دې ته متوجه شول چې د ملاصاحب د امنیت په خاطر باید داسې اقدامات وکړي چې هم خپله ملاصاحب د دښمن له اذیت څخه خوندي شي او هم په ده د برید له امله عام خلک زیانمن نه شي.

ملا عبدالخالق خالد وایي چې تر انفجار وروسته ملا صاحب په پیل کې د نوي ودانۍ له جوړولو سره موافق نه و خو وروسته چې دیني علماء کرامو قناعت ورکړ او دغه اقدام یې له شرعي اړخه مهم مصلحت وباله نو بیا یې منلو ته اماده شو. په دې ډول د امیرالمؤمنین د دفتر او کور په نوم د دغې ودانۍ لپاره د کندهار ښار څخه د شمال لویدیځ اړخ ته د ارغنداب ولسوالۍ ته د تللې لارې په اوږدو کې د پیلکو سیمه چې د غره په لمن کې هواره ځمکه وه په نښه شوه. د غوره شوي ځای سره نږدې نورې ودانۍ نه وې په شاوخوا یې غونډۍ وې چې په امنیتي لحاظ یې اهمیت درلود. دغه راز د دغه دفتر په خوا یوه عمومي لاره ورغلې وه چې په ښه توګه څارل کیدلی شوای.

دغه ودانۍ چې د ملاصاحب کور، دفتر، مسجد، د امنیتي ساتونکو میشت ځایونه او نور ملحقات یې درلودل په پاخه او اساسي ډول جوړه شوه تر څو د تیر په شان د قوي انفجار یا حملو په وړاندې مقاومت ولري. د دې ودانۍ ودانیز کارونه د امریکا له یرغل نه څه باندې یو نیم کال وړاندې پای ته ورسیدل او ملا صاحب ورته خپل کور را انتقال او همدلته یې دفتري چاري پیل کړې. تردې چې امریکایانو په افغانستان د یرغل په لومړۍ شپه ورباندې برید وکړ چې د امریکایي یرغل لومړنۍ قرباني هم د ملا محمد عمرمجاهد تره ملا محمد حنیفیا اخند شو چې همدلته په شهادت ورسید.

نو بناء ویلی شو چې ملا محمد عمر مجاهد داسې څوک نه و چې د دنیایي هوس او عیش د کوښښ کولو شک ورباندې وشي. هغه خپل عمر د یتیمتوب او طالبۍ ژوند راتیر کړی و. هغه د یو عام وګړي په حیث ژوند تیراوه او د ځان لپاره په امتیاز قائل نه و. هغه که څه هم د واکمنۍ په مهال په یوه پخه ودانۍ کې اوسیده مګر بیا هم له

خاورو سره آشنا و. د اسلامي امارت په مهال د افغانستان د زراعت وزير ملا عبداللطيف منصور وايي : يوه ورځ د ملا صاحب همدې نوي جوړ شوي ځای ته ورغلم، ملا صاحب بهر راوتلی و او ویل چې همدلته به مجلس او ملاقات وکړو. کله چې په سپيرو خاورو کيناست ما ورته د څادر غوړولو هڅه وکړه ملا صاحب زه منع کړم او و یې ویل (هیڅ فرق نه کوي څادر ضرور نه دی ځکه له همدې خاورو پیدا یو او آخر به هم همدې خاورو ته ورځو)

## بيلابيل موضوعات او د اميرالمؤمنين مواقف

### د افغانستان قضيه

کله چې د افغانستان قضيه يادوو مطلب مو د منځنۍ اسيا، جنوبي اسيا او منځني ختيځ تر منځ په ستراتيژيکه نقطه د پراته هيواد افغانستان د زعامت يا واکمنۍ د څرنګوالي هغه مسئله ده چې له تيرې نږدې نيمې پيړۍ راهيسې وربانـدې د بيلابيلو سياسي او فکري قطبونو تر منځ سياسي ناندرۍ او جګړييزې مقابلې رواني دي.

افغانستان ته په لومړۍ هجري پيړۍ کې د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خلافت په وروستي کال د اسلام لومړۍ وړانګه راولوېده، وروسته دا هيواد په تدريج سره اسلامي څه بلکې د اسلامي دعوت صادرونکی شو. افغان هغه قوم دی چې په ټوليزه توګه يې ټول اسلام منلی، نه يې د اسلام له کوم رکن نه انکار يا اعراض کړی او نه يې هم کوم فرد نامسلمان پاته شوی.

ملا محمد عمر مجاهد د افغانستان قضيې ته د شريعت او ياد شوي تاريخي شاليد له زاويې کتل. نوموړی په دې باور و چې افغانستان يوازې هغه مهال له استقرار، سولې او پرمختګه برخمن کيدلی شي چې دلته د سوچه قرآني هداياتو په اساس يو بشپړ شرعي نظام حاکم شي.

### له داخلي مخالفينو سره جوړ جاړی

لکه وړاندې چې هم یادونه شوې، د اسلامي تحریک د پیل له وخته د ملاصاحب پالیسي دا وه چې له جګړې وړاندې دې د مصالحې کوښښ وشي تر څو له جنګ پرته د حاکم هرج و مرج ټغر ټول او د هیواد صالح قوتونه تر یوه قومنده لاندې د یو متحد اسلامي نظام لپاره لاس په کار شي. دافغانستان په جنوب کې زابل، روزګان ولایتونه دغه راز د هلمند مرکزي سیمې، په مرکز او جنوب ختیځ کې غزنی، پکتیا، پکتیکا، خوست ولایات او نورې ډیرې سیمې له جګړې پرته له ځایي واکمنو سره د تفاهم او په تحریک کې د هغوی د شاملولو په طریقه د امارت تر واک لاندې راغلې. خو په نورو سیمو کې چې ټوپکیانو په جګړو ټینګار کاوو نو جګړې ورسره وشوې او نظامي شکست ورکړل شو.

د پلازمینې کابل له فتحې دوه کاله وروسته چې د افغانستان شمال او مرکزي سیمې هم د طالبانو تر واک لاندې راغلې او د هیواد په ۹۰٪ خاوره د اسلامي امارت تسلط ثابت شو، د هیواد په سطحه یوازې بدخشان ولایت او د پروان مربوط د پنجشیر درې شاوخوا سیمې د مخالفینو په لاس کې وې. په دې مرحله کې چې مخالفین ډېر په کمزورې حالت کې و اسلامي امارت بیا هم هڅه کوله له دوی سره خبرې او مذاکرات وکړي تر څو د اضافه جګړې لپاره بهانه او پلمه پاته نه شي.

په دې لړ کې ملا محمد عمر مجاهد د مذاکراتو لپاره بیا بیا باصلاحیته پلاوي وټاکل، د اسلامي کانفرانس او د افغانستان د ګاونډیو هیوادونو په منځګړتوب په اسلام اباد، عشق آباد، تاشکند، سویس او جده کې څو پړاویز مذاکرات ترسره شول. د دې مذاکراتو په لړ کې د دوه جانبه اعتماد د اعادې لپاره د بندیانو تبادله او لنډ مهاله ډزبندي هم عملي شوه. په دې سلسله کې له مخالفینو سره یو د پام وړ مذاکرات د ترکمنستان په پلازمینه عشق اباد کې وشول چې د طالبانو له اړخه د بهرنیو چارو وزیر مولوي وکیل احمد متوکل او د پلان وزیر قاري دین محمد حنیف د نماینده هیئت په حیث او د مخالفینو لخوا یونس قانوني، امر الله صالح او ځیني نور کسان د مذاکره کوونکي پلاوي برخوال وو.

د متوکل صاحب د څرګندونو له مخې دوی ته ملا صاحب د جوړ جاړي لپاره واک ورکړی و چې په بنسټ يې له مخالفينو سره موافقه وشوه تر څو يو داسې مشترک اسلامي نظام رامنځته شي چې په دری ګونو قواوو کې يې له دواړو خواوو څخه د تر لاس لاندې ولاياتو په تناسب اعضاء شرکت او سهم ولري. د اسلامي امارت استازو دا طرحه ومنله خو وروسته د مخالف لوري لخوا د دې توافق د سبوتاژ هڅه وشوه هغه دا چې هغوی شرط وړاندې کړ چې د دې نظام مشري به د پخواني مخلوع شاه محمد ظاهر په غاړه وي چې دا شرط نه يوازې د منلو وړ نه وو بلکې عملي هم نه وو.

له هغه وروسته د اميرالمؤمنين لخوا د اسلامي امارت د معارف د وزير ملا امير خان متقي په مشرۍ ځانګړی پلاوی مأمور شو تر څو له مخالفينو سره د جوړجاړي او مذاکراتو پروسه پر مخ يوسي. د متقي صاحب په مشرۍ پلاوي د ازبکستان په پلازمينه تاشکند کې له مخالف اړخ سره اوږدې خبرې وکړې خو دا چې مخالفين د نړيوالو قدرتونو او ځينو ګاونډيو هيوادونو په دام کې لويدلي وو او د افغان ولس د مصالحو په اړه يې فکر نه کاوه نو ځکه د جوړجاړي دې پروسې کومې نتيجه ورنکړه.

په مجموع کې له داخلي او بهرنيو دښمنانو سره د بيا بيا مذاکراتو او ځانګړيو پلاويو له تاکلو څخه څرګنديږي چې ملا محمد عمر مجاهد تفاهم او مذاکراتو ته د مسائلو په حل کې د يوه مهم اصل په نظر کتل او تولو مخالفينو سره مخامخ خبرو ته يې امادګي درلوده.

### د شمال غميزه او د مالک سره موافقه

د پلازمينې کابل له فتحې وروسته د اسلامي امارت په وړاندې يو مهم ګواښ په شمال کې د جنرال عبدالرشيم دوستم ځواکونه وو چې له فارياب نيولې تر سمنګان پورې يې د افغانستان په شمالي ولاياتو قبضه درلوده. دوستم چې زياتره ورسره د پخواني کمونيست رژيم پاتي شوني ملګري وو يو شمير کسان ورسره د قومي او سمتي ملاحظو له مخې هم يو ځای شوي وو.

د کابل له نیولو وروسته دوستم د بادغیس ولایت په جنګي محاذ کې له طالبانو سره جګړې پیل کړې، دغه راز په خنجان ښارګوټي کې له مسعود او کریم خلیلي سره په توافق د طالبانو په وړاندې د یوه جنګي ایتلاف د جوړولو په تعقیب یې له مسعود سره په کابل د مشترک برید پلان ترتیب کړ.

جنرال عبدالمالک چې د دوستم د مشهور قوموندان رسول پهلوان ورور او پدې وخت کې د جنبش ګوند د ارتباط خارجه مسؤل هم و د خپل ورور له وژل کیدو وروسته یې له دوستم سره اړیکي خرابې وې، نوموړي په پټه له طالبانو سره رابطه جوړه کړه او ویې ویل چې که طالبان یې مرسته وکړي د دوستم په خلاف به پاځون وکړي او طالبانو ته به شمال ته د ورتلو لاره هواره کړي.

ملا محمد غوث اخند چې هغه مهال د اسلامي امارت په کابینه کې د بهرنیو چارو سرپرست وزیر و وایي: جنرال مالک د غمي خان په نوم خپل یو استازی په پیل کې راستولی و او ویل یې چې موږ غواړو د دوستم په خلاف قیام وکړو او له تاسو سره یوځای شو. وروسته دا خبره د مالک لخوا بیا بیا مطرح شوه، مالک پیغام راستولی و چې زه غواړم له اسلامي امارت سره ایتلاف وکړم. موږ د مالک پیغام ملا صاحب ته ورساوه هغه وویل چې زه ایتلاف ته حاضر نه یم خو که له ایتلاف پرته مالک د دوستم په وړاندې له موږ سره همکاري کوي په دې ورسره خبرې وکړئ.

ملا محمد غوث اخند وایي زه او ملا عبدالرزاق بادغیس ته لاړو او هلته مو د مرغاب په سیمه کې د جګړې د کرښې په ساحه کې له مالک سره وکتل. مالک په پیل کې ویل چې زه له تاسو سره ملګری کیږم، دوستم ختموم خو تاسو به د څو ولایاتو واک راسپارئ. موږ یې دا خبره رد کړه او ورته ومو ویل چې ملاصاحب دغسې ایتلاف ته حاضر نه دی.

وروسته مالک وویل چې بله به وکړو هغه دا چې زه دوستم په هیڅ صورت نه پریږدم او په خلاف یې جنګ پیلوم. دلته په جنګي کرښه کې د دوستم، اسمعیل خان او زما افراد دي، زه دوی د مجلس په بهانه راغواړم او کودتاه وربانديې کوم او د جنګي خط ټول څواک او وسلې په لاس کې اخلم له هغه وروسته جنګي کرښه تاسو ته سپارم زه د

مزار شریف پر خوا پرمختګ پیلوم تر څو له دوستم سره جنګ وکړم. ما چې کومې سیمې له دوستمه نیولې هغه تاسو ته سپارم تردې چې د دوستم واک مو یو مخ ختم کړ. له هغه وروسته زه د مسعود او نورو مخالفینو په خلاف هم ستاسو په پلوی جګړه کوم تر څو چې ټول مخالفین ختمیږي زه به له خپلو افرادو او جنګي تشکیلاتو سره مسلح پاته یم، کله چې مخالفین یو مخ له منځه لاړل او ټول افغانستان د طالبانو تر واک لاندې راغی له هغه وروسته که زه د نورو قومندانانو په شان خلع سلاح کیږم یا نه؟ که څوکۍ راکوئ او یا نه هر څه چې د امارت خوښه وي همغسې چلند دې راسره وکړي.

مالک وویل چې په دې ټوله موده کې به ستاسو سره د مخابرې له لارې په رابطه کې یم او په ګډه به د دوستم په خلاف جګړه کوو. ملا محمد غوث اخند وایي موږ له جنرال مالک سره په همدې ډول توافق وکړ او تر منځ مو خط ولیکه، له توافق وروسته موږ هرات ته راغلو، په سبا سهار جنرال مالک خپل د کودتاه پروګرام عملي کړ او د مرغاب په خط کې یې د دوستم او اسمعیل خان ټول کسان ونیول. موږ ته یې حال راکړ چې ما خو خپل کار وکړ راشئ چې جنګي کربښه در تسلیم کړم. ملا عبدالرزاق اخند بیرته مرغاب ته لاړ، هلته یې د تضمین په ډول له جنرال مالک څخه اسمعیل خان سره له ټولو ۴۰۰ کسانو وغوښت چې هغه هم وروسپاره، په دې ډول جنرال مالک تر مخ او طالبان ورپسې د مزار شریف په خوا پرمختګ پیل شو.

دوستم له مالک سره د جګړې لپاره جوزجان ته راغی مالک چې په یوازې سر یې د دوستم مقابله نه شوای کولای په فاریاب کې یې له طالبانو سره ګډ تشکیل جوړ کړ. دغه راز د دوستم کسان چې د مرغاب په خط کې یې نیولې و بیرته یې مسلح او د ځان ملګري کړه په دې ډول یو داسې ګډوډ وضعیت رامنځته شو چې پخوا یې اټکل نه و شوی. جنرال مالک او طالبانو په ګډه دوستم ته شکست ورکړ او مزار ته طالبان او د مالک کسان په یوه بشپړ مبهم حالت کې داخل شول.

د مزار له نیولو وروسته د اسلامي امارت له مقام څخه د نویو ټاکنو د اعلان په ترڅ کې ملا عبدالرزاق د شمال تنظیمه رئیس او جنرال مالک د اسلامي امارت د بهرنیو چارو مرستیال وزیر وټاکل شول. البته دا ټاکنه له جنرال مالک سره د شوې تعهد نامې له

مخې نه بلکې د حسن نیت له مخې و، مالک چې دا مهال یې سپینه لنګوټه تړله او په ټوله معنی یې ځان طالب معرفي کاوه، له طالبانو یې غوښتنه وکړه چې د حالاتو د کنټرول لپاره اضافه کسان ورولیږي. له کندهار او هرات څخه زرګونه غیرمسلح کسان په دې نیت مزار ته روان شول چې هلته به ورباندې وسلې ویشل کیږي.

دا چې په مزار او نورو شمالي ولایاتو کې یوازې د مالک کسان نه وو، بلکې د دوستم پاتې شوني، د حزب وحدت، جمعیت او حکمتیار وسلوال هم وو، طالبانو له ځینو هغو خلکو وسلې واخیستې چې خطر یې ترې احساساوه.

بل اړخ ته مالک چې په ظاهره یې ځان ډېر رښتینی او مخلص معرفي کاوه په پټه له حزب وحدت سره په ګډه د طالبانو په وړاندې په توطیه جوړولو بوخت و. توطیه داسې وه چې د جنرال مالک او حزب وحدت کسان به په ګډه په مزار شریف کې د طالبانو په خلاف جګړه پیلوي. جنرال مالک به د دې جګړې په اړه وایي چې دا یوازې د حزب وحدت کسان دي. که دوی ناکام شول نو د جګړې نسبت به یوازې حزب وحدت ته کیږي او که په طالبانو بریالي شول نو د مزار واک به د مالک او حزب وحدت تر منځ تقسیمیږي.

دا هم باید واضحه کړو چې د اسلامي امارت د استازو لخوا ملاصاحب ته د توافق ټول جزیات نه و ویل شوي. بلکې یوازې د مخابرې له لارې په اجمالي ډول معلومات ورکول شوي وو، کله چې په مزار کې وضع خرابه شوه. ملا محمد غوث آخند د امارت مقام ته راغی او ملا صاحب ته یې توافق لیک ورښکاره کړ. ملا صاحب چې توافق لیک وکوت نو ډېر خپه شو چې دا کله امکان لري چې د طالبانو او مالک زرګونه مسلح کسان دې په داسې مبهم حالت کې سره وچلیږي. دا په زرګونو نفر دي چې کنټرول یې آسان نه دی. بیا یې وویل چې اوس خو کار تر کار تېر دی خو څو تنه مخور مشران باید عاجل مزار شریف ته لاړ شي تر څو وضعیت کنټرول کړي. په دې ډول یې مولوي احسان الله احسان، ملا محمد غوث او څو تنه نور مشران مزار شریف ته ولیږل تر څو خرابیدونکی وضعیت مدیریت کړي.

ملا محمد غوث وايي موږ چې مزار ته لاړو هلته وضعيت ډېر خراب و، په ښار کې ډزې شروع شوې، مالک دا چل کړی و چې له یوې خوا یې جنګ پیل کړی و له بلې خوا یې د طالبانو نظامي مشران په خاص ډول ملا عبدالرزاق اخند له ځان سره کلابند ساتلي او په دې خطاء کړی و چې دا د حزب وحدت کسان جنګ کوي نو ځکه طالبان غافلګیره شوي وو او د متقابل ځوابي برید او احضاراتو ضرورت یې نه احساساوه. ترڅو چې د جنګ لمن پراخه شوه، ملا عبدالرزاق، ملا اختر محمد منصور او نور نظامي مشران د مالک لخوا په غداری سره اسیران او له عامو نظامیانو یو مخ بیل شول، نظامي طالبان په ښار کې ځای ځای محاصره او متحد ځواک یې وویشل شو. د ملا زړګي اخند په شان ځیني نظامي مشران د مالک له کسانو سره په مخامخ جنګ کې شهیدان شول، ډیرو نورو چې کافي وسله، امکانات او قومنده یې نه درلوده له ښاره د وتلو هڅه وکړه، چې له جملې یې ډېر لږ کسان خلاص او نور یې د ښار په اطرافي سیمو کې بندیان یا شهیدان کړای شول.

د طالبانو د مشرانو له جملې ملا اختر محمد منصور، ملا عبدالرزاق، ملا محمد صادق او حاجي فضل محمد د جنرال مالک لخوا اسیران او مولوي احسان الله احسان د تنګي شادیان په سیمه کې د حزب وحدت د کسانو لخوا په شهادت ورسید. ملا محمد غوث، ملابرادراخند او څه نور کسان له سیمې په روغ وتلو وتوانیدل. او په زرګونو طالبان چې په جنرال مالک یې باور کړی و د نوموړي د غدر قرباني او د اسیرانو په توګه جنرال مالک ته په لاس ورغلل. جنرال مالک وروسته دغه زرګونه تنه بندیان په پټه له محابسو ایستل او د جوزجان په دشت لیلي او د بلخ په حیرتان دښتو کې یې په ډلیزه توګه په شهادت رسول.

جنرال مالک په طالبانو سربیره ډېر هغه عام وګړي هم د طالبانو په نوم بندیان اوشهیدان کړل چې د مزار شریف ښار ته د سیاحت په نیت تللي وو. په دې ډول جنرال مالک د افغانستان په جګړه ییز تاریخ کې د غدر او بې ګناه بندیانو د قتل عام له امله توره کارنامه ثبت کړه.

څه باندې یو کال وروسته طالبان بیا وتوانیدل چې فاریاب، جوزجان، سرپل، بلخ او ټول شمالي ولایت ونیسي. هغه زرګونه طالبان چې مالک په دښت لیلي او حیرتان کې شهیدان کړي وو او اجساد یې په شرعي طریقه نه و دفن شوي، جسدونه یې کندهار ته رانقل او په شرعي طریقه په ځانګړې هدیره کې خاورو ته وسپارل شول چې د مزار د شهیدانو په هدیره شهرت لري.

د شمال دې غمیزې ټول افغانستان دردمن کړ، خو شخصا په ملا محمد عمر مجاهد یې خورا ژور تاثیر وکړ، د نوموړي ملګري وايي ملا صاحب له دې پیښې وروسته اکثره وخت غمجن معلومیده او تر پایه یې غموونکی اثر ورباندې ښکاره و. ملا صاحب هغه امارتي مسؤل چې له جنرال مالک سره په توافق کې یې د امارت د مقام ټول هدایات په نظر کې نه وو نیولي او په خپل وخت یې ملا صاحب ته خبر نه و ورکړی د وزارت له دندې لرې او پر کورکښیناوه.

## د مخدره موادو موضوع

د مخدره موادو د زراعت او تولید مسئله اسلامي امارت ته له پخوانیو رژیمونو څخه په میراث پاته وه. د افغانستان په ختیځ، شمال ختیځ، جنوب او جنوب لویدیځ کې آن له شاهي دور څخه د مخدره موادو په خاص ډول د بنګو او کوکنارو کښت پیل شوی او رواج شوی و.

طالبان په داسې حال کې قدرت ته ورسیدل چې په غریب افغانستان کې مخدره مواد د خلکو د یوه مهم اقتصادي او عائداتي منبع حیثیت خپل کړی و چې بناء دې موضوع په ولسي کچه یو لړ حساسیتونه هم درلودل او د مخنیوي کار یې له خطراتو خالي نه و.

خو ملا محمد عمر مجاهد د مخدره توکو د زراعت او استعمال په اړه هم د اسلامي شریعت له اصولو سره برابر دریځ خپل کړ. دا چې د مخدره موادو استعمال د اسلام له نظره ناروا دی د تحریک له لومړۍ ورځې څخه د چرسو، پوډرو، شرابو او نورو

مخدره توکه په استعمال کلک بندیز نافذ شو چې سرغړوونکو ته یې حتی د حبس سزاوې ورکول کېدلې.

دا چې تریاک او خشخاش په پخوا زمانو کې طبي مواد بلل کېدل او اوس هم په ډول ډول دواګانو کې استعمالیږي او حتی په نړۍ کې یې په بیلابیلو هیوادونو کې د همدې ضرورت په اساس په محدود ډول کښت قانوني شوی دی. حنفي فقهې هم د دې مخدر توکي په اړه د نامشروعیت قاطع امر نه دی کړی. د طالبانو اسلامي تحریک هم د همدې فقهي ملاحظې له امله په پیل کې د کوکنارو د کښت بندولو موضوع جدي ونه بلله او ټوله توجه یې د بنګو او چرسو د تولید، استعمال او تجارت ختمولو ته وه.

خو په وروسته کې طالبان متوجه شول چې په موجوده وخت کې د کوکنارو کښت د افغانستان ولس ته په زیان تمامیږي. د اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال د مخدره موادو د مخنیوي د ریاست مشر مولوي عبدالحمید اخندزاده وایي چې موږ د امارت د مشرتابه له امر سره سم د افغانستان په بیلابیلو سیمو کې د مخدره موادو په خاص ډول د تاریاکو د اغیزو په اړه سروې او پلټنه پیل کړه. په دې پلټنه کې موږ ته معلومه شوه چې د افغانستان په لویدیځ کې له ایران سره په پوله پرتو سیمو کې ولسي-خلک د تریاکو د استعمال او تجارت له امله له سختو غمیزو سره مخامخ شوي دي.

دا خلک چې له څو لسیزو راهیسې یې د ژوند یوازینی کار او کاروبار د تاریاکو تجارت او قاچاق دی په زرګونو ځوانان یې د قاچاق په مهال د ایران د سرحدي ځواکونو لخوا په دښتو کې وژل شوي چې د اکثرو حتی مړي هم ورک دي. له ایران سره په سرحد پرتو کلیو کې داسې کورونو په ډېر تکلیف پیدا کېدل چې یو یا څو کسان یې د دې تجارت او قاچاق قرباني شوي نه وو. د دې سیمو د خلکو ژوند یوازې تر قاچاق او تاریاکو تړل شوی وو چې دې کاروبار دوی د بشپړې تباهۍ په لاره روان کړې وو. په ضمن کې د تاریاکو کښت، تجارت او تولید په خاص ډول په ځوانانو کې په پوډرو او نورو نشه یي موادو اعتیاد ته هم وده ورکوله. د تاریاکو د کښت دې زیانبار اړخ د دې موضوع په اړه د طالبانو نظر له بنسټه تغیر کړ او دې نتیجې ته ورسیدل چې

ملي مصلحت په دې کې دی تر څو د دغه بوټي کښت او تولید هم د استعمال په ډول په مطلق ډول بند کړای شي.

**یو فرمان او یو بوټی**

لکه وړاندې چې وویل شول کوکنار چې هغه مهال ورسره د افغانانو اقتصاد تړل شوی و او د ډیرو خلکو یوازینی عائداتي منبع بلل کیدل، د بندولو مسئله یې د اټکلونو له مخې آسانه نه بریښېده. د اسلامي امارت نړیوالو دښمنانو هم پرلپسې په طالبانو فشار وارداوه او د کوکنارو د بندولو غوښتنه یې ترې کوله. هغوی ښایي د موضوع حساسیت ته متوجه و او په دې سره یې هڅه کوله طالبان او ولس له یو بل سره په تقابل تصادف کې واقع کړي.

مګر د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي رهبرۍ حقانیت او برکت هغه وخت په ښکاره ثابت او مشاهده شو کله یې چې په ۱۳۷۹ / ۵ / ۷ هجري شمسي-نیټه چې له ۲٦/۴/۱۴۲۱ هـ ق سره برابره ده، د یوه لنډ فرمان له مخې په هیواد کې د کوکنارو په کښت بندیز نافذ کړ.

د دې لنډ فرمان متن په لاندې ډول و.

لومړۍ ماده:

۱ – په ټول هیواد کې د کوکنارو کرل مطلقا منع دي.

۲ – کوم اشخاص چې د کوکنارو په کرلو لاس پورې کوي او له پورتني امر څخه سرغړونه وکړي سخته شرعي سزا به ورکړل شي.

دوهمه ماده:

اړونده امارتي مسؤلین مکلف دي چې په خپلو مربوطه سیمو کې د کوکنارو د کرلو د مخنیوي په خاطر لازم تدابیر ونیسي.

دغه فرمان د توشیح له نیټې څخه نافذ دی او په رسمي جریده کې دې خپور شي.والسلام

(اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد)

دا فرمان که څه هم له مخدراتو سره د مبارزې په برخه کې د خپل ډول تر ټولو قاطع اقدام و او حتی په سياسي لحاظ يې هم طالبانو ته ګټه رسولای او د تبليغاتو لپاره يې ښه بهانه په لاس ورکولای شوای. خو ملا صاحب په دې نظر و چې دغه اقدام يې د نړيوالو د فشارونو له امله نه بلکې يوازې د ديني او عام اجتماعي مصلحت په خاطر کړی دی نو ځکه يې نه په چا احسان باروي او نه يې په مقابل کې له چا څخه امتياز غواړي.

ښايي د نوموړي همدا مخلصانه عزم به و چې الله تعالی وربانـدې زړه تـه نه لويـدونکي نتيجه مرتبه کړه. د افغانستان مؤمن ولس د خپل شرعي امير فرمان تـه لبيک ووايـه او د فرمان د صدور له نيټې وروسته يې په سمدستي ډول د کوکنارو کښت بند او پـه ځـای يې غنم او نور ګټور کرنيز توکي وکـرل. نړيـوال چې دغه وخت پـه تمه وو او دې تـه منتظر وو چې د افغانستان دهقانان به له طالبانو سره جنجال پيل کـړي او پـه دې ډول بـه دوی ته د مداخلې او تبليغاتو زمينه برابره شي مګر دا چې الله تعالی د زړونـو مالـک دی د افغان ولس زړونه يې دې ته مائل کړل چې د خپل شرعي امير پـه اطاعـت کې خير دی او د کوکنارو په کښت کې زيان دی نو ځکه يې صادر شوی فرمـان پـه پـوره توجه سره رعايت کړ.

د فرمان لـه صدور شپږ مياشتې وروسـته د الجزيـرې ټيلويزيـون خبريـالانو غوښتل د کوکنارو د بندولو پـه موضـوع تصـويري راپـور جـوړ کـړي، دوی د افغانستان جنـوب، جنوب لويديځ، ختيځ او نورو سيمو ته سفرونه وکـړل او د کوکنـارو د پخوانيـو کرونـدو هغه سيمې يې له نږدې وليدې چې له دې وړاندې به هـر کـال تـرې د ځلور زره ټنـه پـه شاوخوا کې ترياک توليدل او نړۍ ته صـادريدل. دوی پـه دې سيمو کې نـه يـوازې دا چې د کوکنارو پراخې کروندې يې ونه موندې حتی کوم داسې بوټی يې هـم نـه شـوای پيدا کولای چې په خپل ويډيويي راپور کې يې د نمونې په ډول وښيي.

د الجزیرې د ټیلویزیون د همکار مصطفی حامد د وینا لـه مخې د دوی خبریـالانو په دې ټولو سیمو کې یوازې د ننګرهار د شیرزادو ولسوالۍ په یـوه لـرې پرتـه سیمه کې د کوکنارو یو بوټی وموند او بیا یې په خپل راپور کې وښـود. دې وضـعیت ثابتوله چې د کوکنارو په شان له هرې منفي پدیدې سره مبـارزه کـه د شـرعي اصـولو لـه مخې وشي نتیجه به یې ډیره ښه او له اټکل څخه لوړه وي.

په دې ډول د اسلامي امارت د واکمنۍ په وروستیو کې د ملا صاحب د فرمـان لـه مخې د کوکنارو کښت او تولید د صفر کچې ته راښـکته شـو امـا د مخـالفینو تـر واک لاندې ساحو په خاص ډول بدخشان کې لا هم د کوکنارو کښت جریان درلود چې پـه همدې کال یې د نړیوالو احصایو له مخې ۱۸۵ ټنه تاریاک نړۍ ته تولید کړل. البتـه د مخالفینو تر واک لاندې ساحه کې د کوکنـارو د کښـت او تولیـد پـه موضـوع نړیوالـو هـم کـوم اعتراض نه درلود.

**د ښځو د حقوقو او تعلیم مسئله**

د طالبانو په اړه ډیرو بهرنیو لیکوالو او ژورنالیسـتانو د اخـبره تبلیغولـه چـې د مـلا محمد عمر مجاهد تر واک لاندې سیمو کې د ښځو حقوق خوندي نه دي، هغوی ته د کـار او تعلیم اجازه نه ورکول کیږي او ټول مشـروع حقونه ترې سلب شوي دي.

په دې اړه واقعیت دا و چې اصلا د افغانستان د حاکـم په حیث ملا محمـد عمـر مجاهد او لیبرال فکره مخالفینو یې د ښځو د حقوقـو د څرنګـوالي پـه اړه اخـتلاف درلـود. ملا محمد عمر مجاهد ښځې هم د نارینـه وو غونـدې د الله تعـالی مکلـف مخلـوق او د الله تعالی له لورې په راغلیو اوامرو او احکامو مکلفې بللې، نو ځکه یـې د حجـاب رعایت او له اختلاط او جاهلانه تبرج څخه ځان ساتنه د هغوی دیني وجیبه بلله.

اما د لیبرالیزم مدعیانو د افغانستان د مؤمنو ښځو لپاره هغـه پـه اصـطلاح حقـوق غوښتل لکه د نړۍ په نورو برخوکې چې ښځې ورباندې تیرایسـتل شـوي دي او د الله تعـالی له دې باعزته او باپته مخلوق څخه یې د هوسبازۍ او بازار موندنې آله جوړه کړې.

د ښځو د خدای ورکړو شرعي حقوقو په باره کې ملا صاحب پوره جدیت درلود او په رعایت یې تاکید کاوه. د امیرالمؤمنین د فرامینو له جملې ۱۰۴ نمبر فرمان د ښځو د حقوقو په اړه دی چې په یوه برخه کې یې راغلي (څرنګه چې په اسلامي شریعت کې ښځه ځانته خپل حقوق لري چې د هغو په ترلاسه کولو سره یې حیثیت او مقام لوړ او حیا او پرده یې خوندي کیږي. مګر بد بختانه په افغاني ټولنه کې د ناوړه او غیر شرعي رواجونو له امله ښځې له خپلو دغو شرعي حقوقو څخه بې برخې او راز راز ظلمونه ورسره کیږي. نو د دغه ډول بې عدالتۍ د مخنیوي په منظور لاندې احکام منظوروم :

لومړۍ ماده: د هیواد مسلمان اتباع نه شي کولای د قتل په صورت کې ښځه د دیت، جوړې (صلحې) یا په بل نوم سره د مړي کورنۍ ته په بدل کې ورکړي.

دوهمه ماده: د هیواد مسلمان اتباع نه شي کولای کونډه ښځه د میړه د کورنۍ له غړي سره په نکاح کولو مجبوره کړي. د شریعت د حکمونو مطابق کونډه ښځه کولای شي په خپله خوښه نکاح وکړي.)

د ملا صاحب لوړ فرمان ښايي د يادو دوو ناروا او حق تلف کوونکو رواجونو د مخنیوي په برخه کې بې ساري وي ځکه پخوانیو حکومتونو کله هم د ښځو په وړاندې د داسې ظالمانه اقداماتو د مخنیوي هڅه نه ده کړې. د ښځو د تعلیم په اړه ملا صاحب په یوه مرکه کې ویلي: هر چې د ښځو د تعلیم مسئله ده نو موږ د ښځو د تعلیم مخالف نه یو او نه یې هم له تعلیم څخه منع کوو، البته موږ وایو چې ښځې دې د شرعي احکامو او شرایطو په رعایت سره تعلیم وکړي او د ستر، عفت او شرعي آدابو په ساتلو سره دې زدکړې ترسره کړي.( مجلة الامارة الاسلامية دوهمه ګڼه ۱۴ مخ )

د اسلامي امارت د تمیز رئیس مولوي شهاب الدین دلاور صاحب وايي: ملا صاحب په قضائیه چارو کې هم دې ته خاص توجه درلوده چې د ښځو حقوق تلف نه شي. یو مثال یې دا دی چې ملا صاحب محاکمو ته فرمان صادر کړی و چې د ښځو دعوا هیڅکله تر مرور زمان لاندې نه شي راتلای. یعني کله چې په مسئله باندې ۳٦ کاله تیر شي او مدعي دعوه ونه کړي نو بیا د مرور زمان له امله د مدعي دعوه نه اخیستل کیږي. خو ملا صاحب ویل چې د افغانستان ښځې محکومې او عدالت ته له لاسرسي لرې

پاته شوي دي، نو ځکه که د ښځو په دعوه هر څومره وخت وتلی وي باید د عدالت حق یې خوندي وي او دعوه یې واخیستل شي. دغه استثنائي حکم په دې دلالت کوي چې ملاصاحب د شریعت په چوکاټ کې ښځو ته په ټولو حقوقو قائل و، البته د افغان مؤمن ولس د درنو تورسرو لپاره یې د حقوقو او آزادۍ په نوم هغه بې بندوباري نه منله چې د لیبرال فکر خاوندان وربانديې تاکید کوي.

**ګاونډیان او اسلامي نړۍ**

افغانستان شپږ ګاونډي هیوادونه لري چې له پاکستان، ایران، ترکمنستان، ازبکستان، تاجکستان او چین څخه عبارت دي. د دې هیوادونو له جملې یوازې چین یې غیر اسلامي هیواد دی په نورو ټولو کې مسلمانان اکثریت دی نو ځکه د اسلامي نړۍ غړي بلل کیږي.

د افغانستان اسلامي امارت د ګاونډیانو له جملې یوازې د پاکستان لخوا په رسمیت پیژندل شوی و، ترکمنستان او چین که څه هم اسلامي امارت یې په رسمیت نه و پیژندلی خو له افغانستان سره یې تجارتي او تر یوه حده سیاسي روابط پالل. اما نور ګاونډیان لکه ایران، ازبکستان او تاجکستان چې د برهان الدین رباني ګرځنده حکومت یې په رسمیت پیژاند د اسلامي امارت د مخالفت په صف کې ولاړ وو. تاجکستان په دې سربیره چې په کولاب کې یې د شورای نظار مشرانو ته مراکز او پټنځایونه تهیه کړي وو د مخالفینو پوځي اکمالات، بهرني سفرونه، د زخمیانو معالجه او نور ډېر فعالیتونه هم د دې هیواد له خمکې او فضا څخه په استفاده ترسره کیدل.

ازبکستان چې آن له تنظیمي دوران څخه یې دوستم تقویه کاوه د طالبانو په وخت کې یې له دوستم سره مرستې کولې او د تیښتې په وخت یې پناه ورکوله. ایران بیا د حزب وحدت له ټوپکیانو سره په ښکاره مرستو سربیره د اسمعیل خان او حکمتیار په شان د طالبانو مخالفینو ته پناه ورکړې وه او د طالبانو په وړاندې یې تبلیغاتي محاذ هم ګرم ساتلی و.

د طالبانو په اړه د ځینو ګاونډیو هیوادونو دښمنانه دریځ تر ډېره د هغوی له ناسم پوهاوي څخه سرچینه اخیسته. ځینو هیوادونو بیا د نړیوالو زبرځواکونو په تبع له طالبانو سره د دوستۍ په ځای د دښمنۍ لاره نیولې وه. اما خپله طالبانو په مشخص ډول د اسلامي امارت زعیم ملا محمد عمر مجاهد د ګاونډیانو په اړه کوم بد نیت نه درلود. ملا صاحب په یوه مرکه کې چې خلافت مجلې خپره کړې ویلي (له اسلامي نړۍ سره د اسلامي اخوت او ورورلۍ په بناء مناسبات غواړو او له ګاونډیو هیوادونو سره د نیکې همجوارۍ او د یوه بل په چارو کې د نه مداخلت غوښتونکي یو)

**پاکستان**

پاکستان چې له افغانستان سره د نورو ګاونډیانو په نسبت ډېر مشترکات لري، د شوروي ضد جهاد په مهال د افغانانو د هجرت کور و او په میلیونونو افغانانو په کې سکونت غوره کړی و. څرنګه چې د طالبانو تحریک له جنوبي ولایاتو راپورته شو او وروسته چې کله طالبانو د افغانستان په زیاتره سیمه واک ټینګ کړ، تر ټولو مخکې اسلامي امارت د پاکستان لخوا په رسمیت وپېژندل شو. دې واقعیتونو ځینو خلکو ته د دې تبلیغ لپاره دلیل په لاس ورکړ چې ګوندې طالبان د پاکستان خلګ دي او ملا محمد عمر مجاهد د پاکستان تر اثر لاندې کار کوي.

اما واقعیت دا و چې ملا محمد عمر مجاهد له پاکستان سره هیڅ سیاسي او فکري تړاو نه درلود هغه په ټول ژوند په پاکستان کې نه و اوسیدلی او یوازې یې د شوروي ضد جهاد په مهال د علاج او یا هم د حرکت اسلامي په تنظیم کې دخپلې جبهې د رسمیت لپاره د یوه عادي مجاهد په صفت د پاکستان کویټې ته سفر کړی و.

ملا محمد عمر مجاهد پاکستان ته د یوه مسلمان ګاونډي په نظر کتل او د پاکستان له ولس سره یې د اسلامي اخوت او ښه ګاونډیتوب د اصولو له مخې په حسن تعامل ټینګار درلود. ملاصاحب لکه څنګه چې د درستې نړۍ په وړاندې د دیني مواقفو، جهادي عزم او ملي ارزښتونو په اړونده مسائلو کې غیرمنفعل او ثابت دریځ درلود د پاکستان په وړاندې یې هم کټ مټ همداسې تګلاره وه. امریکایانو چې د اسامه بن لادن او ځینو نورو موضوعاتو په اړه یې فشارونو د ملاصاحب دریځ بدل نکړ په

وروستيو کې يې هڅه کوله د پاکستان له لارې طالبان د خپل موقف بدلولو ته وهڅوي. خو ملا صاحب په دې اړه په يوه مرکه کې وويل ( پاکستان نه موږ ته د اسامه د سپارلو خبره کړې او نه يې هم بايد وکړي. ځکه دا موضوع د افغانستان د اسلامي امارت او امريکا موضوع ده.)(خلافت مجله پرليپسې اوولسمه گڼه، پنځم مخ)

مرحوم سيد محمد حقاني صاحب چې يو وخت د اسلامي امارت د بهرنيو چارومرستيال وزير او بيا په اسلام اباد کې سفير و، کيسه کوله چې يو وخت مې په کندهارکې له ملاصاحب سره په مجلس کې يادونه وکړه چې: اصولا د يوه بهرني ملک سفير په کوربه هيواد کې بايد يوازې د بهرنيو چارو له وزارت سره اړيکې وپالي، مگر موږ داسې شواهد پيدا کړي چې د پاکستان سفير عزيز احمد خان هڅه کوي چې د بهرنيو چارو د وزارت له خبرتيا پرته يو شمير امارتي ادارو او اشخاصو سره مستقيمي اړيکې جوړې کړي.

مرحوم حقاني صاحب وايي: چې د دې خبرې په اوريدو ملاصاحب په غوسه شو او يوه شيبه غلی و، خووروسته يې په لنډو او صريحو ټکو راته وويل: دا ځل چې کابل ته لاړې اول کار دا وکړه چې دغه سفير راوغواړه، سم يې سر ورخلاص کړه، چې موږ دا دومره دربدرۍ د استقلال لپاره په سر وړي دي، د پاليسۍ سره سم حد ورته وټاکه او ورته ووايه چې که په دې لاره تلای او چليدلی شې و چليږه او کنه ځه په مخه دې ښه.

ملا صاحب د خپلو شرعي مواقفو په څير د افغانستان د ځمکني تماميت د مسائلو په اړه هم ډېر حساس و، له پاکستان سره د ډيورنډ کرښې په اوږدو کې طالبانو څو ځله د پاکستان له عسکرو سره شخړې وکړې، په برامچه، پکتيکا، د خوست غلام خان او بنې سيمه دغه راز د ننگرهار د تورخم او گوشتې په سيمو کې يې پاکستاني عسکر په شا وتمبول او په خوست کې يې پاخه جوړ شوي تاسيسات چې د کرښې نه د افغانستان غاړې ته جوړ شوي و ورونړول.

خو له دې سره سره ملا صاحب له پاکستان سره د يوه مسلمان ورور ملت په توگه په اخوت او دوستانه اړيکو ټينگار درلود. د پاکستان ديني مدارس، د هغوی مشائخ او طالبان چې اکثرو يې د افغانستان له اسلامي امارت سره منهجي او فکري يووالی درلود

ملا صاحب ورته په خورا درنه سترگه کتل. د کشمیر د مسئلې په اړه ملاصاحب په يوه مرکه کې ويلي (موږ مخکې هم ويلي دي چې په کشمير کې دې په مسلمانانو باندې ظلمونو بند کړل شي او دا مسئله دې د کشمير د مسلمانانو له غوښتنو سره سم او يا هم د ملگرو ملتونو د پريکړو په اساس حل شي. څکه دغه کار د هند او پاکستان دواړو په گټه دی، کشميري مسلمانان د ازادۍ حق لري او دا حق بايد ورکړل شي)

د ۱۹۹۹ م کال د اکتوبر په دولسمه (۱۳۷۸/۷/۲۰ هـ ش) د پاکستاني پوځ مشر جنرال

پرويز مشرف په نواز شريف کودتاه وکړه او قدرت يې په لاس کې واخيست. پرويز مشرف چې د پوځ مشر و له کودتا يوه ورځ وروسته يې بيړنی فرمان صادر کړ او ځان يې صدر اعظم اعلان کړ، چې په دې ډول يې له پوځي مشرۍ علاوه د هيواد اجرايوي اختيارات هم په لاس کې واخيستل. ملا محمد عمر مجاهد چې په اسلامي هيوادونو کې د اسلامي اقتدار راگرځيدل او د شريعت نفاذ يې ستر ارمان و او په دې برخه کې يې د اسلامي نړۍ د ستر اقتصادي ځواک او يوازيني اټوم لرونکي هيواد په حيث پاکستان يو مهم اسلامي هيواد گاڼه د مشرف له کودتا څه موده وروسته يې نوموړي ته د واکمنۍ د مبارکۍ په عوض توصيه ليک واستاوه.

ملا محمد عمر مجاهد د پاکستان مشر پرويز مشرف ته وليکل چې پاکستان يو اسلامي هيواد دی، د اسلام په نوم جوړ شوی دی، خلک يې متدين دي، اسلامي روحيه لري او اسلامي شريعت غواړي. دا چې اوس تاسو د پوځ او ملکي حکومت ټول اختيارات په لاس کې لرئ او په وړاندې مو کوم خنډ نشته، نو له دې فرصت نه په استفاده په پاکستان کې اسلامي نظام اعلان او اسلامي قانون تطبيق کړئ. دا به ستاسو خورا ستره کارنامه چې اسلامي تاريخ به ورباندې وياړي.

## ايران

د ايران حکومت چې د تنظيمي هرج و مرج په دوران کې يې د افغانستان په کورنيو جگړو کې فعال حضور درلود او د حزب وحدت د مليشو سره يې مرستې کولې له پيله

يې طالبانو ته د شک په سترګه کتل او د هغوی په اړه يې د پيش قضاوتونو له مخې چلند کاوه. له حزب وحدت سره د طالبانو ټکر ايران په بشپړه توګه د اسلامي امارت په مخالف جهت کې ودراوه نو ځکه يې په نيمروز، فراه، هرات، کابل، باميان او د افغانستان په نورو بيلابيلو سيمو کې د اسلامي امارت له مخالفينو سره ښکاره مرستې پيل کړې.

که څه هم د ايران حکومت د اسلامي امارت د واکمنۍ په ټوله موده کې د طالبانو په اړه تر ټولو بد تبليغات کول خو د اسلامي امارت زعيم ملا محمد عمر مجاهد له دې سره سره چې د ايران له چلند څخه راضي نه و مګر بيا يې هم په خپلو بيانيو کې د ګاونډي هيواد ايران حکومت د دښمن په نوم نه ياداوه.

په مزار شريف کې چې د ايران د قونسلګرۍ کارکوونکي د نامعلومو کسانو لخوا ووژل شول، که څه هم ايران يې طالبانو ته د پړې ګوته نيوله خو طالبانو دغه تور رد کړ.

د ايران حکومت د مزار شريف د واقعې په غبرګون کې له افغانستان سره په پوله پرتو سيمو کې درنې پوځي مانورې پيل کړې چې تر دوه سوه زره پورې پوځيانو په کې برخه درلوده او په يوه ډول يې په افغانستان د بريد ګواښ رامنځته کړ. ملا محمد عمر مجاهد د احتياط په خاطر يو شمير ځواکونه له ايران سره پولې ته وليږل او په کابل کې يې د ټول افغانستان د علماء کرامو غونډه راوبلله، دغه غونډه چې شاوخوا يونيم زر تنه مخکښو علماء کرامو په کې ګډون درلود د ۱۳۷۷ لمريز کال د ميزان په دوهمه يې د يوه پريکړه ليک په صدور سره وويل چې: د افغانستان اسلامي امارت او د ايران حکومت دې دواړه د يو بل په وړاندې له زغم څخه کار واخلي. ځکه چې د دواړو اسلامي هيوادونو تر منځ جګړه د ټولې اسلامي نړۍ پر زيان او د کفارو په ګټه تماميږي. خو که ايران يا بل هر هيواد په افغانستان بريد وکړي په وړاندې يې پر هر افغان جهاد فرض دی.

د اسلامي امارت د واکمنۍ په وروستيو کې د امارت او ايران تر منځ اړيکي مثبت خوا ته روانې وې، داسې معلوميدله لکه ايران چې طالبان پيژندلي وي چې په کامله توګه خپلواک خوځښت دی چې د افغانستان د خلکو نمايندګي کوي.

## ترکمنستان او چین

ترکمنستان او چین هیوادونو هم له طالبانو سره د ګاونډیتوب په اصولو سمې اړیکې درلودې او د افغانستان په جګړه کې یې د هیڅ لوري ملاتړ نه کاوه. ترکمنستان هڅه کوله چې د اسلامي امارت او مخالفینو تر منځ جوړجاړی رامنځته شي. په همدې موخه یې یو ځل په عشق اباد کې د مذاکراتو کوربه توب هم وکړ. ترکمنستان د نړیوالو بندیزونو په وخت کې هم له افغانستان سره خپله وفاداري پر ځای وساتله او د تیلو، غازو او نورو ضرورت وړ توکو په برخه کې د افغانستان ضروریات رفع کول.

## د اسلامي امت د قضایاوو په اړه دامیرالمؤمنین ملامحمدعمرمجاهد مواقف

رسول الله صلی الله علیه وسلم اسلامي ټولنه یو جسد بللې چې هر مسلمان باید د بل مسلمان درد حس کړي او په ویر یې ځان شریک وبولي.

د همدې نبوي ارشاد سره په مطابقت ملا صاحب هم اسلامي امت ته د یوه جسد او یوه مشترک کور په نظر کتل. هغه سره له دې چې په هیواد دننه له ډیرو ستونزو او بوختیاوو سره لاس او ګریوان و خو بیا یې هم په نړیواله کچه د مسلمانانو دردونه نه هیرول او همیشه یې ورسره خپله غمشریکي او خیرخواهي شریکوله.

که څه هم اسلامي امارت له افغانستان بهر له نورو اسلامي ډلو سره د عملي مرستو کولو کوم فعالیت نه درلود او نه یې هم وضعیت او شرایطو ایجابوله چې همدې موضوع ته ملا صاحب خپله هم هغه وخت اشاره وکړه کله یې چې د چیچنیا د خپلواک دولت د په رسمیت پیژندلو په موضوع له بي بي سي سره مرکه کوله. خو دا چې د نړۍ له مسلمانانو څخه معنوي او اخلاقي ملاتړ او له هغوی سره د خواخوږۍ او همدردۍ اظهار د ایمان له غوښتنو څخه وه د اسلامي امارت مشرتابه خپله اسلامي وظیفه بلله او پرته د سیاسي ملاحظاتو له رعایت یې دغه ایماني دنده سرته رسوله.

## د فلسطین قضیه

د فلسطین قضیه د اسلامي امت له سترو قضایاوو ګڼل کیږي. فلسطین چې د مسلمانانو لومړنۍ قبله ( مسجد اقصی ) په کې واقع دی او له دیارلس پیړۍ زیاته موده د مسلمانانو

تر واک لاندې و د تیرې میلادي پیړۍ په منځنیو کلونو کې د غربي استعمارګرو د پلان له مخې دغه سیمه له مسلمانانو غصب او یهودي دولت په کې رامنځته شو. له هغه وروسته د فلسطین اصلي مالکان (عرب مسلمانان) د دې وطن له اصلي خاورې شړل شوي، ختیځ پلو ته د اردن سیند په لویدیځه غاړه او غرب اړخ ته د غزې تړانګې په محدوده کې کلابند شوي دي.

فلسطیني مبارزین د خپل غصب شوي وطن د بیرته اخیستلو لپاره په جهادي مبارزه بوخت دي، د نړۍ مسلمان ولسونه له فلسطیني مظلوم ولس سره خواخوږي لري.

ملا محمد عمر مجاهد هم د اسلامي اخوت د احساس له مخې د خپلې واکمنۍ له پیله په کلکه د فلسطیني ملت د جهادي داعیې ملاتړ وکړ او په دې اړه یې بیا بیا فرمانونه او د خواخوږۍ پیغامونه صادر کړل. د بیلګې په توګه د ۲۰۰۰ میلادي کال په اکتوبر میاشت کې چې اسرائیلو په فلسطیني ولس میشتو سیمو بریدونه وکړل، ملا محمد عمر مجاهد د یوه پیغام په صدور سره چې په عربي ژبه خپور شوی و اسلامي امت په خاص ډول عرب هیوادونه د فلسطینیانو مرستې ته راوبلل. د دې پیغام په یوه برخه کې راغلي وو( تصدى الشعب الفلسطينى الأعزل للمظالم منذ السنوات و اشتدت هذه المظالم فى الآونة الاخيره فى قتل الفلسطينين المسلمين و تجريحهم والزج بهم فى زنازين السجون. و أعتقد أن اسرائيل سوف لا تتوقف عن هذه المجازر البشعة لأن امريكا تقف وارئها بالدعم و التأييد. فيجب على البلاد العربية أن تردع هذا الظلم الاسرائيلي أو لتطلب المدد من العالم الاسلامى لردع هذا العدوان السافر.

ژباړه: د فلسطین بیچاره ولس له ډیرو کلونو راهیسې ظلمونه ګالي، په دې وروستیو کې دغه مظالم نور هم زیات شوي چې مسلمان فلسطینیان وژل کیږي، ټپیان کیږي او په زندانونو کې کړول کیږي. زه باور لرم چې اسرائیل به د بوږنوونکو مظالمو دغه سلسله ونه دروي ځکه امریکا یې تر شا ولاړه ده ملاتړ او تائید یې کوي. نو بناء په عربي هیوادونو لازمه ده چې د اسرائیلي ظلم مخه ونیسي-او یا دې له اسلامي نړۍ د دې ښکاره تجاوز د مخنیوي په مقصد مرسته وغواړي.

## د چیچنیا خپلواک دولت په رسمیت پیژندل

چیچنیا یا شیشان د روسیې په جنوب لویدیځ کې د شمالي قفقاز له مسلمان میشتو سیمو څخه ده چې د پخواني شوروي اتحاد پرمهال د منځنۍ اسیا د قبضه شویو سیمو په څیر د شوروي یوه برخه بلل کیدله. په ۱۹۹۱ میلادي کال کې د دې ځای مسلمانانو د یوه پخواني جنرال (جوهر دودایف) په مشرۍ پاڅون وکړ او د چیچنیا ایچکریا جمهوریت په نوم یې د خپلواک هیواد لپاره مبارزه پیل کړه. د بوریس یلځین په مشرۍ د روسیې حکومت د پوځي عملیاتو له بیا بیا ناکامۍ وروسته دا ښه وبلله چې د چیچنیا له مجاهدینو سره اوربند وکړي، د ۱۹۹۶ م کال په اګست کې د بوریس یلځین او چیچنیایي مشر اسلان مسخدوف تر منځ د اوربند تړون امضاء او په دې ډول د قفقاز په شمال کې له کلونو وروسته یو ځل بیا د مسلمانانو خپلواک هیواد رامنځته شو.

په روسیه کې د ولادیمیر پوتین له واکمن کیدو وروسته په ۱۹۹۹ م کال روسیې د چیچنیا په خپلواک جمهوریت یرغل وکړ او په مقابل کې یې د چیچنیا مجاهدینو یو ځل بیا مسلح جهاد پیل کړ. په همدې مرحله کې چې د شمالي قفقاز په محصوره سیمه کې د شیشاني مؤمنانو واکمني تر سختو بریدونو لاندې وه ملامحمد عمر مجاهد د خپل دیني اخوت له مخې له دغو مستضعفو مسلمانانو سره خپله خواخوږي څرګنده کړه. ملا صاحب د رسمي اعلامیې په خپرولو او وروسته له بي بي سي راډیو سره د مصاحبې له لارې په چیچنیا د روسیې یرغل په سختو ټکو وغانده او مسلمانان یې د چیچنیا د مجاهدینو ملاتړ ته راوبلل.

د ۲۰۰۰ میلادي کال په لومړۍ میاشت کې د چینچنیا د پخواني لومړي وزیر زلیم خان اندربابیف او خارجه وزیر اودګوف په مشرۍ د چیچنیایي مجاهدینو یو مخکښ پلاوی افغانستان ته راغی، له ملا صاحب سره یې ولیدل او وروسته د یوې ګډې اعلامیې او یوه تفاهم لیک په خپرولو سره اسلامي امارت د چیچنیا خپلواک دولت په رسمیت وپیژاند او بالمقابل د چیچنیا د خپلواک دولت له لورې اسلامي امارت په رسمیت وپیژندل شو. د اسلامي امارت لخوا د چیچنیا د مسلمانانو خپلواک دولت په رسمیت پیژندلو که څه هم د هغه دولت د سقوط مخنیوی ونه کړای شو خو په هغه

سخت حالت کې د چیچنیا د محصورو مؤمنانو په وړاندې د ملا صاحب دغسې له خواخوږۍ ډک چلند ثابته کړه چې نوموړي د اسلامي اخوت رشتې ته د ګټې او استفادې له ملاحظو پرته یوازې د دیني وجیبې په حیث ژمنتیا درلوده. له همدې امله خو یې د چیچنیا د خپلواک دولت د رسمیت پیژندلو د ګډه اعلامیې متن داسې پیل شوی و ( بسم الله الرحمن الرحیم. انما المؤمنون اخوة. الآیة. د مسلمانو ولسونو تر منځ د اخوت د نه شلیدونکې رشتې او د دې ورورولئ د لا ټینګښت په مقصد د افغانستان اسلامي امارت د چیچنیا ایچکریا جمهوریت مسؤلین تر خپل منځ د دیپلوماتیکي اړیکو د ټینګولو په برخه کې موافقې ته ورسیدل)

## د ترکیې له اسلامپالو سره خواخوږي

ترکیه یو لوی او مشهور اسلامي هیواد دی چې شاوخوا اوه پیړۍ د اسلامي خلافت مرکز پاته شوی دی. د اروپایي استعمار او د شلمې پیړۍ د نړیوالو تحولاتو په لړ کې د ترکیې عثماني خلافت هم ونړېد پر ځای یې سیکولر نظام را منځته او د دې هیواد مسلمان ولس د بې دینه غرب پالو لخوا په سختۍ محکوم او له خپل دیني اصالت څخه ګوښه کړای شو. خو د شلمې پیړۍ په وروستۍ نیمایي کې د ترکیې اسلامپالو یو ځل بیا خپل سیاسي خوځښت پیل کړ. دا خوځښت چې پرلپسې ورته د سیکولر واکمنو او پوځ لخوا خنډونه جوړیدل هغه وخت یې زور واخیست کله چې په ۱۹۷۰ میلادي کال کې د استاد نجم الدین اربکان په نوم یوه ځیرک او مخلص سیاستوال یې د مشرۍ واګې په لاس کې واخیستې او د ترکیې لومړنی اسلامي ګوند یې تأسیس کړ.

اربکان او مسلمان پلویان یې له ټولو ستونزو او ګواښونو سره سره مسلسل د پرمختګ په حال کې و، تر دې چې په ۱۹۹۵ م کال کې د ترکیې په سرتاسري پارلماني ټاکنو کې د اربکان اسلامي ګوند ( حزب رفاه ) بې ساري بریا تر لاسه کړه، هغه دا چې د ټولو کارول شویو رایو د ۲۱٪ په ګټلو سره تر نورو ټولو ګوندونو مخکې شو. د اربکان ګوند د حکومت جوړولو لپاره له ( ښی لاري ګوند ) سره ایتلاف وکړ چې په نتیجه کې یې د ۱۹۹۶ م کال د جون په ۲۹ نیټه استاد نجم الدین اربکان د ترکیې د لومړي وزیر ( صدر اعظم ) په حیث وټاکل شو. دا په ۱۹۲۴ م کال کې د عثماني خلافت له سقوط ۷۲ کاله

وروسته لومړی ځل و چې يو اسلام ته متعهد سياستوال د ترکيې هيواد په دومره مهمه څوکۍ ټاکل کيږي او د صدر اعظم په حيث دنده پيلوي. د ترکيې د صدر اعظم په حيث د اربکان ټاکل کيدل که څه هم د لنډ وخت لپاره ول، تر دې چې يو کال وروسته سيکولر جنرالانو نوموړی په کودتا تهديد او استعفاء ته مجبور کړ، خو د اسلامپالو دغه بريا د ټول اسلامي امت لپاره يوه مهمه لاسته راوړنه وه. د اسلامپالو دې بريا د اسلامي امت دا هيلې تاندې کړې چې ترکيه يو ځل بيا خپل اسلامي اصالت ته ګرځيدونکې ده او د تيل شوي سيکولرزم زوال را نږدې دی. د افغانستان د اسلامي امارت مؤسس ملا محمد عمر مجاهد چې د هيواد، سيمې او نړۍ په سطحه يې له اسلامي خوځښتونو سره ژوره خواخوږي درلوده، د اربکان په بريا يې نوموړي ته د مبارکۍ رسمي پيغام وليږه چې متن يې له طلوع افغان ورځپاڼې څخه په استناد په لاندې ډول درته تقديموو.

عاليقدر محترم جناب نجم الدين اربکان د ترکيې منتخب صدر اعظم !

السلام عليکم ورحمة الله و برکاته

په دې وسيله د تر کيې د اسلامي هيواد د صدر اعظم په توګه ستاسو د انتخاب مبارکي وايم ، د لوی خدای جل جلاله له دربار څخه در ته توفيق غواړم څو د نړۍ مسلمانانو په تيره بيا د ترکيې اوسيدونکو ته د لا زيات خدمت مصدر وګرځئ .

محترمه وروره!

د افغانستان او ترکيې مسلمان خلک په ديني، مذهبي او تاريخي اړيکو لرلو سربيره نور هم سره نږدې دي ځکه په افغانستان کې د کمونيزم د مسلط کيدلو په مصيبت کې د ترکيې مسلمانان هغه خلک وو چې زموږ ډېر مهاجر ورونه يې ومنل او د هغوی په خدمت کې يې سپما و نکړه، زه په داسې حال کې چې د ځان او افغان مجاهد ملت له لوري د همدې همدردی مننه کوم ، هيله مند يم څو زموږ او ستاسو د مسلمانو خلکو د

داسي اړيکو په در لودلو سره مو د خدای جل جلاله د دين او مخلوق د خدمت په لاره کې نوري هم هلي ځلي مثبتي نتيجي ور کړي.

و السلام

ملا محمد عمر مجاهد

د افغانستان د طالبانو د اسلامي تحريک مشر

**مهاجر مجاهدين او د شيخ اسامه موضوع**

افغانستان ته د نورې نړۍ د مهاجرو مجاهدينو راتګ له هغه وخته پيل شو کله چې په ۱۳۵۸ هـ ش کال کې شوروي ښکيلاک په افغانستان بريد وکړ او دغه يرغل د هند بحر ته د شورويانو د ځان ايستلو هڅه وبلل شوه چې د خليج د عربي هيوادونو په ګډون يې د نړۍ ډيرى مسلمانان وويرول.

هغه وخت په افغانستان بريد په اسلامي امت بريد بلل کيده، له همدې امله خو نه يوازې د نړۍ مسلمانانو له افغان مجاهدينو او مهاجرينو سره د مالي او تسليحاتي مرستو لړۍ پيل کړه، بلکې په منظم ډول يې خپل ځوانان هم هڅول چې په افغانستان کې د شوروي يرغلګرو په خلاف وجنګيږي.

فلسطيني عالم او مفکر شيخ عبدالله عزام چې وروسته يې د بهرنيو مجاهدينو خصوصا عربانو د مقتدا او مشر په حيث بروز وکړ د شوروي له يرغل نه لږ موده وروسته د سعودي عربستان د جدې له پوهنتون څخه د پاکستان د اسلام اباد نړيوال پوهنتون ته د استاد په عنوان راغی. خو درې مياشتې وروسته يې د پوهنتون استادي پرېښوده او په افغانستان کې يې د شورويانو په خلاف مسلح جهاد پيل کړ.

شيخ عزام وروسته د مکتب الخدمات په نوم مرکز پرانيست چې د عربو مجاهدينو د رايوځای کيدو مرکز و، دغه راز يې له جهادي تنظيمونو سره په مرسته سربيره خپل ځانګړې پوځي تشکيلات هم رامنځته کړل او د پکتيا ولايت د ځاځيو په سرحدي سيمه کې يې د (مأسدة الانصار) په نوم معسکر پرانيست. شيخ عزام وتلی ديني عالم او

اورژبې خطیب و چې په خپلو جذابو بیانونو سره یې په لنډ وخت کې په عربي نړۍ کې جهادي هنګامه خپره کړه او د زرګونو په شمیر عرب ځوانان یې په جهادي فکر وروزل.

د شیخ عزام د فکر خلاصه دا وه چې اسلامي نړۍ د کفارو تر سیاسي، اقتصادي او فکري استعمار لاندې ده او په وړاندې یې باید نړیوال جهاد وشي. د همدې فکر په اساس شیخ عزام نه یوازې د افغانستان جهاد لازم باله، بلکې د نړۍ په نورو برخو کې یې هم د جهادي خوځښتونو د اغاز لپاره کار کاوه. خو شیخ عزام د پټو انفرادي بریدونو یا په اصطلاح انډرګراونډ مبارزې په نسبت علني او مفتوح جهادي فعالیت غوره او مؤثر باله، داسې جهادي جبهات چې د عام مسلمان ولس ملاتړ ورسره وي. له همدې امله خو نوموړي د نړۍ په بیلابیلو برخو کې خپلو پلویانو ته د انفرادي بریدونو اجازه نه ورکوله او پر ځای یې د فلسطیني حماس تنظیم او افغان جهاد ملاتړ کاوه.

د شیخ عزام تر مشرۍ لاندې زرګونو عرب مجاهدینو په شوروي ضد جهاد کې برخه واخیسته، ګڼ شمیر یې شهیدان هم شول چې تورخم ته نږدې یې مشهوره هدیره ده. عبدالله عزام په ۱۳۶۸ لمریز کال کې په پېښور کې یوې مرموزې چاودنې له غبرګو زامنو سره شهید کړ، خو پلویان او شاګردان یې د جهاد د بریا تر وخته په افغانستان او پاکستان کې موجود و.

د جهاد په وروستیو کلونو کې په پاکستان کې په عرب مجاهدینو فشارونه زیات شول، زیاتره یې بیرته خپلو هیوادونو ته لاړل او ځینې یې د نړۍ په نورو برخو لکه چیچنیا، صومال، بوسنیا او الجزایر کې له جهادي جبهاتو سره یوځای شول. شیخ اسامه بن لادن چې د سعودي اوسیدونکی او د شیخ عزام له بانفوذه شاګردانو څخه و، د جهاد په وروستیو کلونو کې سعودي عربستان ته لاړ. د خلیج د جګړې په مهال کله چې سعودي حکومت له امریکا مرسته وغوښته او امریکایي پوځیانو ته یې په خپله خاوره ځای ورکړ، اسامه او ملګرو یې د حرمینو په خاورو د صلیبي پوځیانو له شتون سره مخالفت وښود. همدا مخالفت د دې سبب شو چې اسامه نه یوازې د سعودي بلکې د

امریکایانو لخوا هم د دښمن په حیث معرفي شي، نو ځکه ورته د سعودي ځمکه سره شوه او سوډان ته په تللو مجبور شو.

په سوډان کې اسامه بن لادن په ودانیزو چارو بوخت و، خو امریکایانو هلته هم ارام پرې نه ښود او د سوډان له حکومته یې د نوموړي د ورسپارلو غوښتنه وکړه. د ستیوکول په نوم امریکایي لیکوال په خپل کتاب (جنگ اشباح) کې لیکلي چې هغه مهال امریکایان په داسې حال کې د اسامه په نیولو پسې وو چې د هغه د نیولو لپاره یې هیڅ قانوني مجوز په لاس کې نه درلود، ځکه اسامه د امریکا په خلاف کوم عمل نه و ترسره کړی او نه هم ورباندې کوم داسې تور موجود و چې د هغه محاکمه کولو ته لاره هواره کړي.

د ۱۳۷۵ لمریز کال په پسرلي کې هغه مهال چې د افغانستان جنوبي ولایات د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې د طالبانو په لاس کې و. پلازمینه کابل د برهان الدین رباني تر واک لاندې وه او د افغانستان په ختیځو سیمو کې د مشرقي شورا واکمني وه، د مشرقي د شورا ځینې قومندانان لکه استاد سازنور، انجنیر محمود، فضل حق مجاهد او ډاکټر امین د سوډان په انقلابي جشن کې د شرکت لپاره د هغه هیواد پلازمینې خرطوم ته لاړل. دا هغه وخت دی چې د سوډان په واکمن عمر البشیر د امریکا او سعودي فشارونه اوج ته رسیدلي تر څو اسامه بن لادن وروسپاري. عمر البشیر امریکایانو ته ویلي چې که د اسامه بن لادن په خلاف کوم اسناد لرئ له موږ سره یې شریک کړئ. خو امریکایانو بې له قید او شرطه د اسامه سپارل غوښتل. د مشرقي شورا قومندانان د پخواني شناخت په اساس له اسامه بن لادن سره گوري او دې توافق ته رسیږي چې اسامه بن لادن باید له خپلې کورنۍ او ملگرو سره افغانستان ته راشي.

په همدې ترتیب اسامه بن لادن له خپلو پنځلس تنه مهمو ملگرو او کورنۍ سره د مشرقي شورا په وساطت او په کابل کې د برهان الدین رباني د حکومت په تائید او مرسته افغانستان ته راغی او جلال اباد ښار ته نږدې د جهادي رهبر مولوي محمد یونس خالص صاحب په کوربه توب د نجم الجهاد په ښارگوټي کې میشت شو.

د همدې کال په سنبله میاشت کې طالبانو د ختیځو ولایاتو او کابل د نیولو عملیات پیل کړ، د جلال اباد له نیولو سره هغوی د اسامه بن لادن او د هغه د ملګرو له شتون څخه خبر شول او ملا صاحب د کابل له فتحې وروسته له عرب مجاهدینو سره د لیدنې او د هغوی د حال معلومولو لپاره درې کسیز هیئت وټاکه.

د غزني ولایت اوسیدونکی مولوي عبدالصمد چې د دې هیئت غړی و وایي موږ لومړی ځل ننګرهار ښار ته نږدې د مولوي خالص په فامیلو کې له شیخ اسامه سره ولیدل. له ده مو څو پوښتنې وکړې او ده په ځواب کې راته وویل چې: زه د شوروي خلاف جهاد له لومړیو کلونو دلته راغلی یم. په افغانستان کې مې جهاد کړی حتی په زرګونو ملګري مې دلته شهیدان شوي او په دې وطن کې دفن دي. کله چې جهاد کامیاب شو زه خپل وطن سعودي ته لاړم. هلته مې خپل تجارتي کارونه هم کول او ورسره مې د دنیا په مختلفو برخو کې له مجاهدینو سره همکاري کوله. ماته د سعودي د حکومت خلک راغلل چې که دلته اوسې یوازې به شخصي-کار کوې په جهادي چارو او سیاست به کار نه لرې. زه پوه شوم چې اصلا امریکایانو زموږ دیني فعالیت نه خوښاوه، وروسته ما په سعودي کې خپل ځان خوندي نه باله نو سوډان ته لاړم.

خو په سوډان کې هم امریکایانو په ارام پرې نه ښودم او زه مجبور شوم چې افغانستان ته راشم. افغانستان زما د جهاد کور و، زه غواړم چې دا مې د هجرت کور هم شي او که ما څوک له دې خاورې په زور ونه باسي نو زه غواړم چې تر مرګه همدلته واوسم او مرګ مې هم په همدې خاوره کې شي.

مولوي عبدالصمد وایي چې موږ د شیخ اسامه خبرې او له هغه سره د ملاقات جریان ولیکه او د راپور په شکل مو ملا صاحب ته راوړ. د ملاصاحب په دوی د مهاجرو او بې پناه ګاه مسلمانانو په حیث زړه وسوځید او د دې لپاره چې ښه پالنه یې شوې وي امر یې وکړ چې شیخ اسامه دې له خپلې کورنۍ سره له ننګرهاره کندهار ته رانقل کړای شي.

اسامه بن لادن وروسته خپل کور له ننګرهار څخه کندهار ته نقل کړ او د کندهار هوايي ډګر ته نږدې د هوايي ډګر د کارکوونکو لپاره په جوړو شویو پخوانیو کورونو کې یې واړول.

اسامه بن لادن د د ۱۹۹۸ م کال په فبرورۍ میاشت کې په خوست کې د ژوره په نامه پخوانۍ جهادي سیمه کې له ځینو بهرنیو خبریالانو سره مرکې وکړې او د مرکو په ترڅ کې یې د امریکا لخوا د جزیرة العرب اشغال وغانده او په مسلمانانو یې غږ وکړ چې د حرمینو له ځمکې د امریکایي پوځیانو د شړلو لپاره سره متحد شي.

د اسامه بن لادن دې خبرو امریکا یو ځل بیا وپاروله او له طالبانو یې غوښتنه وکړه چې اسامه بن لادن ورسپاري. د همدې کال د اګست په اوومه د کینیا او تانزانیا په پلازمینو نایروبي او دارالسلام کې د امریکا له سفارتونو سره چاودنې وشوې او د ګڼو نورو خلکو په شمول یې ۱۲ امریکایان ووژل شول چې پړه یې امریکا پر اسامه بن لادن واچوله. له دې برید دوه اونۍ وروسته د اګست په شلمه نیټه (۲۹ / ۵ / ۱۳۷۷هـ ش) د امریکا ولسمشر بل کلنټن په افغانستان کې د اسامه بن لادن په مراکزو د برید امر وکړ او په همدې شپه امریکایانو د هند له بحر څخه په افغانستان ۷۵ کروز توغندي وویشتل چې د خوست په ژوره کې د پخواني جهاد د وخت په سمڅو کې اوسیدونکي ځینې کسان یې زخمیان او شهیدان کړل.

د افغانستان په حریم د امریکایانو دغې حملې د طالبانو او امریکا تر منځ بالقوه دښمنۍ بالفعل حالت ته راوایسته، په افغانستان برید په درست هیواد کې د امریکا په خلاف ولسي قهر راوپاراوه، مظاهرې وشوې او د امریکا دغه اقدام سخت وغندل شو. په دې سربیره امریکایي حکومت او رسنیو هم د اسلامي امارت خلاف سخت تبلیغات او دښمنانه چلند پیل کړ او بل کلنټن فرمان صادر کړ چې په امریکا کې د افغانستان دحکومت ټولې شتمنۍ دې کنګل کړل شي. له همدې ځایه د شیخ اسامه موضوع د طالبانو او امریکا تر منځ په یوه داسې لانجه بدله شوه چې وروسته په مخامخ جنګ منتهي شوه.

## د اسامه بن لادن په اړه د ملاصاحب موقف

ملا صاحب اسامه بن لادن ته د یوه داسې بې کوره او مهاجر مسلمان په نظر کتل چې له افغانستان پرته یې بل هیڅ د پناه ځای نه درلود او له افغانستانه ایستل یې امریکا تـه د ورسپارلو معادل و. له همدې امله خو ملا صاحب د شیخ اسامه بـن لادن لـه شړلو سره موافق نه وه. بالمقابل هغه د موضوع د حل لپاره داسې طرحه درلـوده چې اسامه بـن لادن دې د یوه مهاجر یا پناه اخیستونکي په حیث په افغانستان کې واوسیږي خو پـه دې شرط چې د اسلامي امارت لخوا وضع شوي قیودات به رعایت کوي.

طالبانو رسما له شیخ اسامه غوښتي و چې د سعودي عربستان او نورو هیوادونو په خلاف دې دښمنانه څرګندونې او ګواښونه نه کوي. خو شیخ اسامه چې پـه افغانستان کې د اوسیدو په لومړیو دوو کلونو کـې لـه بهرنیـو مطبوعـاتو سره مرکـې کـړې وې او د غرب او سعودي خلاف یې کومې خبرې کړې وې، هغـه څرګنـدونې امریکایـانو د دې لپاره کافي بللې چې د اسلامي امارت په خـلاف د یـوې بهـانې پـه حیـث تـرې استفاده وکړي او د موضوع په پړسولو سره په طالبانو فشار وارد کړي.

دا چې امریکایانو پرلپسې له طالبانو څخه د شیخ اسامه د ورسپارلو او محـاکمې غوښـتنه کوله، ملا صاحب اعلان وکړ چې شیخ اسامه له قـانون څخـه پورتـه څـوک نـه دی، کـه نوموړي واقعا داسې کار کړی وي چې د اسلامي قانون له نظره نومـوړی مجرم پیژنـدل کیدای شي، بایـد د خپـل عمـل جـزاء وویني. پـه همـدې مقصـد ملاصـاحب سـترې محکمې ته حکم وکړ چې د شیخ اسـامه د موضـوع د څېړنـې لپـاره ځـانګړې محاکمـه اعلان کړي. د ۱۹۹۸ کال د نومبر په ۹ د اسلامي امارت د سترې محکمـې لخـوا د شیخ اسامه په اړه د اختصاصي محکمې د جوړولو خبر ورکړل شو او اعلان وشو چې کـه هـر څوک په شیخ اسامه باندې هر ډول دعوه لري تر راتلونکو شلو ورځـو دې خپلـه دعـوا په دې محکمه کې ثبت کړي او شواهد دې وړاندې کړي.

خو امریکایان چې له لویه سره یې دا موضوع فقط د یوې بهانې پـه حیـث کارولـه، دې اقدام ته یې کوم رسمي التفات ونکړ، نه یې په دې محکمه کې خپله دعـوا ثبـت کـړه او نه یې هم دا اقدام د مسئلې د حل په خـوا د یـوه اساسي ګـام پـه حیـث استقبال کـړ. د

محاکمې د فرصت په وروستیو ورځو کې په اسلام اباد کې د امریکا سفارت د اسلامي امارت چارواکو ته یوه ویډیو کیسټ د اسامه بن لادن خلاف شواهدو په حیث وسپاره. خو په هغه کیسټ کې د شیخ اسامه د پر ګڼلو لپاره هیڅ شواهد نه و، په کیسټ کې یوازې د سي این این ټیلویزیون هغه پخوانی راپور و چې په سوډان کې د شیخ اسامه د اوسیدو په مهال دې ټیلویزیون د نوموړي په اړه جوړ کړی و او یوازې یې هلته د شیخ اسامه د اوسیدو سیمه او د ده د ملګرو کورونو ښودل. د دې بې معنی ثبوت سپارل، خپله په دې ګواه و چې امریکایانو د شیخ اسامه خلاف کوم کره شواهد نه درلودل.

دا چې د شیخ اسامه د فعالیت او څرګندونو د محدودیت په اړه د طالبانو قاطع اقداماتو د امریکا په پالیسۍ کې بدلون رانه ووست او له طالبانو سره د دښمنۍ پاللو لپاره یې نورې خبرې لکه بشري حقوق، د ښځو تعلیم، پراخ بنسټه حکومت وغیره مطرح کړې، نو طالبان هم دې نتیجې ته ورسیدل چې امریکا له لویه سره له اسلامي نظام سره دښمني لري او د شیخ اسامه موضوع یې د یوې بهانې په حیث رامخکې کړې ده.

د طالبانو دغه برداشت څکه پر ځای و چې د ۱۹۹۹ میلادي کال په فبرورۍ کې چې کله رسنیو او طالبانو د شیخ اسامه د غیب کیدو او له افغانستانه د وتلو راپورونه نشر کړل د امریکا د بهرنیو چارو د وزرات ویاند جیمز رابن وویل: چې له افغانستانه د اسامه بن لادن په وتلو هم له طالبانو سره لانجه نه ختمیږي څکه د طالبانو نورې ډیرې داسې کړنې شته چې امریکا ته د منلو وړ نه دي.

امریکایانو او نورو هیوادونو د شیخ اسامه له موضوع څخه پرلپسې تبلیغاتي استفاده کوله، تر دې چې وروسته خبره سیاسي فشارونو او اقتصادي بندیزونو ته ورسیده. په داسې حال کې چې طالبان په کور دننه له یو عالم ستونزو سره مخ و او د نوې واکمنۍ د بنیادونو ټینګول او د هیواد استقرار ورته اولویت درلود، تر خپلې وسې یې هڅه کوله چې د شریعت په رڼا کې له امریکایانو سره د شیخ اسامه موضوع حل کاندي.

په وروستیو کې طالبانو د دې لانجې د ختمولو په مقصد او د دې لپاره چې د افغانستان ملت د امریکایي استعمار له اضافي اذیت څخه په امن شي، د موضوع د حل لپاره یې دوه نورې طرحې هم وړاندې کړې. یوه دا چې د افغانستان، سعودي عربستان او یوه بل

اسلامي هيواد علماء کرام دې سره کښيني او د دې موضوع د حل په اړه دې شرعي پريکړه وکړي. او که دا هم امريکايان نه مني او په اسلامي امارت يې باور نه وي، نو د اسلامي کانفرانس لخوا دې په افغانستان کې د شيخ اسامه د فعاليت څارلو وظيفه په غاړه واخيستل شي. اسلامي امارت به په دې برخه کې له اسلامي کانفرانس سره لازمه همکاري وکړي. تر څو د امريکايانو بهانې ختمې او موضوع حل شي.

خو امريکايانو د موضوع د حل لپاره دغه يوه طرحه هم ونه منله، هغوی غوښتل چې طالبان دې اسامه بن لادن ونيسي او بيا دې لاسترلې دوی ته وسپاري. چې دې کار نه ديني جواز درلود، چې په همدې اساس به ملا صاحب دا خبره بيا بيا به کوله چې د اسامه بن لادن له نه سپارلو سره د اسلام علو تړلې ده (الاسلام يعلو و لا يعلی عليه) او نه هم د اسامه سپارل د افغان ولس له تاريخي رواياتو او کلتور سره برابر کار و. د امريکا لخوا د يادو طرحو پرلپسې ترديد ملاصاحب دې نتيجې ته ورساوه چې امريکايان اصلا له اسلامي نظام سره ستونزه لري او په هيڅ صورت نه غواړي چې موضوع د تفاهم له لارې حل کړي.

### له امريکايي طاغوت سره مخامختيا

طالبان په داسې وخت کې واک ته ورسيدل چې د امريکا متحده ايالاتونو ځان د نړۍ يکه تاز زبرځواک باله. د شلمې پيړۍ په وروستيو کې د افغان مجاهدينو (چې له جملې يې يو هم ملا محمد عمر مجاهد و) د ميړانې او قربانۍ په برکت شوروي اتحاد ونړېد. د شوروي زوال په حقيقت کې د يوې تاريخي مرحلې پای ته رسيدل و چې په نړيوال نظم کې يې اساسي تغيرات راوستل. د شوروي په نړيدلو سره جګړه پای ته ورسيده، په دوه قطبونو ويشل شوې نړۍ يوقطبي شوه، غرب او په خاص ډول امريکا په يو اړخيز ډول د زبرځواکۍ موقف خپل کړ، تر دې چې د فرانسيس فوکاياما په شان ځينو فيلسوفانو د غرب دغه عروج د ليبرال دموکراسۍ تلپاتې بريا او د تاريخ پای ونوماوه.

په هماغو کلونو کې چې امریکا په درسته نړۍ د خپل (نوي نړیوال نظام) د پلي کولو خوبونه لیدل په افغانستان کې ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي سیاسي حاکمیت د احیاء بیرغ پورته کړ او وروسته له ډېر وخته یې د اسلامي امارت بنسټ کیښود.

د طالبانو د تحریک له پیل نه بیا له امریکا سره د مخامخ جګړې د پیښېدو تر وخته د طالبانو او غرب په خاص ډول امریکاتر منځ تعامل له ټولو هغو پړاوونو تیر شو چې معمولا دغسې حرکتونه ورسره مخامخ کیږي.

د بشریت تاریخ رابښیي چې په هره زمانه کې د طاغوت په وړاندې د حق آواز چې کله لومړی را پورته کیږي، طاغوتي قوتونه هڅه کوي ځان ورباندې ناګاره واچوي، تر څو یې سپک او بې اغیزې معرفي کړي. کله چې د حق غږ د طاغوتیانو د توقع خلاف قوت پیدا کوي. بیا نو طاغوت لومړی خپلې سړې حربې کاروي. د حق د اهل کولو، تیر ایستلو، په خپله ګټه د کارولو او کنترول هڅه کوي. کله چې دا هڅه هم نتیجه ورنکړي نو بیا د امتیازاتو او مادي معاملو په توسط هڅه کوي چې د حقانیت رڼا یې ورپیکه او اعتبار یې له منځه یوسي. خو که دغه ټولې حربې کار ورنکړي بیا نو طاغوت د فشار او دښمنۍ وسیلې په کار اچوي. مقاطعه، بندیز، په غیر مستقیم ډول دښمني لکه د مخامخ دښمنانو تقویه کول او داسې نور ډول ډول حربې. او که دا فشارونه هم کار ورنکړي نوبالاخره طاغوت د حق په وړاندې مخامخ د مقابلې ډګر ته راووځي او خبره تر جګړې رسیږي. البته د طاغوتي قوتونو د دې حربو که څه هم انواع او اشکال مختلف وي مګر هدف یې یو وي. د برحق پاڅون خاموش کول او یا هم له خپل اصلي مسیر او مبادئو څخه یې منحرف کول.

د ملا محمد عمر مجاهد د اسلامي خوځښت په وړاندې د امریکا چلند هم له همدې مرحلو راتیر شو تر دې چې د مخامخ جګړې تر حده ورسېد. هغه مهال چې طالبان له کندهار راپورته شول او د افغانستان جنوب یې له فساد او فتنو څخه تصفیه کړ، بیا د پلازمېنې کابل د فتحې تر وخته د شاوخوا دوو کلونو په جریان کې امریکا د طالبانو په شتون ځان ناګاره اچولی و او په رسمي ډول یې له طالبانو سره کومې اړیکې یا دیپلوماتیک تعامل نه درلود.

کله چې د طالبانو تحریک کابل فتحه کړ، امریکایان وپوهیدل چې دغه خوځښت نور د دې وړ نه دی چې له شتون څخه یې انکار وشي. دا مهال که څه هم د ملل متحد د امنیت شورا په شمول د نړۍ یو شمیر هیوادونه د ډاکټر نجیب د اعدام له امله طالبانو ته قهرورې وو خو امریکایانو د طالبانو په وړاندې نرمه رویه را واخیسته. د پلازمینې کابل له فتحې وروسته د امریکا حکومت په سیمه کې خپلو سیاسي استازو ته امر وکړ چې له طالبانو سره اړیکي جوړې کړي. د ۱۹۹۶ میلادي کال د مارچ په ۸ مه (۱۸ / ۱۲ / ۱۳۷۴ هـ.ش) په اسلام اباد کې د امریکا سفیر ټام سیمنز د اسلامي امارت د بهرنیو چارو له وزیر ملا محمد غوث سره وکتل. په همدې میاشت کې د امریکا د بهرنیو چارو مرستیالې وزیرې میرمن رافایل په نیویارک کې د امنیت شورۍ په یوه غونډه کې په نړیوالو غږ وکړ چې له طالبانو سره اړیکي جوړې کړي. نوموړې وویل (طالبان د افغانستان دوه ثلثه خاوره تر واک لاندې لري، د هغوی د موفقیت راز دا دی چې عام افغانان یې ملاتړ کوي ځکه د افغانستان ولس د بې نظمۍ او ګډوډۍ په ځای نظم ته ترجیح ورکوي. طالبانو ثابته کړې چې د پایښت توان لري، د هغوی تجریدول د هیچا په ګټه هم نه دي.)

خو د طالبانو د اسلامي تحریک په وړاندې د امریکا دا وړ چلند په اصل کې د هغوی سره حربه وه، هغوی غوښتل چې طالبان په سیمیزه کچه د امریکا د ګټو په مسیر برابر کړي. د ۱۹۹۶ میلادي کال د اکتوبر په اوومه د امریکا د جمهوري پال ګوند یوه پیژندل شوي غړي زلمي خلیلزاد په واشنګټن پوسټ ورځپانه کې په یوه مقاله کې ولیکل (د طالبانو اسلامي حکومت د سعودي اسلامي نظام ته ورته دی چې د امریکا د دښمن (ایران) ضد دی) مطلب دا چې امریکا د طالبانو اسلامي تحریک ته د یوه داسې اسلامي خوځښت په نظر کتل چې د ځینو نورو تش په نامه اسلامي هیوادونو په څیر د امریکا د سیمیزو ستراتیژیو د تطبیق په لاره کې د همکار یا پارټنر رول اداء کولای شي.

خو له دې نرمو خبرو سره سره امریکایانو له پیله د طالبانو په اسلامي اصلاحاتو اعتراضونه لرل. او بیا بیا یې یادونه کوله چې طالبان باید د بشر د حقوقو ساتنه وکړي. ښځو ته ازادي ورکړي او د شرعي قوانینو له پلي کولو لاس واخلي.

د امریکا یونیکال شرکت په همدې مرحله کې هوډ څرگند کړ چې غواړي له ترکمنستان څخه د اسیا جنوب ته د گازو نل لیکه تیره کړي او په دې برخه کې له اسلامي امارت سره له بیا بیا خبرو وروسته یې په کندهار کې دفتر هم پرانیست. دا نل لیکه د جگړه ځپلي افغانستان لپاره یوه مهمه اقتصادي پروژه ثابتیدای شوای چې ورسره به د هیواد بیا رغونې او ولس د اقتصادي ترقی لپاره ډېر امکانات په لاس راتلل. خو امریکایانو هڅه کوله دغه اقتصادي پروژه هم د طالبانو د ایل کولو لپاره د یوې وسیلې په حیث وکاروي. لومړی یې په اړونده برخه کې په لوړه سطحه مذاکرات وکړل، سفرونه وشول او وروسته چې خبره د عملي اجراء مرحلې ته ورسیده. موضوع ته یې سیاسي رنگ ورکړ او د پروژې تطبیق د امریکا د سیاسي ملاحظاتو تر رفع کیدو وتړل شو.

خو دا په طالبانو په خصوصا د اسلامي امارت په زعیم ملامحمد عمر مجاهد د الله تعالی یو ځانگړی مرحمت و چې د امریکا او نورو نړیوالو طاغوتیانو د بیلابیلو مکرونو او حربو په وړاندې په خپلو اصولو ثابت پاته شول او د هغوی په لومه کې گیر نه شول. د امریکا د همدې سړو حربو او فریبونو له ناکامۍ وروسته امریکا خپل د حیله گری له سیاست څخه مایوسه شوه نو ځکه یې د هغو طالبانو په وړاندې د بربنډې دښمنی موقف خپل کړ چې تر پرونه یې د افغانستان د واکمنۍ اصلي حقداران بلل.

****

# شپږم فصل

## په افغانستان د امریکا پوځي یرغل

### د سبتمبر د یوولسمې حمله

د رسنیزو معلوماتو له مخې په دې ورځ د امریکا د باستن، نیویارک او واشنګټن ډي سي له هوایي ډګرونو څخه څلور مسافر وړونکې الوتکې د ۱۹ تنو الوتک تښتوونکو لخوا وتښتول شوې. لومړی دوه الوتکې په محلي وخت شاوخوا نهه بجې په نیویارک کې د نړیوال تجاري مرکز په غبرګو اسمانڅکو برجونو ووهل شوې چې ورسره په دواړو برجونو کې اور ولګېد.

نیم ساعت وروسته دریمه الوتکه په واشنګټن ډي سي کې د امریکا د دفاع وزارت (پېنټاګون) په ودانۍ ووهل شوه او څلورمه الوتکه چې د امریکایي چارواکو له قوله په سپینه ماڼۍ د وهلو لپاره د واشنګټن په خوا روانه وه د سپرلیو او الوتک تښتوونکو تر منځ د جنجال له امله په پنسلوانیا ایالت کې وغورځېده.

څومره چې دا پیښه ستره او پیچلې وه په وړاندې یې د بوش په مشرۍ د امریکایي حکومت چلند دومره سنجول شوی او دقیق نه و. د (بوش په جنګ کې) کتاب د معلوماتو له مخې هغه مهال چې لومړۍ الوتکه د نړیوال تجارتي مرکز په برج باندې وهل کېدله د امریکا د استخباراتو د مرکزي ادارې (سي آی اې) مشر جورج ټېنټ د سپینې ماڼۍ شمال ته په یوه هوټل کې له خپل ملګري پخواني سناتور ډیویډ بورن سره په ناشته ناست و. دوی په مجلس وو چې ناڅاپه د جورج ټېنټ ساتونکی په منډه هوټل ته ورغی، د دوی میز ته ودرید او ټېنټ ته یې وویل چې په نیویارک کې په نړیوال تجاري مرکز حمله شوې. جورج ټېنټ سمدستي ولاړ شو او بورن ته یې وویل: دا کار د اسامه بن لادن دی.

د سپتمبر د یوولسمې حملو د امریکا متحده ایالاتو ته کمساري تکان ورکړ چې په تعقیب یې د بوش حکومت بې سابقې اضطراري اقدامات نافذ کړل. په واشنګټن کې اضطراري حالت اعلان او په تعقیب یې سپینه ماڼۍ، دفاع او داخله وزارتونه او نورې مهمې ادارې تخلیه شوې. په نیویارک کې د ملل متحد د مرکزي دفتر ودانۍ، وال سټریټ او د امریکا نږدې ټول هوايي ډګرونه تخلیه او اضطراري حالت په کې نافذ شو. د امریکا پوځ د پنځو جنګي کښتیو او دوو الوتک وړونکو بیړیو په توسط د امریکا د ختیځ ساحل څارنه پیل کړه او ولسمشر بوش چې په دې ورځ د امریکا په فلوریډا ایالت کې و د څانګړې الوتکې په توسط نامعلوم لورې ته والوت چې له پیښې لس ساعته وروسته سپینې ماڼۍ ته راستون شو.

د رسمي شمیرو له مخې د سپتمبر د یوولسمې په حملو کې ۲۹۹۲ تنه ووژل شول چې ۱۲۵ تنه یې د یوه جنرال په شمول د پینټاګون پوځي چارواکي وو. دغه حمله د امریکا په تاریخ کې یوه له سترو حملو بلل کیږي چې د دې هیواد د تاریخ په بدلون سربیره یې د نړۍ په کچه هم پراخې اغیزې ولیدل شوې. له دې حملو نهه ساعته وروسته د امریکا سي این این ټیلویزوني چینل د امریکايي مقاماتو له خولې خبر ورکړ چې د دې بریدونو مسؤل اسامه بن لادن دی او دا حمله له افغانستان څخه طرح شوې ده.

د نیویارک سهار چې د افغانستان ماښام کیده، ملا محمد عمر مجاهد له دود سره سم په خپل میشت ځای کې و، چې د دفتر کارکوونکي یې (سید طیب اغا) په امریکا د حملو په اړه خبر ورکړ.

**له پیښې وروسته**

د سپتمبر د ۱۱ مې له پیښې وروسته د امریکا د فدرالي تحقیقاتو ادارې ایف بي آی او سي آی اې دواړو له پیښې یوه ورځ بعد شیخ اسامه بن لادن د بریدونو طراح وباله، د سپتمبر په دوولسمه د امریکا حکومت د عربو په خلیج کې خپلو پوځونو ته د تیارسۍ حکم وکړ او امریکايي ولسمشر بوش په خپله لومړنۍ وینا کې طالبانو ته وویل چې باید عرب مجاهدین بې مقدمې لاسټرلي دوی ته وسپاري بوش وویل (موږ به د هغو چې دا عمل یې کړئ او دهغو چې دوی ته یې ځای ورکړی دی ترمنځ فرق ونه کړو او

دوی ټولو ته به سزا ورکړو ) له دې څخه معلومیده چې امریکا د جنګ قطعي اراده کړې ده.

د پېښې په تړاو د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر وکیل احمد متوکل صاحب له سي این این ټیلویزوني شبکې سره په مرکه کې په پیښه کې لاس لرل په کلکه رد کړل او ویې ویل چې دغه پیښه تردې ستره ده چې عادي خلک یې له دومره لرې هیواد څخه طراحي او ترسره کړای شي. د اسلامي امارت له رد نه وروسته د القاعده تنظیم لخوا هم په پیښه کې لاس درلودل رد شول خو د بوش په مشرۍ د امریکا جنګ غوښتونکې حکومت هغه مهال یوازې د جنګ او یرغل په اړه فکر کاوه.، طالبانو هڅه کوله له دیپلوماتیکو لارو په استفاده له امریکا سره په خبره ځان پوه کړي تر څو واقعي ګرم او ناګرم معلوم شي. طالبانو په رسمي کچه د پیښې روښاوی غوښت، خو امریکایان عملا دحملې لپاره په پلان ګذارۍ او سلا مشورو بوخت وو.

په (بوش اټ وار ) کتاب کې ثبت شوی جریان څرګندوي چې د سبتمبر له یوولسمې نیولې بیا د اکتوبر تر اوومې ( دیرغل ترورځې ) دسپینې مانۍ، پینټاګون او سي آی اې چاراوکي یوازې په جګړه ایزو سلا مشورو او د انتقام اخیستلو په اقداماتو بوخت وو او بل هیڅ بدیل اقدام یې په رسمیت نه پیژاند. په کتاب کې د پیښې د څلورمې ورځې د جریان په اړه راغلي ( شنبه د سبتمبر په پنځلسمه په کمپ ډیوید کې ټوله ورځ د جنګ په ستراتیژۍ خبرې روانې وې)[1]

امریکایانو په څو محاذونو کې د یرغل لپاره تمهیدي اقدامات پیل کړل، د امریکا ولسمشر جورج ډبلیو بوش بیلابیلو هیوادونو ته سفرونه وکړل تر څو په افغانستان د یرغل لپاره نړیواله ټلواله جوړه کړي. نوموړي وتوانید چې د نړۍ د لسګونو هیوادونو ملاتړ خپل او دې ته یې اماده کړي چې د افغانستان د اسلامي حکومت په نړولو کې پوځي یا استخباراتي مرسته وکړي. د بوش د همدې هڅو نتیجه هغه وخت معلومه شوه

(۱) بوش په جنګ کې ( بیلابیلې صفحې) لیکنه باب ووډ وارډ. ژباړه ډاکټر نثار احمد صمد

چې د امریکا د یرغل په تعقیب د نړۍ ۴۸ ملکونو خپل عسکر افغانستان تـه راولیږل له دې علاوه رسنیو افشاء کړه چې د سیمې ۲۱ ملکونو په پټه له امریکا سره لاس یـو کړې و او د طالبانو په خلاف یې ورسره استخباراتي مرسته کوله.

دا بیخي د نه منلو وړ و چې د سپتمبر له حملو وروسته ټولـه نـړۍ د امریکـا پـه پلوۍ د افغانستان په مخالف صف کې ودریده، د روسیې او منځنۍ اسیا لـه هیوادونـو را ونیسه بیا د نړۍ د بیلابیلو سیمو تر هیوادونو پورې ټول د بوش د جګړییز منتر تـر اغیـز لاندې راغلي و، د افغانستان د ګاونډیانو له جملې پاکستان او ازبکستان امریکایـانو تـه پـوځي اډې ورکړې تر څو په افغانستان باندې ترې حملې وشي. په هغـه وخـت کـې د نـړۍ په سطحه یوازینی مشـر د عراق صدام حسـین و چـې د سـپتمبر پـه پنځلسـمه نیټـه یـې په افغانستان د امریکا احتمالي برید دولتي ترهګري وبلله او دغسې اقدامات یـې پـه کلکه وغندل.

که بوش د نړیوالې ټلوالې په جوړولو بوخت و، پوځي او اسـتخباراتي چـارواکي یـې په سیمه کې د جنګي امکاناتو په تهیه کولو، هوایي ډګرونو موندلو، د اجیرانـو اسـتخدام او سیمې ته د جنګي ابزارو په رسولو مصروف وو.

طالبان د الله تعالی په خورا ستره آزموینه کې واقع وو، درسته نړۍ ورته په بـده اوښـتې وه او د انتقام غاښونه یې ورته تیـره کـول، حتـی د نـړۍ د اسـلامي هیوادونـو مشـران هـم د بوش او ټوني بلېر په صف کې دریدلي وو. په همدې حالـت کـې چـې درسـتې نـړۍ د امریکا د زور او دبدبې نغارې غږولې د اسلامي امارت مشـر ملا محمد عمر مجاهـد کـه څه هم پرلپسې د هیـواد او اسـلامي نظام د نجات پـه هڅـو بوخـت و خـو دې سـختو حالاتو یې عزم نه و لړزولی او په پوره حوصـله او متانـت یـې لـه راتلونکـو حوادثـو سره مخامختیا ته امادګي نیوله.

### د امریکا د دښمنۍ او یرغل په اړه یې ارزونه

ځیني خلک فکر کوي چې ملا محمد عمر مجاهد د امریکا د نړیوال پوځي او سـیاسي پرستیژ او جنګي قوت په اړه دقیقه ارزونه نه درلوده نو ځکه یې د امریکایي یرغل خطر

هم ډېر مهم نه باله او په همدې اساس يې امريکا ته د شيخ اسامه بن لادن او نورو بهرنيو مهاجرينو له سپارلو څخه ډډه کوله. خو واقعيت داسې نه و، د ملا صاحب نږدې ملګري وايي چې نوموړي دا فرض کړې وه چې امريکا به په خپل ټول قوت سره په افغانستان يرغل وکړي.

نه نو بيا هغه کوم دلائل و چې له مخې يې ملا صاحب دې دومره ستر خطر ته اوږه ورکوله خو د بهرنيو مجاهدينو او مهاجرينو تسليمي يې نه قبلوله؟؟

ملا محمد شيرين اخند چې د امارت د مقام د امنيت مسؤليت يې درلود او له ملا محمد عمر مجاهد سره يې نږدې ملګرتيا او تعلقات درلودل په دې اړه خپل د سترګو ليدلې او د غوږو اوريدلې حال بيانوي چې تر ډيره د امريکايي يرغل په اړه د ملا صاحب ليد ډول ترې معلوميږي. ملا محمد شيرين اخند وايي: د سپتمبر له پيښې وروسته چې امريکا د جګړې په تياريو بوخته وه، امريکايي جنګي بيړۍ په سمندر کې را رواني وې او راډيوګانو پرليسې د يرغل تبليغات کول، په دې شپو کې به ملا صاحب ته ډېر کسان راتلل او ډول ډول مشورې او خواستونه به يې ورسره شريکول. ځينو به ويل چې اسامه بن لادن او د هغه ملګري دې امريکا ته وسپارل شي او نورو به بيا نور قسماقسم مشورې درلودې.

دغه وخت چې هره شبېه د امريکا د يرغل خطره موجوده وه ملا صاحب يو څه احتياط کاوه او ډېر مخامخ ملاقاتونه يې نه کول. يوه ورځ يو لوی ټولی علماء کرام راغلي وو، له ماسره يې وليدل او راته ويې ويل چې زموږ مشوره ملا صاحب ته ورسوه. هغوی ويل چې ملاصاحب دې اسامه ته امر وکړي چې له افغانستان څخه کوم بل هيواد، مثلا د تاجکستان ساحې ته واوړي له هغه ځايه دې په سټلايت رسنيو ته ووايي چې زه په افغانستان کې نه يم، دا چې امريکايانو ته د سټلايټ په واسطه د هغه دقيق ځای معلوميږي نو به پوه شي چې په افغانستان کې نور اسامه بن لادن نشته په دې ډول به د امريکا د يرغل مخه ونيول شي.

ملا شيرين اخند وايي زه د مازديګر د لمانځه پر وخت د ملا صاحب ځای ته ورغلم، د لمانځه له اداء کولو وروسته مې له ملا صاحب سره ملاقات وشو او ورته مې ويل چې

څه خبره درسره لرم. هغه د مسجد شاخواته روان شو، هلته د ډبرو په ژغل باندې کیناستو او بیا مې د راغلیو علماء خبره په پوره تفصیل بیان کړه.

زما له خبرو وروسته ملا صاحب په پوره حوصله او تفصیل سره خپل ځواب پیل کړ، ملاصاحب د خپلو خبرو په پیل کې له ما پوښتنه وکړه چې که امریکا په رښتیا په موږ حمله وکړي زموږ حکومت به څومره وخت مقابله ورسره وکړي؟

ماورته وویل نه پوهیږم. ملاصاحب خپله پوښتنه په خپله ځواب کړه او ویې ویل: زه خو فکر کوم چې که موږ مخامخ ډېر مقاومت وکړ ایله به دوه میاشتې مقاومت وکړو. له هغه وروسته به د امریکا غلبه راځي. بمبارونه، حملې، د کورونو او ښارونو ورانیدل او د مسلمانانو شهادتونو او اسارتونه به وي. بیا به د امارت هر کس امریکایانو ته مطلوب وي او قسماقسم سزاوې به ورکوي. او زه به د الله تعالی په ذات قسم درته وکړم چې ما د ځان، یا خپل زوی، قریب یا انډیوال لپاره پرمخ د ځمکې یوه لویشت د امن ځای هم نه دی برابر کړی او نه هم په هیڅ ځای کې د پناه ځای لرم. چې داسې ده نو په دې حمله کې خو به زه او زما اولادونه او کورنۍ هم تباه کیږي.

نو چې دا ټول مشکلات راروان دي او دفع کیدل یې یوازې په دې کیدلای شي چې زه اسامه بن لادن امریکا ته په لاس ورکړم. په دې صورت کې زه ولې شیخ اسامه امریکا ته نه سپارم؟ ولې دا ټول مشکلات قبلوم خو دغه یو کار نه کوم؟

ملا صاحب په پوره جدیت پسې زیاته کړه: ګوره دوه خبره دي اول دا چې زه په دنیا کې هر ډول تکلیف، شهادت، اسارت او هر څه قبلولای شم مګر په آخرت کې د الله تعالی په وړاندې بې ځوابي او شرمیندګي نه شم قبلولای. زه په دنیا کې دې ته حاضر یم چې حکومت او هر څه هستي مې له لاسه ولاړه شي خو د قیامت په ورځ د الله تعالی په مخکې ملامتیا او رسوایي قبلول راته ډېر سخت دي. له ما به الله تعالی ضرور پوښتنه کوي چې دغه مسلمانان دې به کوم دلیل کافرانو ته په لاس ورکړل.

دوهمه خبره دا ده چې زه به په قسم درته ووایم چې همدا اوس شیخ اسامه راونیسې او امریکا ته یې غاړه وروځړوې بیا مو هم والله که پریږدي. د امریکا دښمني له موږ سره د

اسامه له امله نه ده بلکې دا نظام يې نه دی خوښ او پـه هـره بهانـه چـې وي دا نظـام لـه منځه وړي.

د امریکا مثال د مکارې ښځې په شان دی. که دې دا غوښتنه ورسره ومنله سمدستي بلـه غوښتنه رامخکې کوي، که دې هغه ومنله ورپسې بله غوښتنې تر دې چې پـه اخـر کـې دې هم دې ته مجبوروي چې د نه ځواب ورکړي او غوښتنه يې ونه منې. نو که موږ يـې هم دا غوښتنه ومنو، سمدستي وايـي چـې اسـلامي قـوانين مـو معطـل کـړئ کنـه حملـه درباندې کوو، بله ورځ بله غوښتنه لري، آخر مو هم داسې حد ته رسوي چې غوښـتنې يې ور رد کړو، نـو چـې وروسـته يـې غوښـتنې ور ردوو ولـې پـه اول کـې لا ځـواب نـه ورکوو. ولې د اسلام او مسلمانانو ضعف او بي همتي ورتـه ښـکاره کـوو. زمـا يقـين دی چې امريکا مو تر هغو نه پريږدي تر څو له ټول اسلامي نظامه نه يو ورتير شوي.

**په کابل کې د علماء کرامو لويه غونډه**

وړاندې يادونه وشوه چې ملا صاحب د سياسي، پوځي او نورو مواقفو د اتخاذ په مهـال اسلامي شـريعت ته رجـوع کولـه او پـه مسـائلو کـې يـې لـه دينـي علـماء کرامـو څخـه وضاحت او فتوی غوښتله. د سپتمبر د يوولسمې له پيښې وروسته چې امريکـا د جنـگ گواښونه پيل کړل او مطبوعاتو هم د افغانانو د ويرولـو پـه مقصـد د رواني جنگ او ډار خپرولو کمپاين پيل کړی و. ملا صاحـب له دغو امتحاني شيبو سره د شـرعي هداياتو پـه رڼا کې چلند وکړ او د امريکا په وړانـدې د سرټيټـي پـه ځـای يـې د الله تعـالی دربـار او محمدي شـريعت ته رجوع وکړه تر څو د دې امتحـاني مرحلې پـه اړه تـرې لاره چـاره طلب کړي.

د ۱۳۸۰ لمريز کال د سنبلې د مياشتې په ۲۶ مه نېټه ملا صاحب د يوې عمومي توصـيې په خپرولو سره ټولو مؤمنو هيوادوالو او په خاص ډول د اسـلامي امـارت کـارکوونکو تـه هدايت ورکړ چې په راغلي امتحان کې د کاميابۍ او ثبـات لپـاره د قـران کـريم ختمونـه وکړي، د سهار په لمانځه کې دې قنوت نازله ويل شـروع کړي او د الله تعـالی دربـار تـه دې عجز، زارۍ او دعـاء گانې وکړي تر څو مو الله تعالی له دې امتحـاني مرحلې څخـه بريالي وباسي.

دا چې مسئله خورا ستره وه او له دیني اړخه یې تحلیل او مشورو ته ضرورت درلود، ملا صاحب د موضوع په اړه د نهایي فیصلې لپاره د علماء کرامو د سترې غونډې د رابللو فرمان صادر کړ، تر څو د موضوع په ټولو ابعادو ژور فکر وکړي او بیا اسلامي امارت ته یوه شرعي فیصله او تګلاره په لاس ورکړي تر څو اسلامي امارت د همدغې متفقه فتوی په رڼا کې دریځ غوره کړي.

د اسلامي امارت په مهال د علماء کرامو سترې غونډې عموما د سترو او فوق العاده مهمو تصامیمو په اړه د غور او پریکړې صادرولو لپاره راغوښتل کیدلې. د علماء کرامو لومړنۍ ستره شوری د ۱۳۷۵ لمریز کال په حمل کې په کندهار کې راغوښتل شوې وه چې د پریکړې له مخې یې د افغانستان اسلامي امارت د حاکم شرعي نظام په حیث ومنل شو او ملا محمد عمر مجاهد ته یې د شرعي زعیم په حیث د امیرالمؤمنین لقب ورکړ.

د علماء کرامو دوهمه ستره غونډه هم هغه مهال په کابل کې دائره شوه کله چې په مزار شریف کې د ایراني دیپلوماتانو د وژلو له پېښې وروسته ایران په افغانستان د یرغل ګواښ وکړ او د افغانستان په سرحد کې یې پراخې پوځي مانورې پیل کړې. هغه مهال هم اسلامي امارت ځان اړ ګانه چې د یوه رسمي شرعي موقف د غوره کولو لپاره له دیني علماء کرامو مشوره او فتوی واخلي تر څو له راغلي وضعیت سره د شرعي چلند د اختیارولو په برخه کې ورسره مرستندوی شي.

د سپتمبر له حملې وروسته د امریکا د یرغلیزو ګواښونو په مرحله کې یو ځل بیا اسلامي امارت اړ و چې له وضعیت سره د سنجول شوي شرعي چلند په اړه د ټول هیواد له مخورو دیني علماء کرامو څخه هدایات واخلي. په دې ډول د سپتمبر له ۱۷ مې نیټې څخه د هیواد له ګوټ ګوټ نه کابل ته د مخورو علماء کرامو د راتګ سلسله پیل شوه. دغه غونډه چې د کابل په مشهور حکومتي میلمه ځای (انټر کانټیننټال هوټل) کې یې د تدویر بندوبست شوی و د سپتمبر په ۱۹ نیټه (۲۸ / ٦ / ۱۳۸۰هجري شمسي) د ۱۰۰۰ تنو علماء کرامو په ګډون سره پیل شوه. په غونډه کې د اسلامي امارت د ریاسة الوزراء د مرستیال ملامحمد حسن اخند په شمول د اسلامي امارت یو

شمیر منسوبینو هم گډون درلود او د دریځ چلولو چارې یې د اسلامي امارت د معارف د وزیر ملا امیرخان متقي په غاړه وې، غونډې ته دملا محمد عمر مجاهد لخوا هم یو توضیحي پیغام رالیږل شوی و چې په هغه کې د شیخ اسامه د موضوع له امله له امریکا سره جنجال، تر اوسه د اسلامي امارت لخوا تر سره شوي اقدامات او د موضوع اړوند نور وضاحتونه بیان شوي وو. او په پای کې له علماء کرامو څخه غوښتل شوي وو چې د دې موضوع د حل لپاره اسلامي امارت د شریعت مقدسه په رڼا کې فتوی ورکړي تر څو په آینده کې ورباندې عمل وشي.

دا غونډه چې دوه ورځې روانه وه له ژورو بحثونو او سلامشورو وروسته یې پریکړه لیک صادر کړ چې په لاندې ډول دی.

## د افغانستان په پاک حریم د تیري په اړه د جیدو علماء کرامو شرعي فتوی او پریکړه لیک

په کابل کې د ۳/۷/۱۴۲۲ هـ ق ۱۲۱ ۱۹ ۱ ۲۰۰۱م نېټې د علماء کرامو د سترې غونډې پریکړه لیک او شرعي فتوی

الحمد لله رب العالمین والصلاة والسلام علی أشرف الأنبیاء والمرسلین محمّد وعلي آله وأصحابه أجمعین.اما بعد:

دا چې د افغانستان ملت همېشه د خپلو سترو مسئلو د حل لپاره علماء کرامو ته مراجعه کړې، علماء کرامو یې د مشکل د حل لپاره نه سترې کېدونکې هلې ځلې کړې، په اوسنی لویه پېښه کې چې افغانستان ته د امریکا له لورې د برید خطر متوجه دی د افغانستان علماء د خپل درانه مسئولیت له مخې د مشکلاتو د حل لپاره د اسلامي دین په رڼا کې په لاندې ډول فتوی او فیصله صادروي:

۱ ـ د افغانستان علماء د امریکا د تلفاتو په اړه خفګان ښکاره کوي او د افغانستان علماء په دې هیله دي چې امریکا به په افغانستان حمله ونه کړي او د دغې پیښې په اړه دې له پوره زغم او دقت څخه کار واخلي او د موضوع په اړه دې پوره تحقیقات ترسره کړي.

۲ ـ د افغانستان علماء غوښتنه کوي، چې د امریکا د وروستیو پیښو په اړه دې ملګري ملتونه او اسلامي کانفرانس دقیقه پلټنه ترسره کړي، چې اصلي حقیقت معلوم شي او د بې ګناه خلکو د ځورولو مخه ونیول شي.

۳ ـ ملګري ملتونه او اسلامي کانفراس دې د امریکا د جمهور رئیس په دې خبره غور وکړي چې هغه ویلي دي چې دا جنګ به صلیبي جګړه وي، دغې خبرې د ټولې نړۍ مسلمانان په احساساتو راوستلي او نړۍ یې له یوې لویې خطرې سره مخامخ کړې ده.

۴ ـ د دې لپاره چې د اوسني جنجال مخه ونیول شي او هم په آینده کې د دا ډول پیښو په صورت کې بدګوماني رامنځته نه شي، د علماء کرامو دغه ستره شوری اسلامي امارت ته سپارښتنه کوي، چې اسامه بن لادن تشویق کړي ترڅو په ممکنه وخت کې په خپله خوښه له افغانستان څخه ووځي او د ځان لپاره کوم بل ځای انتخاب کړي.

که د پورته پریکړو په رڼا کې بیا هم امریکا قناعت ونه کړي او په افغانستان باندې حمله وکړي د مقدس شریعت په رڼا کې یې حکم په لاندې ډول بیانیږي.

لومړی :

زمونږ د فقهې کتابونه لیکي چې که چیرته کافران د مسلمانانو د کوم هیواد د خاورې په حریم باندې حمله وکړي د هغه هېواد په مسلمانانو جهاد فرض ګرځي او د قرآن کریم ایاتونه او احادیث مبارکه او د فقهې ټول کتابونه مسلمانانو ته د جهاد امر کوي:

لومړی آیاتونه:

۱. ﴿يَأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُواْ قَاتِلُواْ الَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ الْكُفَّارِ وَلْيَجِدُواْ فِيكُمْ غِلْظَةً وَاعْلَمُواْ أَنَّ اللهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ﴾ [التوبة: ۱۲۳]

ترجمه: ای هاغو کسانو چې ایمان مو راوړی دی! جنګ کوئ تاسې له هغو کسانو سره چې نژدې وي تاسو ته له کفارو او ودې مومي دوی په تاسې کې کلکوالی او پوه شئ چې الله تعالی د پرهېزګارانو سره دی.

۲.﴿وَقَاتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ﴾ [البقرة:۱۹۰].

ترجمه: جنګ کوئ په لاره د الله کې د هغو کسانو سره چې جنګ کوي له تاسې سره.

۳.﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلّه﴾ [الانفال:۳۹].

ترجمه: او وجنګېږئ له دغو کفارو سره تر هغه پورې چې پاتې نه شي فتنه او شي دین ټول خاص الله جل جلا له لره.

۴.﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ﴾ [الحج:۳۹].

ترجمه: حکم ورکړی شوی دی هغو کسانو ته چې جنګ ورسره کاوه شي په دې سبب چې بېشکه په دوی ظلم شوی دی او بېشکه چې الله په مرسته د دوی خامخا قادر دی.

۵.﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَكُمْ وَاللهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ﴾ [البقرة:۲۱۶].

ترجمه: فرض کړی شوي پر تاسې باندې جنګ کول حال دا چې دغه بد ښکاري تاسې ته او ښایې چې بد ګڼئ تاسې یو شی حال دا چې هغه ډېر بهتر وی تاسې لره او ښایې چې ښه وګڼئ تاسې یو شی حال دا چې هغه به ډېر بد وي تاسې ته او الله عالم دی تاسې نه پوهېږئ.

دوهم حدیثونه:

۱. وَعَنْ أنس ابن مالک رضی الله عنه قال، قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «جَاهِدُوا الْمُشْرِكِينَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ» [ رواه ابو داؤد ۲/۳۲ والنسائي ۶/۷ والحاکم ۲/۸۱].

ترجمه: د انس بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: جهاد وکړئ مؤمنانو د مشرکانو سره په مالونو، نفسونو او په ژبو سره.

۲. عَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُما قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ، وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ، وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ، وَتَرَكْتُمْ الْجِهَادَ، سَلَّطَ اللهُ عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ» [رواه ابو داؤد ۳/۷۷].

ترجمه: د عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیم وسلم فرمایلي: کله چې تاسو اخیستل خرڅول شروع کړئ، په عینې سره (بیعه د عینې دې ته وایې: چې یو انسان څه شی په انسان خرڅ کړي په معلومو روپو سره تر معلومې نېټې پورې بیا بېرته دا خرڅوونکی د دې اخستونکي څخه دغه شی واخلی په کمو روپو سره په نقدو) او تاسې ونیولې لکۍ د غوایانو او راضي شوئ په کرهنه او جهاد مو پرېښود، رابه ولي الله پاک په تاسې ذلت او سپکوالی، دا ذلت به له تاسو څخه الله تعالی نه لرې کوي تر هغه پورې چې تاسې راجع شئ خپل دین ته.

دریم د فقهاؤ رحمهم الله اقوال:

۱ـ وفي المبسوط للإمام السرخسي (۱۰/۲): ثم أمر رسو الله صلى الله وسلم بالقتال إذا كانت البداية منهم فقال تعالى ﴿أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا﴾ [الحج/۳۹] أي: أذن لهم في الدفع وقال تعالى ﴿فَإِنْ قَاتَلُوكُمْ فَاقْتُلُوهُمْ﴾ [البقرة:۱۹۱] وقال تعالى ﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا﴾ [الأنفال:۶۱] ثم أمر بالبداية بالقتال فقال تعالى ﴿وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّى لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ﴾ [البقرة: ۱۹۷] وقال تعالى ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ﴾ [التوبة:۵] وقال رسول الله ﷺ: «أمرت أن أقاتل الناس حتى يقولوا: لا إله إلا الله».

ترجمه: امام سرخسي رحمه الله په مبسوط کې ذکر کړي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم بیا امر وکړ په جنګ سره کله چې د مشرکانو له طرفه جنګ شروع کړی شي الله تعالی فرمایلي حکم ورکړی شوی هغو مسلمانانو ته چې جنګ ورسره کیږي په سبب د دې چې بېشکه په دوی ظلم شوی دی. یعنې دوی ته حکم ورکړی شوی دی په دفاع کولو سره. او الله تعالی فرمایلي دي که چېرې کافران تاسو سره جنګ کوي نو تاسو هم د دوی سره جنګ وکړئ او الله تعالی جل جلاله فرمایي که دوی رجوع صلحې ته وکړي نو ته هم رجوع صلحې ته وکړه. بیا نبي صلی الله علیه وسلم حکم

وکړ د جنگ په شروع کولو سره، پس الله تعالی فرمايي: وجنگيږئ له دغو کافرانو سره ترهغې چې فتنه پاتې نه شي او الله تعالی فرمايلي: پس وژنئ تاسې مشركان په کوم ځای کې چې دوی وموميء. او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: امر شوی دی ماته د الله تعالی له طرفه چې د کافرانو سره جنگ وکړم تر هغې چې دوی لا إلـه إلا الله و وايي.

۲ـ وَفِي الهندية (۲/۸۸) وَعَامَةِ الْمَشَايِخِ رحمهم الله تعالى قَالُوا: الجِهادُ فَرْضٌ عَلَى كُلِّ حَالٍ غَيْرَ أَنَّهُ قَبْلَ النَّفِيرِ فَرْض كِفَايَة وَبَعْدَ النَّفِيرِ يَصِيرُ فَرْض عَيْنٍ وَهُوَ الصَّحِيْح، وَمَعْنَى النَّفِيرِ أَنْ يُخْبِرَ أَهْلِ الْمَدِينَة أَنَّ الْعَدُوَّ قَدْ جَاءَ يُرِيْدُ أَنْفُسَكُمْ وَذُرَارِيْكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ فَإِذَا أُخْبِرُوا عَلَى هَذَا الْوَجْهِ افْتَرَضَ عَلَى كُلّ مَنْ قَدَرَ عَلَى الْجَهَادِ مِنْ أَهْلِ تِلْكَ الْبَلْدَةِ أَنْ يَخْرُجُوا لِلْجِهَادِ وَقَبْلَ هَذَا الْخَبَرِ كَانُوا فِي سَعَة أَنْ لَا يَخْرُجُوا.

ترجمه: په فتاوی هنديه کې ذکر دي چې عامو مشائخو رحمهم الله ويلي چې جهاد فرض دی په هر حال کې خو د عام نفير نه وړاندې فرض کفائي دی او وروسته د عام نفير نه فرض عين گرځي او دا صحيح خبره ده.

د عام نفير معنی دا ده چې د يوې منطقې او ښار خلکو ته خبر ورکړی شي چې دښمن راغلی او د ضرر اراده لري، ستاسې د نفسونو اولادونو او مالونو په رابطه، نو کله چې خبر ورکړی شي نو فرض ده په هر هغه چا چې په جهاد قادر وي، د دې ښار او منطقې د اوسېدونکو نه چې جهاد ته ووځي او وړاندې د دې خبرې د ده لپاره روا دي چې جهاد ته ونه ځي.

دوهم:

که کفار په کوم اسلامي هيواد تجاوز وکړي او هغه هيواد تنها د مقابلې توان ونه لري د نړۍ په ټولو مسلمانانو جهاد فرض عين گرځي:

۱ـ فِي رد المختـار(۱۰۲/۶ طبـع جديـد) (والهنديـة ۲/۱۸۸ )قَـالَ أَبُـو الْحَسَـنِ الْكَرْخِـي فِي مُخْتَصَرِهِ: وَلَا يَنْبَغِي أن يُخْلِي ثَغْرٌ مِن ثُغورِ المسلمين ممن يقاوم العدوَّ فِي قِتَالِهِم وَإِنْ ضَعُفَ أَهْلَ

ثُغر من الثغورِ عَنِ المقاومةِ وَخِيفَ عليهم فعلي مَن وراءَهم من المسلمين أن ينفروا إليهم الأقربُ فالأقربُ وأن يمدُّوهم بالكِرَاعِ وَالسَّلاح لِيَكُونَ الجهاد، أبدًا قائمًا كذا في المحيط.

ترجمه په ردالمحتار کې ذکر دي چې ابوالحسن الکرخي په خپل مختصر کې ويلي، د مسلمانو لپاره مناسبه نه ده چې د هغو سرحداتو له جملې چې هلته له کفارو سره مقاومت کيږي کوم سرحد خالي کړي. او که چيرې د دې سرحداتو مسلمانان د کفارو په دفع کې کمزوري شي نو په هغو مسلمانانو چې دوی ته نيږدې دي فرض ده چې مرستې ته ورشي او که هغه هم کمزوري شول نو هغوی ته په ورنږدې نورو فرض دی همداسې الاقرب فالاقرب په دوی لازمه ده چې د جهاد د دوام لپاره د مجاهدينو مرسته وکړي، دا مضمون په محيط کې هم ذکر دی.

۲- وفي الهندية (۱۸۸-۲) ثُمَّ بَعد مَجِيِ النَّفير العام لا يفترض الجهاد على جميع أهل الإسلام شَرقًا وغربًا فَرْض عَين وإن بلغهم النفير وإنَّما يَفرُضُ مَنْ كان بقَرب مِنَ العَدُوّ وَهُمْ يَقْدِرُونَ عَلى الجهادِ وَإمَّا عَلَى مَا وَرَاءَهُم مِمَّنْ يَبْعُدُ العَدُوَّ فَإِنَّهُ يَفْتَرِضُ فَرض كِفاية لا فرض عين حتّى يسعَهم تركُه فإذا أُحتيجَ إليهم بأن عَجَزَ مَنْ كان بقرب العدوّ عن المقاومة مع العدُّوِ أو تكاسلوا ولم يجاهدوا فإنه يفترض على من يليهم فرض عين ثمّ وَثُمَّ إلى أن يفرض على جميع أهل الأرض شرقاً وغرباً على هذا الترتيب.

ترجمه: په فتاوی هنديه کې ذکر دي: پس د ثابتيدو د عام نفير نه جهاد عينا نه فرض کيږي په ټول اهل اسلام باندې د مشرق نه تر مغرب پورې اگر که رسېدلی وي دوی ته ثبوت د عام نفير په تحقيق سره جهاد فرض کيږي پر هغه چا چې دښمن ته نږدې دي او دوی قادر په جهاد وي او په هغه نورو مسلمانانو چې دښمن څخه لرې وي، په دوی جهاد فرض کفايي دی، نه فرض عين، تردې چې د دوی لپاره جائز دي چې جهاد پرېږدي او کله چې دې لرې مسلمانانو ته ضرورت پيدا شو، په داسې شان سره چې دښمن ته نږدې مسلمانان د مقابلې نه عاجز شي او يا سستي وکړي شي او جهاد يې پرېښود نو بيا جهاد په هغه چا فرض عين دی چې دښمن ته نږدې وي په ترتيب سره،

تردې چې جهاد به فرض عين شي، په ټولو مسلمانانو د مشـرق نـه تـر مغرب پـورې پـه دې ترتيب سره.

۳. فی رد المختار (۶/۲۰۱) قُلْتُ: وَحَاصِلُهُ أَنَّ كُلَّ مَوْضِعٍ خِيفَ هُجُومُ الْعَدُوِّ مِنْهُ فُرِضَ عَلَى الْإِمَامِ أَوْ عَلَى أَهْلِ ذَلِكَ الْمَوْضِعِ حِفْظُهُ وَإِنْ لَمْ يَقْدِرُوا فُرِضَ عَلَى الْأَقْرَبِ إِلَيْهِمْ إِعَانَتُهُمْ إِلَى حُصُولِ الْكِفَايَةِ بِمُقَاوَمَةِ الْعَدُوِّ.

ترجمه: په رد المختار کې ذکر دي: زه وايم چې حاصل دا دی چې هر هغـه ځـای چې پـه هغـه بانـدې د دښـمن د تجـاوز او حملې ويـره وي نـو پـه امير د وخـت او يـا پـه اوسېدونکو د دې ځای ساتنه د دې ځـای فـرض ده او کـه اوسېدونکي د دې ځـای پـه ساتنه قادر نه شي نو په نيږدې خلکـو فـرض دی امـداد د دوی ترهغې چې د دښـمن د مقاومت لپاره کفايت او پوره والی ثابت شي.

دريم:

که چېرته کفار د مسلمانانو د خاورې پـه حـريم بانـدې حمله وکـړي نـو د ضرورت پـه وخت کې مسلمانان له اسلامي او غير اسلامي حکومتونو څخه مرسته غوښتلی شي خـو په دې شـرط چې د اسلام احکام به غالب او ښکاره وي لکه چې زمونږ د فقهي کتابونـه ليکي:

وفي إعلاء السـنن (۱۲/۵۸) نقـلاً عـن شـرح سير الكبير (۳/۱۸۶) ولا بأسَ بأن يَّسْتَعِين المسلمونَ بِأهلِ الشّرك عَلَى أهلِ الشّرك إذاكان حُكم الإسلام هو الظاهر عليهم، لِأنَّ رسول الله ﷺ استعان بيهود بني قينقاع على بني قريظة، وخرج صفوان مع النبي ﷺ حتى شَهِدَ حُنَيناً والطائف وهو مُشْرِكٌ، فَعَرَفْنَا أنَّهُ لا بأسَ بالاستعانة بهم، وما ذلك إلا نظير الاستعانة بِالكِلابِ عَلَى المشركين وَإلى ذلك أشَارَ رَسول الله بِقَولِهِ إنَّ اللهَ لَيُؤَيِّدُ هَذا الدِّينَ بِأقوامٍ لا خَلاقَ لَهُمْ فِي الآخرة (طبراني).

قُلتُ: وَ عبارةُ شرحِ السير تُفيد جَوازَ الاستعانةِ بالكُفّارِ إذاكانَ حُكمُ الإسلام هُوَ الظّاهِرُ سَواءٌ كانوا مُشرِكِينَ أو أهلُ الكِتابِ.

ترجمه: د اعلاء السنن مصنف په خپل کتاب کې د شرح السیر الکبیر څخه داسې رانقلوي:

او باک نشته په دې کې چې مسلمانان امداد وغواړي د مشرکانو په مقابله کې کله چې د اسلام حکم ظاهر او غالب وي په کافرانو، څکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم، د یهودو د بني قینقاع نه امداد غوښتی و په مقابله د بنو قریظه وو کې، صفوان د نبی علیه السلام سره ووت تردې چې د حنین او طائف په جنګ کې حاضر و او حال دا چې صفوان مشرک و، نو مونږ ته معلومه شوه چې باک نشته په دې کې چې د دوی څخه امداد وغوښتل شي د کافرانو په ختمولو کې او د دې مثال داسې دی لکه د سپو څخه استفاده وشي د کفارو په ختمولو کې او دې ته نبی کریم علیه السلام اشاره کړې په دې وینا سره چې الله تعالی د دین امداد کوي په داسې خلکو سره چې آخرت کې یې هیڅ حصه نه وي.

د اعلاء السنن مصنف وایي چې د شرح السیر الکبیر د عبارت نه د کافرانو نه د امداد غوښتلو رواوالی معلومیږي کله چې د اسلام حکم غالب وي په کافرانو باندې، برابره خبره ده که دغه کافران مشرکان وي او که اهل کتاب وي.

څلورم:

که د امریکا د عملیاتو په وخت کې کوم مسلمانان هغه که افغانان او یا غیر افغانان وي له کفارو سره همکار شي معاونت او جاسوسي ورته وکړي، هغه کس هم د خارجي متجاوزینو حکم لري او واجب القتل ګرځي.لکه چې رد المحتار او درالمختار د دریم ټوک په ۱۹۸ مخ کې دغه مسئله ذکر کړې ده.

والله سبحانه وتعالی اعلم

**له یرغل نه وړاندې**

په کابل کې د علماء کرامو د سترې غونډې برخوالو په خپل پریکړه لیک کې اسامه بن لادن او د هغه ملګرو ته امر ونکړ چې له افغانستان څخه ووځي. البته د مشورې په حیث یې ورته دا یادونه کړې وه چې که په خپل خوښه وغواړي له افغانستان وتل په

ګټه دي. د پریکړه لیک څلورم بند په دې ډول و. د دې لپاره چې د اوسني جنجال مخه ونیول شي او هم په آینده کې د دا ډول پیښو په صورت کې بدګوماني رامنځته نه شي، د علماء کرامو دغه ستره شورۍ اسلامي امارت ته سپارښتنه کوي، چې اسامه بن لادن تشویق کړي ترڅو په ممکنه وخت کې په خپله خوښه له افغانستان څخه ووځي او د ځان لپاره کوم بل ځای انتخاب کړي.

د بوش په مشرۍ د سپینې ماڼۍ جنګ غوښتونکو واکمنو د دې پریکړه لیک له اعلان سمدستي وروسته وویل چې طالبان به له افغانستان څخه د اسامه په ایستلو هم خلاص نه شي ځکه په دې فیصله سره دوی اسامه له یوې پناه ګاه څخه بلې پناه ګاه ته لیږدوي. د سپتمبر په ۲۱ مه چې په کابل کې د علماء کرامو د غونډې وروستۍ ورځ وه د امریکا ولسمشر بوش کانګریس ته په وینا کې په افغانستان یرغل صلیبي جنګ ونوماوه او نړیوالو ته یې په ډېر غرور وویل چې (یا به له موږ سره کیږئ او یا له ترهګرو سره) بوش د اسامه بن لادن په اړه طالبانو ته په خطاب کې وویل چې (اسامه یا مړ غواړم یا ژوندی) د ملا محمد عمر مجاهد د دفتر د یوه کارکوونکي په استناد کله چې ملا صاحب له راډیو څخه د جورج بوش دا کبرجنه خبره واوریده چې طالبانو ته په خطاب یې ویل: اسامه یا مړ غواړم یا ژوندی. ملا صاحب په همدې وخت ورغبرګه کړه چې په والله که یې یا مړ رانه ووینې یا ژوندی.

په دې وخت چې د امریکا پوځي یرغل حتمي شوی و، د ازبکستان له قرشي هوایي ډګر څخه د امریکا جاسوسي الوتکو هم د افغانستان په فضا خپل پروازونه ډېر کړي وو. د سپتمبر په ۲۲ مه د طالبانو دافع هوا د امریکا یوه بې پیلوټه الوتکه د سمنګان په ولایت کې راوغورځوله چې دا ښایي په امریکایي اهدافو د طالبانو لومړنی برید و. یوه ورځ وروسته د امریکا دفاع وزیر په افغانستان د حتمي یرغل خبره ډاګیزه کړه. رمزفیلډ رسنیو ته وویل چې له افغانستان څخه د اسامه د وتلو په صورت کې به هم امریکا په افغانستان له حملې لاس وانخلي.

د سپتمبر په ۲۴ مه ملا صاحب په یوه مطبوعاتي بیان کې امریکایانو ته په خطاب وویل چې پوځي یرغل یا یوازې زما او اسامه بن لادن په وژلو به ستونزه هواره نه شي. امریکا

باید د مسائلو په اړه ژور فکر وکړي او د مسلمانانو په اړه خپل له دښمنۍ او کینې ډک چلند له سره وارزوي.

دا مهال په اسلامي امارت نړیوال سیاسي او تبلیغاتي فشارونه نور هم زیات شول، د سپتمبر په ۲۵ مه سعودي عربستان له اسلامي امارت سره دیپلوماتیکي اړیکې غوڅې کړې او د امارت په رسمیت پیژندل یې بیرته واخیستل په همدې ورځ د امریکا سي این این چینل د طالبانو تر غوږونو د بوش د ادارې دا ګواښ ورساوه چې که طالبان د امریکا غوښتنې ونه مني امریکایي پوځ شاید په افغانستان بیولوژیکي وسلې استعمال کړي.

د سپتمبر په ۲۶ مه د جیکي جسکن په نامه یوه امریکایی تورپوستي مسلمان امادګي وښوده چې د امریکا او افغانستان تر منځ د ستونزې د سوله ایز حل لپاره به د دریمګړي په حیث هڅې وکړي. طالبانو د نوموړي له ښه نیت څخه هرکلی وکړ خو بوش د نوموړي وړاندیز رد کړ. دا مهال د ملګرو ملتونه اداره چې ځان یوه بې طرفه مؤسسه بولي هم طالبانو ته په بدو اوښتې وه، د افغانستان لپاره د ملل متحد ځانګړي استازي فرانسس ویندرل وویل چې طالبانو د تل لپاره نور د سیاست چانس له لاسه ورکړی او د افغانستان په راتلونکو حکومتونو کې به ځای ورنکړل شي. په همدې وخت کې چې ملل متحد د افغانستان له نوي وضعیت سره ځان برابراوه یوه اونی وروسته یې د ویندرل په ځای الاخضر- ابراهیمي یو ځل بیا د افغانستان لپاره خپل ځانګړی استازی وټاکه.(۱)

د سپتمبر په ۲۸ مه د پاکستاني علماء کرامو او مشائخو یو لوی هیئت کندهار ته راغی تر څو له ملامحمد عمرمجاهد سره د پیښې شوې ستونزې د حل په اړه سلا مشورې وکړي. په دې علماء کرامو کې شیخ مولانا محمد تقي عثماني، دکتور شیخ شیرعلی شاه مدني، شیخ الحدیث مولانا حسن جان مدني، مفتي نظام الدین شامزی، مولانا

(۱) نړۍ د توپان پر اوږو (بیلابیلې صفحې) لیکنه محمد الله کمال

سلیم الله خان، مفتي محمد جمیل، قاري سعید الرحمن او څو تنه نور علماء کرام شامل وو. دوی د امارت په مقام کې له ملاصاحب سره ولیدل، څرنګه چې ملا محمدعمر مجاهد په اردو ژبه نه پوهیده نو د دارالعلوم حقانیه مدرسې شیخ الحدیث مولانا شیر علي شاه صاحب ته یې وویل چې د دوی تر منځ ترجماني وکړي. په مجلس کې اوله موضوع د اسامه بن لادن یاده شوه. ملا صاحب د اسامه بن لادن په موضوع او له امریکا سره د جنجال په سابقه رڼا واچوله او ویې ویل چې موږ د شریعت په چوکاټ کې د اسامه د موضوع حل کولو ته همیشه اماده یو. موږ ویلي چې د دریو اسلامي هیوادونو علماء کرام دې راټول شي د شیخ اسامه بن لادن په اړه دې شرعي پریکړه وکړي موږ یې منلو ته اماده یو. خو دا چې تاسو راغلي یاست زه ستاسو په احترام د دې پریکړې واک تاسو ته درکوم. تاسو دیني عالمان یاست د اسلام په احکامو خبر یاست، همدا تاسو په دې مجلس کې فیصله وکړئ زه یې دستي عملي کوم.

د ملا صاحب د دفتر یو کارکوونکی وایي چې د اسامه بن لادن د موضوع په باره کې د ګاونډیو یا نورو اسلامي هیوادونو دیني علماء وخت په وخت ملا صاحب ته راتلل، هغوی که څه هم ځیني یې د سیاسي فشارونو له امله تر کندهاره راتلل خو ملا صاحب بیا د دغو سترو دین پوهانو سره ملاقات د ځان لپاره لوی فرصت باله، ملا صاحب به همیشه د مسئلې شرعي حل دوی ته وړاندې کاوه خو په راتلونکو علماءکرامو کې یو هم داسې څوک پیدا نه شو چې امریکا ته د اسامه بن لادن د سپارلو په باره کې ملا صاحب ته شرعي فتوی ورکړي. نو ځکه به په دې سره علماء کرامو ته د اسلامي امارت شرعي دریځ نور هم روښانه کیده او د ملا صاحب په حقانیت به یې باور پخېده.

## پوځي آمادګي

د سپتمبر په ۲۹ مه (د میزان اوومه) نیټه امریکایانو له طالبانو سره د تفاهم احتمال په رسمي ډول رد کړ، په پاکستان کې د امریکا سفیرې میرمن وینډي چمبرلین په اسلام اباد کې ژورنالیستانو ته وویل چې له ترهګرو (طالبانو) سره تفاهم هیڅ امکان نلري.

دغه وخت که له يوې خوا د امريکا تبليغاتي جنګ په پوره قوت پيل شوې وه، بل اړخ ته سياسي منډې ترړې يې هم په قوت روانې وې، د امريکا په ديکته په روم کې د شمال ټلوالې او پخواني پاچا ظاهر شاه تر منځ د ايتلاف لپاره مذاکرات پيل شول چې د اکتوبر په لومړۍ نيټه يې له طالبانو وروسته د ګډ حکومت په جوړولو خپل توافق اعلان کړ.

په همدې وخت کې امريکايان په پوره جديت په افغانستان د يرغل په ترتيباتو بوخت وو، د سپتمبر په ۲۶ مه د امريکا د استخباراتو د مرکزي ادارې (سي آی اې) يو لوړ رتبه پلاوی د ګاري شرون په مشرۍ له ازبکستان څخه په چورلکه کې پنجشير ته لاړ، نوموړي له ځان سره درې ميليونه ډالر نغدې پيسې راوړې وې تر څو په پنجشير کې د اسلامي امارت مخالفين ورباندې کرايه کړي. ګاري شرون تر څو اونيو په پنجشير کې و هلته يې له قسيم فهيم، ډاکټر عبدالله، سياف،عارف سروري او د ټلوالې له نورو مشرانو سره وليدل. پر هغوی يې ډالر وويشل او د پوځي همکارۍ تعهد يې ترې واخيست. ( )

په ورته وخت کې په اسلام اباد کې د سي آی اې دفتر د افغانستان په جنوب او ختيځ کې د افغاني اجيرانو د موندلو او استخدام په هڅو بوخت و. قومندان عبدالحق چې له دې وړاندې يې په دوبۍ کې تجارت کاوه له امريکايي استخباراتو سره د يوې پټې معاملې په لړ کې پيښور ته رسيدلی و تر څو د افغانستان په ختيځ کې د امريکايي يرغل ځمکنۍ ملګرتيا وکړي. په کوټه کې حامد کرزي، ګل اغا شيرزی او اکرم خاکريزوال د امريکايانو لخوا اکمال شوي او د يرغل پيل ته منتظر وو تر څو له امريکايانو سره په هماهنګي د اسلامي امارت په وړاندې پوځي بغاوت پيل کړي.

---

( ) د سي آی اې جاسوس (ګري شرون) د خپل دغه ماموريت په اړه کتاب ليکلی چې عنوان يې دی (first in Afghanistan) دغه کتاب لاهور خان منګل پښتو ته ژباړلی چې نوم يې دی (سي آی اې په پنجشير کې) د سي آی اې لخوا د شورای نظار مشرانو ته د پيسو د ورکړې موضوع د همدې کتاب په استناد ياده شوې ده.

په پاکستان کې د پرویز مشرف حکومت د بلوچستان د جیکب اباد او پسني هوايي ډګرونه امریکایانو ته سپارلي و. دغه راز یې د خپلې ځمکې او فضا واک هم ورسپارلی و تر څو له هند سمندر نه په افغانستان د توغندویز بریدونو، بمبارونو او پوځي اکمالاتو لپاره ترې کار واخلي. شمال اړخ ته امریکایانو د ازبکستان د خان اباد د قرشي هوايي ډګر په واک کې درلود چې د خپلو پوځي اکمالاتو لپاره یې اماده کړی و.

بالمقابل طالبان هم د خپل توان تر حده په پوځي امادګیو بوخت و په کندهار کې د ملا صاحب په امر د ستینګر توغندیو ویشتونکي وروزل شول تر څو د امریکا الوتکې په هغو ستینګر توغندیو په نښه کړي چې د پخواني جهاد له وخت څخه په افغانستان کې پاته وو او یوه برخه یې د طالبانو په وسلتونونو کې خوندي وو. د کندهار د هوايي ډګر په ساحه کې د دافع هوا شوروي ساخت پرمختللې دستګاه فعاله شوه چې د عملي تمرین له صحنې یې ملا صاحب خپله لیدنه وکړه.

د امریکا له پیاده کیدونکو عسکرو سره د مقابلې لپاره په ډیرو سیمو کې په ولسي- کچه ترتیبات جوړ شول تر څو د امریکا د احتمالي برید په اړه ولسي- مجاهدین په خپل وخت غبرګون وښیي او دښمن ته مناسب ځواب ورکړي. څرنګه چې د هیواد په شمال کې د امریکا د سختو بریدونو او د جنګي کرښو د ماتیدو ویره وه شمال ته ګڼ شمیر تازه دمي ځواکونه ولیږل شول. بل اړخ ته د امریکایي جاسوسانو تعقیبولو ته هم توجه زیاته شوه. دا وخت امریکایانو په بیلابیلو بڼو کې خپل جاسوسان افغانستان ته داخل کړي وو. د ولس د رهنمایي او روحیې ساتلو لپاره ملا محمد عمر مجاهد له یرغل څو شپې وړاندې د کابل د شریعت غږ راډیو له څپو نه ولس ته وینا وړاندې وړاندې کړه چې څینې برخې یې په چاپي بڼه هم خپرې شوې.

## د یرغل پیل

د اکتوبر د میاشتې اوومه شپه وه، په کندهار کې هر څه عادي روان و، ملا صاحب هم په خپل روزانه ګشت و ګذار کې ډېر تغیر نه و راوستی په خپل میشت ځای (د امارت مقام) کې اوسیده. په دې شپو کې په کندهار کې د ماخستن د لمانځه جماعت عموما په اته نیمې بجې کیږي. د امارت د مقام په مسجد کې چې کله د ملا صاحب په امامت

د ماخستن لمونځ ادا ء شو او لمونځ کوونکي بهر راووتل په همدې شیبه امریکایانو د کندهار په هوايي ډګر کې د پیچور په نوم د هوايي مدافع په دستګاه لومړنی بمبار وکړ.

ملا صاحب د امارت د مقام د مسجد تر مخ و چې د هوانوردی وزیر ملا اختر محمد منصور د کندهار له هوايي ډګره د مخابرې له لارې حال ورکړ چې د امریکا بریدونه پیل شوي په لومړني برید کې یې د مدافع هوايي تاسیسات وویشتل. د کندهار په هوايي ډګر لومړني برید د چا ژوند وانخیست خو د مدافع هوايي د برخې ځینې کارکوونکي یې ټپیان کړل.

له لومړي برید وروسته قوي احتمال موجود و چې دوهم برید به شخصا په ملا محمد عمر مجاهد وي، د امارت د مقام له څنګ سره په غره کې تر دې وړاندې یوه سمڅه جوړه شوې وه چې په اضطراري حالاتو کې به د پناه اخیستلو لپاره ترې استفاده کیږي. دغه مهال د ملا صاحب ملګرو ده ته مشوره ورکړه چې باید هماغې سمڅې ته ولاړ شي. ځینو وویل له ښار نه لرې دښت ته به ووځو تر څو د امریکایانو له تعقیب څخه ځان پناه کړو. خو ملا صاحب د دې مشورو د منلو پر ځای د ښار خواته د تګ اراده وکړه.

ملا صاحب چې خپل اهل اوعیال او د امنیت لپاره خو ملګري هم ورسره وو په درې سراچو موټرو کې په همدې شیبه له خپل ځایه ووتل، دوی د کندهار ښار د والي کوټې ساحې ته لاړل چیرته چې د دوی پخوانی (منفجر شوی) کور و، دلته ملا صاحب او ملګري یې له موټرو ښکته شول، خو ورته معلومه شوه چې لا هم طیارې ګرځي. دوی همدلته و چې د امارت په مقام بمبار وشو او کروز توغندیو ورځیرمه پناه ځای بمبار کړ. دا بمبار د امریکایانو لومړنی بمبار و چې څو کسان یې شهیدان کړل. په دې برید کې یو کروز میزایل د سمڅې په خولې کې ولګید چې څلور کسان یې شهیدان کړل، په شهیدانو کې یو هم د ملا محمد عمر مجاهد تره ملا محمد حنفیا صاحب و، په دې برید کې دوه کسان ټپیان هم شول.

کله چې د امارت په مقام کروز میزایل لګیدل او بمبار کیده ملا صاحب لبر وړاندې د کندهار ښار د والي کوټې په ساحه کې و، د بمبار رڼاګانې تر دوی پورې ورسیدلې،

ملا صاحب فیصله وکړه چې لـه ښـاره ووځـي او پـنځلس کیلومتره لویدیځ اړخ تـه د سنگ حصار په ساحه کې د خپل یوه ملگري خالي سرای ته لاړ شي.

ملا صاحب له خپل اهـل و عیـال او محـدود شـمیر ملگـرو سره پـه دریـو مـوټرو کـې د سنگ حصار په خوا روان شو. دوی په شپه کې هماغه خـالي سرای تـه ورسـیدل. خپـل ماشومان او زنانه یې کور ته دننه کړل.

د ملا صاحب له انډیوالانو څخه د هماغې شیبې یو عیني شاهد وایـي مـوږ چې سـنگ حصار ته تلو درې سراچه موټران راسره وو. تر مـخ سـپینه سراچـه وه چې مـلا صـاحب خپله چلوله او خپل اهل و عیال یې ورسره و، ورپسې توره سراچه او بیا بله سپینه سراچـه وه. په سنگ حصار کې چې کله نیمه شپه دغه سرای تـه ورسـیدو، مـلا صـاحب د کـور دروازه خلاصه کړه او سـپینه سراچـه یـې لـه دروازې دننـه کـړه او ماشـومان تـرې ښـکته شول، ورپسې بله سراچه له دروازې بهر لـه کـور سره جوختـه ودریـده او اخـري سراچـه ورپسې تر شا ودریده.

ملا صاحب د دریمې سراچې ملگري بیرتـه ښـار تـه ولیـږل، ترڅـو لـه ښـاره د اړتیـا وړ توکي راوړي، د همدې ملگرو له جملې یو تن وایي چې کله مـوږ بیرتـه د ښـار پـه خـوا راتلو ملا صاحب د دروازې تر مخ ولاړه تور سراچه موټر کې ناست و، راډیو یـې نیـولې وه او خبرونه یې اوریدل، موږ ښار ته راغلو خو د مـلا صـاحب پـه خپـل قـول لـږ شـیبه وروسته ملا صاحب له دې تور سراچه موټر څخه راښـکته شـو او لـه دروازې سرای تـه ننوت، په همدې وخت کې امریکایانو په یوه دقیق گوزار سره همـدا تورسراچـه موټرپـه توغندي وویشت.

د سراچه موټر د ویشتل کیدو په وخت ملا صاحب د توغندي د لگیدو ځـای تـه تقریبـا دوه نیم متره لنډ و، چې د ده او ویشتل شوي سراچه موټر تر مـنځ یـوازې د سرای دروازه حائل و، ملا صاحب ته زیان ونه رسید خـو یـوازیني دوه ملگـري یـې چې د مـوټر پـه شاوخوا کې موجود وو ټپیان شول. د ملا صاحب مور چې دا مهال په کـور کـې دننـه وه کله چې د بمبار غږ اوري په ډیـره وارخطـایي د دروازې پـه خـوا منـډه اخـلي، خـو مـلا

صاحب په داسې حال کې چې د دروازې دننه خواته ولاړ دی ډاډ ورکوي چې زه ژوندی یم.

له دې برید وروسته د ملا صاحب په دې یقین پوخ شو چې امریکایانو یې ځای کشف کړی نو د دې لپاره چې دغه کور بمبار نه شي او کورنۍ ته یې زیان ونه رسیږي. خپل د کور زنانه او ماشومان یې په نیمه شپه له دې سرای نه پیاده وایستل او نږدې یوه مسجد ته یې ورسول. ملا صاحب اراده وکړه چې خپلو زخمي ملګرو ته ورشي. دا چې ماشوم اولادونه یې د بمبار له امله ډېر ویریدلي و مشر زوی یې محمد یعقوب چې دا وخت ۸ کلن ماشوم و ملا صاحب یې لـه لمنې ونیـو او نـه یـې پریښـود چـې تـرې لاړ شي او دوی یوازې پرېږدي. خو ملا صاحب هغه له ځان څخه جلا کړ او د ټپیانو په خوا روان شو. له خپل زوی، مور، میرمنو او ټولو اولادونو سره د ملا صاحب همدا د بمبار د شپې لیدل وروستي لیدل شول، کله چې ملا صاحب په همدې شپه له مسجد څخه ووت بیا یې هیڅکله خپل اولادونه ونه لیدل.

ملا صاحب د ټپیانو خواته راغی، یو ټپي ملګری نسبتا روغ و، کوم یو چې ټپ یې خطرناک و په خپل روغ پاته موټرکې یې د ښار پر خوا لـه ځان سره واخیست. دغه وخت د ملا صاحب د کور میرمنې او ماشومان چې په مسجد کې پاتـه وو د ده د کورنۍ د نوروغړو لخوا په همدې کلي کې د ملا صاحب د خسر-کور تـه انتقال شوه. مسجد څخه د دوی لـه وتلـو شاوخوا نیم ساعت وروسته امریکایي الوتکـو همدغه مسجد داسې سخت بمبار کړ چې حتی نښې یې هـم لـه منځـه لاړې. دې مسلسلو بریدونو وښوده چې امریکایانو د ملا صاحب او د هغه د کورنۍ د له منځه وړلو ټینګه فیصله کړې وه خو دا د الله تعالی ځانګړی نصرت او ساتنه وه چې دوی یې په معجزانه ډول د امریکا له بریدونو محفوظ وساتل.

ملا صاحب چې یو تن ساتونکی او یو زخمي ملګری په موټر کې ورسره و نیمه شپه د کندهار ښار په خوا روان و، د اشغو په سیمه کې د ده د امنیت مسؤل او ورسره ملګری پـه مخـه ورغلـل. هغـه تـرې تیـر شـول خـو ده پـه مخـابره کـې وربانـدې غـږ وکـړ او راوګرځیدل. ملا صاحب ورته مختصر د بمبار جریان بیان کړ، وروسته یې زخمي هغو

ته په لاس ورکړ او خپله له څلورتنه ملګرو سره په موټر کې د ښار په خوا روان شو، ملګرو يې مشوره وکړه چې يوازې په يوه طريقه د امريکايي سپوږمکۍ له تعقيب څخه ځان خوندي کولای شو هغه دا چې چيرته د ګڼو ونو په پناه کې له موټر نه ځان بيل کړو. دوی ښار ته په رسيدو د ميرويس روغتون انګړ ته وروګرځيدل هلته يې د ګڼو ونو لاندې خپل موټر ودراوه، شيبه وروسته په عادي ډول پياده له روغتون بهر راووتل، تر لږ پياده مزل وروسته د لارې په سر د خپل يو ملګري موټرپه مخه ورغی او په کې سپاره شول، شيبه وروسته يې د کندهار امنيه قومندان حافظ عبدالمجيد پيدا کړاو د هغه سره په موټر کې سپاره شول، ترسهاره يې له ده سره يوځای په ښار کې ګزمه وکړه، سهار د ښکاپور بازار سره نږدې د طالبانو امنيتي ماموريت ته ورغی، له همدې وخت نه د ملا صاحب مخفي ژوند پيل شو. په همدې ځای کې يي لومړی د سهار لمونځ اداء کړ او وروسته يې د امريکا له لومړني بريد څخه د بچ کيدو او د خپل ژوند د اطمينان ورکولو پيغام ثبت کړ تر څو طالبانو ته د مخابرې له لارې واورول شي. دغه راز د امريکايي يرغل د پيل په اړه لومړنی مطبوعاتي بيان هم ترتيب او د رسنيو له لارې نشر شو چې په يوه برخه کې يي راغلي وو.

(په داخل او خارج کې ټول مسلمانان بايد په دې يوه شي چې د جهاد په مقدسه لاره کې مرګ، مرګ نه دی. بلکې د يوه ابدي خوشاله ژوند پيل دی.مسلمانان بايد په دې لاره کې خسته نه شي. حوصله له لاسه ورنکړي. له صبر، استقامت او غيرت څخه کار واخلي.ځکه چې مسلمانان بايد په دې عقيده ولري چې مرګ يو مرګ دی او هيڅوک له مرګ نه شي خلاصيدلی، نو د شهادت مرګ چې چا ته ورسيږي دا بايد يو ستر افتخار، کاميابي او د الله تعالی لوی نعمت وبولي.

د امريکا د جمهور رئيس بوش دا خبره حقيقت لري چې دا جګړه د مسلمانانو پر ضد صليبي جګړه ده. نو بايد د نړۍ په هر ګوټ کې مسلمانان د خپل دفاع لپاره اسلامي او شرعي فعاليت ته دوام ورکړي. جهاد که په توره وي، که په ژبه او که په قلم اوس د نړۍ په ټولو مسلمانانو فرض دی.

باید دا مقدسه فریضه اداء کړئ. زه امید لرم چې د افغانستان اسلامي امارت به د الله تعالی په نصرت او د نړۍ د مظلومو او بادرده مسلمانانو په مرسته او دعاء د امریکا په ظالم او تیري کوونکي حکومت بری ترلاسه کوي.)[۱]

ملا صاحب له همدې نیتې څخه بیا تر هغه مهاله چې له یو شمیر ولایاتو څخه عقب نشیني پیل شوه. په کندهار ښار کې احتیاطا مخفي ژوند کاوه. ملاقاتونه یې محدود کړي وو او اکثره پیغامونه یې د استازو په توسط تر مسؤلینو لیږل. د نصرت مخابرې له لارې له نظامي مشرانو سره په رابطه کې و. په دې وخت کې چې بمبار روان و او د امریکایانو لخوا هره شیبه د چاپې او بمبار احتمال موجود و ملا صاحب د دښمن هر ډول بریدته ځان آماده کړی و. له ده سره به د لس تنه په شاوخوا کې مسلح ملګري وو او نور احتیاطي ملګري به یې د اوسیدو ځای ته نږدې اوسیدل چې د احتمالي خطر په وخت د دښمن مقابلې ته رسیدګي وکړای شي. ملا صاحب چې بیا بیا یې د اوسیدو ځایونه بدلول څو ځله یې میشت ځای ته نږدې سیمې بمبار شوې. لکه د کندهار د قول اردو د بمبار په مهال ملاصاحب د بمبار له ساحې په سل متری کې موقعیت درلود. بل وخت د خاد ریاست ته نږدې اوسیده چې امریکایي الوتکو یې په ۵۰ متری کې یو کور بمبار کړ.

### لومړنی یرغل او بمبارونو دوام

د امریکایي نظامیانو لخوا خپرې شوې لیکنې ښیي چې په افغانستان د یرغل له پیل نه وړاندې امریکایان هم د اندیښنې په حالت کې وو او نه پوهیدل چې دغه جنګ ته په څه ډول ورداخل شي. د دوی سیمیزو مشاورینو پینټګان ته مشوره ورکوله چې افغانان له جنګونو سره بلد خلګ دي. بمونه او بمبارونه یې ډېر لیدلي دي. که لومړنی برید معمولي او محدود وي او یا هم اهداف په سمه توګه نه وولي نو دا به دا امریکا په

(۱) د هیواد ورځپاڼې کلکسیون (۵۲۷ مه ګڼه) ۱۳۸۰ لمریز کال

وړاندې د افغانانو حوصله پیاوړې کړي او امریکایي پوځي قوت به یې تر پام کم وړشي.

ښایي همدا لامل به و چې امریکایانو په لومړۍ شپه خورا پراخ یرغلیز عملیات وکړل. د دوی لخوا خپاره شوي معلومات ښیي چې په لومړۍ شپه د افغانستان په بیلابیلو ښارونو کې ۳۱ هدفونه په نښه شول. چې عمده یې د هوایي مدافع تأسیسات، د رادار سیستمونه، هوایي ډګرونه، د ملا محمد عمر مجاهد د اوسیدو ځای، د راډیو او مخابراتو ودانۍ اوداسې نور.

په لومړۍ شپه په یادو اهدافو له عربي بحیرې څخه د امریکا او برتانیا له بیړیو او اوبتلونو ۵۰ کروز توغندي وتوغول شول. په عربي بحیره کې د امریکا له الوتک لېږدونکي بېړۍ یو ایس میسوري څخه ۲۵ ایف ۱۸ بریدکوونکې الوتکې دغه راز د هند په سمندر کې د دیګو ګارسیا له ټاپو څخه ۱۵ بم غورځوونکې الوتکې هم په برید کې برخوالې وې چې مختلف اهداف یې بمبار کړل.

د اسلامي امارت مدافع هوایي ځواک د الوتکو د ویشتلو هڅه وکړه خو دا چې الوتکو له ډېرې لوړې ارتفاع څخه بمبار کاوه د مدافع هوایي مرمۍ نه وررسیدلې. د لومړۍ شپې په بمبار کې د افغانستان په بیلابیلو ښارونو کې یو شمیر کسان شهیدان او ټپیان شول. لومړنی د سر زیان د امریکا په دوهمه توغندیز برید کې ورسید چې د ملا صاحب په کور ترسره شوه، دلته په څلورو شهیدان شویو کسانو کې یو هم د ملا محمد عمر مجاهد اکا ملا محمد حنفیا صاحب و. د یرغل په لومړۍ شپه په پلازمینه کابل کې د دفاع وزارت، هوایي ډګر، تپه تیلویزیون او یکه توت سیمه کې د راډیو فرستنده دستګاه بمبار شوه. د یک توت په ساحه کې د راډیویي دستګاه مرکز ته نږدې د ماین پاکۍ د یوې موسسې سیمیز دفتر هم بمبار شو چې څو تنه عام خلک په کې شهیدان او ټپیان شول.

په دې ډول د افغانستان په حکومتي او عام المنفعه تأسیساتو د امریکا له قسماقسم الوتکو او بیړیو څخه د بمونو او بارودو اورښت پیل شو. څرنګه چې د جګړې په لومړیو اونیو کې په جنګي کرښو د امریکایانو بمبار ډېر اغیزناک نه و نو یې د خپل غچ

اخیستلو لپاره د افغانستان پـه ملي تأسیساتو او زیربناوو بمبار تـه زور ورکړ. د کابل، کندهار، هرات، جلال اباد، مزار شـریف، کندز او شبرغان هوایي ډګرونـه پـه سخته بې رحمۍ بمبار، د رادار او ملکي هوانوردۍ د خدماتو ټول سهولتونه یې ویجاړ او په کې ناستې الوتکې چې ډیری یې د ملکي هوایي خـدماتو ( د اریانـا افغـان هـوایي شـرکت) اړوند وې له یوې مخې تخریب شوې. د افغانستان د لویو ښـارونو تـر منځ پـه غځیدلو لارو هم څو ځایه بمبارونه وشوله او د تخریب هڅه یې وشوه، په کابل، جلال اباد، مزار شـریف او کندهار کې د اتصالاتو دستګاوې او مراکز تخریب او له منځه یوړل شول.

په هرات کې د سل بستریز ملکي روغتون وداني بمبار شوه او ډیرشمیر ناروغان او طبي کارکوونکي په کې شهیدان شول. د کابل ښار هوایي ډګر تـه نـږدې پـه یـوه ګـڼ میشته سیمه درنې بمبارۍ د سر په درانه زیان سربیره یو شـمیر کورونـه هـم تخریـب کړل.[1] د بمبار په پنځمه ورځ د اکتوبر په ۱۱ مه امریکایي الوتکو پـه ننګرهـار کـې د کـوړم کلی بمبار کړ او ډیرزیات ولسي وګړي یې په شهادت ورسـول، پـه همـدې ورځ پـه ننګرهار کې په یوه مسجد د بم له لګیدو سره ۱۶ تنه په لمانځه ولاړ ولسي خلک شـهیدان شول. د یرغل د یوې اونۍ په پوره کیدو سره د طالبانو رسنیو خبر ورکړ چې په یـوه اونـۍ کې ۶۷۰ تنه ولسي وګړي د امریکا په بمبـارونو کـې شـهیدان شـوي دي.د اکتـوبر پـه ۱۶ مه امریکایانو وویل چې په دې شپه یې په کندهار ۱۳۰ ځله هوایي بریدونه کـړي. طالبـانو د کندهار په بمباریو کې د ۳۳ تنه ملکي وګړو وژل کیدل تائید کړل.

په دې ډول د امریکایي پوځ لخوا د افغان ولس قتل عام پیل شـو چـې پـه روزمـره توګه وژل کیدل، کورونه او کلي ورانیدل، ملي تاسیسـات لـه منځـه تلـل، مسـاجد او مدرسې بمباریدلې، خو د غرب په اشاره چلیدونکو رسنیو د دې په ځای چې د مظلومـو افغانانو غږ منعکس کړې له یوې مخې یې د امریکا د فتحې نغارې غږولې او د امریکا لخوا یې افغانانو ته له هوا څخه د خوراکي توکـو د غورځولـو مبالغـه آمیـز تبلیغـات کـول، اما دا

(۱) د شریعت اونیزې کلکسیون

خبره يې نه کوله چې د امريکايي الوتکو څخه رالويدونکي خوراکي مواد د دې په ځای چې خلک يې وخوري د ولسي خلکو لـه خـوا اور وراچول کيـده او پـه دې ډول يې د امريکايي يرغل په وړاندې خپل اعتراض څرګنداوه.

**د ملا صاحب پر کور د امريکايانو چاپه**

لکه څنګه چې امريکايانو د ملاصاحب کور او شخصا خپله دی د يرغل په لومړيو کې په نښه کړل، دغه راز يې د ځانګړيو ديسانټ ځواکونو په توسط لومړني خاص عمليات هم د هغه پر کور او دفتر ترسره کړل. د د ميزان په ۲۸ مه نيټه (د اکتوبر شلمه) د امريکا پوځ د ملا صاحب د شهيدولو او يا هم ژوندي نيولو په هدف د کندهار ښار په لمن کې پر هغه ودانۍ چاپه واچوله چې ملا صاحب د کور او د امارت د مقام يا دفتر په حيث ترې کار اخيست. د امريکايي منابعو په استناد د دې عملياتو په لړ کې چې د ډيلټا فورس په نوم د امريکا د خاصو ځواکونه او کوماندويانو لخوا ترسره شول. لومړی د سلو په شاوخوا کې امريکايي کوماندويان دکندهار ښار څخه شپيته ميله جنوب لويديځ ته د ريګ په ساحه کې په يو ناکاره هوايي ډګر کې ښکته شول تر څو د ملا صاحب په کور د عمليات کوونکو پوځيانو سره د ضرورت په وخت کې همکاري وکړي.

وروسته په همدې شپه د ډيلټا فورس او کوماندويانو دوهم ګروپ چې له سلو ډېر کسان يې برخوال وو، د کندهار ښار سره نږدې د ملاصاحب په کور چاپه ووهله. دوی د ملا صاحب د کور په شاوخوا کې له چورلکو پياده شول، لومړی کوماندويانو او په سر ګرځيدونکو چورلکو زرګونه مرمۍ واورولې تر څو که احتمالي خطر وی له منځه به لاړ شي. خو د ملا صاحب د کور ساتونکو مجاهدينو په پيل کې له دوی سره مزاحمت ونه کړ. هغوی پوهيدل چې کور تخليه شوی که امريکايان ور داخل هم شي کوم څه به ترلاسه نه کړي. شيبه وروسته په داسې حال کې چې له کندهارښار څخه هم سيمې ته کومکي مجاهدين راورسيدل ناڅاپه يې په امريکايانو حمله وکړه.

تحقيقاتي خبريال سيمور هرش د دې عملياتو په اړه په خپله تحقيقاتي مقاله کې د امريکايي کوماندويانو له قوله ليکلي: کله چې موږ د بيرته وتلو په حال کې وو طالبانو

په موږ قیامت راکوز کړ، هغوی شبخون راووړ،هغوی په سپکو وسلو او آر پي جي توغندیو حمله وکړه. طالبانو داسې لاسي بمونه غورځول لکه له دوی سره چې بې شمیره موجود وي، د ځانګړو ځواکونو یونټ په شاته تلو او دفاعي جنګ مجبور شو ځکه طالبان برلاسي وو. ډیلټا کنډک ته زیان ورسید او یو شمیر کسان یې ټپیان شول، پوځیان په ګروپونو وویشل شول، د پوځي اصولو سره سم واړه ګروپونه شاوخوا غلي شول او لویو ګروپونو ته یې د تیښتې زمینه برابره کړه، په دې وخت جنګي څرخکو د ملامحمد عمرمجاهد په کور بې دریغه ډزې وکړې، د ډیلټا فورس، کوماندو او د کومک لپاره راغلي پوځیان ټول په وارخطا حالت کې راوتښتیدل، په منډو رامنډو کې د یوه چینوک هلیکوفتر ټایرونه له غونډۍ سره ولګیدل او مات شول. موږ د دې عملیاتو لپاره ډېر تیاری نیولی وو، موږ فکر کاوو چې هلته په رسیدو به جادو وکړو خو د طالبانو له حملې سره راته څرګنده شوه چې موږ جادوګر نه یو.[1]

لکه څنګه چې امریکایي خبریال اعتراف کوي، امریکایانو رښتیا هم په خپله لومړنۍ چاپه کې خپل ټول احتیاطي تدابیر سنجولي او خپل تجربه کار ځانګړي پوځیان یې د عملیاتو لپاره غوره کړي وو، خو په عملي ډګر کې دوی کومه لاسته راوړنه نه درلوده، طالبانو وروسته د امریکایي څرخکې مات شوې ټیرونه او له خاصو ځواکونو څخه پاته یوه تفنګچه رسنیو ته وښودل چې د امریکایي کوماندویانو په وارخطا تیښته بې شاهدي ویله.

## د امریکایي یرغل ځمکني ملاتړي

امریکا د ۲۰۰۱ م کال د اکتوبر په اوومه په افغانستان خپل بریدونه پیل کړل، د همدې کال د نومبر تر دوولسمې پورې د پلازمینې کابل په شمول د افغانستان ټول مهم ښارونه د طالبانو تر واک لاندې وو او د امریکا د پنځه اونۍ سختو بمبارونو په وړاندې یې له تصور لوړ مقاومت کاوه.

---

(۱) نړۍ د توپان پر اوږو صفحه ۱۴۵

د اسلامي امارت په خلاف د امریکا جګړه له څو عمده برخو څخه عبارت وه، یو خو د هدفمندو هوایي بریدونو، بمبارونو او کروز میزایلو د توغولو هغه ناتمامه سلسله وه چې له بحرهند او د عربو له سمندرګي څخه ترسره کیدل، په دغو ډول بریدونو کې عمده رول د امریکایانو و خو د برتانیا په شمول ځینو نورو هیوادونو هم په یرغلیزو هوایي بریدونو کې برخه درلوده.

بل د جګړې استخباراتي او اکمالاتي همآهنګي وه، د دې لپاره امریکایانو په ګاونډیو هیوادونوکې ځانګړي هوایي ډګرونه او استخباراتي مراکز استخدام کړي وو، د افغانستان په جنوب کې استخباراتي جګړه په اسلام اباد کې د سي آی اې له مرکزي دفتر څخه رهبري کیدله، د دې دفتر مشري د رابرټ ګرینر په غاړه وه چې د حامد کرزي او ګل اغا شیرزي په شمول د جنوب اکثره د امریکا ګوډاګیان د ده لخوا استخدام او افغانستان ته راولیږل شول. د پاکستان حکومت امریکایانو ته د بلوچستان د جیکب اباد هوایي ډګر په تصرف ورکړی و چې امریکایانو ترې د هیواد په جنوب کې د جګړې په رهبري سربیره استخباراتي عملیات او د خپلو ګوډاګیانو اکمالات هم کول.

د جګړې بل محاذ د افغانستان شمال و، د ازبکستان حکومت د خان اباد قرشي هوایي ډګر امریکایي پوځ ته سپارلی و چې له همدې ځایه د افغانستان په شمال کې جګړه رهبري کیدله. له هوایي بریدونو سره هم مهال د امریکا استخباراتي ادارې سي آی اې دخپلو ځانګړو ګروپونو او داخلي اجیرانو په کرایه کولو سره د طالبانو خلاف ځمکنۍ عملیات هم پیل کړې و.

د افغانستان په جنوب کې د امریکایانو د ځمکني تعرض د پروګرام مهم اجرا کوونکي حامد کرزی او ګل اغا شیرزی و. د اکتوبر میاشتې په لومړیو کې د یرغل له پیل سره هم مهال حامد کرزی له پاکستان څخه کندهار ته داخل شو او له هغه ځایه روزګان ته لاړ تر څو د طالبانو په خلاف ځمکنۍ جبهه پرانیزي. نوموړي څو ورځې پټ فعالیت وکړ خو وروسته چې طالبان ورباندې خبر شول د ده د نیولو لپاره یې عملیات شروع کړل. حامد کرزي چې طالبانو یې د نیولو هڅه کوله د امریکا مرسته وغوښته او د سي آی اې ځانګړو ځواکونو د نومبر په څلورمه له روزګان څخه په خرځکه کې پورته کړ.

له نومړي څخه لوی مقدار وسلې او مهمات پاته شول او امریکایانو جیکب اباد ته ورساوه. حامد کرزی دوهم ځل د مزار شریف له سقوط وروسته د نومبر په ۱۴ مه د ۱۳ کسیز امریکایي ټیم (ایکو گروپ) په بدرگه له جیکب اباد څخه په څرخکو کې روزگان ته یووړل شو او د امریکایانو په هوایي او تسلیحاتي ملاتړ یې فعالیت پیل کړ.

په جنوب کې بل قومندان گل اغا شیرزی و، چې امریکایانو د کندهار ښار د نیولو لپاره انتخاب کړی و، د نومړي د افرادو لپاره امریکایانو په پاکستان کې له پاکستاني پوځ څخه ۵۰۰ میله وسلې او نور نظامي تجهیزات رانیول او بیا یې د یوه ځانگړي استخباراتي ټیم په بدرگه د نومبر په لومړیو کې د کندهار د معروف ولسوالی له لارې افغانستان ته داخل کړ. گل اغا دشنه نري سیمه مرکز وټاکه او له همدې ځایه یې د کندهار ښار په خوا د امریکایي الوتکو په بدرگه پرمختگ ته دوام ورکړ. امریکایانو غوښتل د هیواد په ختیځ او کابل ته څیرمه سیمو کې قومندان عبدالحق د طالبانو په خلاف وجنگوي. نومړی د سي آی اې په دیکته افغانستان ته داخل شو، خو مخکې له دې چې کوم د پام وړ فعالیت وکړي طالبانو د لوگر په ازره کې ونیو او له امریکا سره د همکارۍ او ملگرتیا په جرم یې وواژه.

د هیواد په شمال، مرکزي ولایاتو او شمال لویدیځ کې د امریکا استخباراتي عملیات له پنجشیر څخه رهبري کیدل. د سي آی اې یو ځانگړی ټیم چې د افغانستان لپاره د دې سازمان تر ټولو معروف متخصص گري شرون رهبري کاوه د یرغل له پیل وړاندې د ۲۰۰۱ میلادي کال د سبتمبر په ۲۶ مه دسي آی اې په روسي ساخته چورلکه کې له تاجکستان څخه پنجشیر ته لاړ، گري شرون له ځان سره په یوه فلزي بکس کې درې میلیون ډالر راوړي و تر څو د طالبانو په خلاف د څمکنی جگړې لپاره وربانده جنگیالي رانیسي.

گري شرون لومړی د شورای نظار د استخباراتو له مسؤل انجنیر عارف سره ولیدل، هغه ته یې پنځه لکه ډالر ورکړل او انجنیر عارف په مقابل کې د شورای نظار ټوله استخباراتي شبکه د سي آی اې خدمت ته وقف کړه. د ټلوالې په نمایندگۍ امر الله صالح له گري شرون سره د ژباړن او نږدې همکار په حیث دنده اجراء کوله او د

شورای نظار استخباراتي کارمندانو په یوه میاشت کې (د سبتمبر لـه ۲۷ د اکتـوبر تـر ۲۶ مې پورې) د سي آی اې لپاره تر ۴۰۰ زیات څارگر راپوروونـه تیار کړل چې د سي آی اې د ټیم لخوا امریکا ته لیږل کیدل. د گري شـرون دوهمه لیدنه لـه قسیم فهیم سره وه، فهیم ته یې یو میلیون نغـد ډالـر ورکـړل او هغـه پـه مقابـل کـې د هـر راز همکـاري ټینـګ وواهه. فهیم موافقه وکړه چې د شمالي د جنگي خط مسؤل بسم الله خان تـه بـه قومنـده ورکړي چې د سي آی اې له ټیم سره هر راز همکاري وکړي. فهیم دیرش تنـه جنگیـالي د سي آی اې په واک کې ورکړل ترڅو یې د جاسوسانو په حیث وروزي.

گري شـرون وروسته له سیاف، ډاکټر عبدالله، قـانوني او د ټلـوالې لـه نـورو مشـرانو سره هم ولیدل او په ډالري ډالیو یې د هغوی وفاداري د ځان کـړه، د یرغـل لـه پیـل وړانـدې گري شـرون د ټلوالې د مشـرانو سره په گډه د طالبانو خلاف د ځمکني یرغل سـتراتیژي نهایي کړې وه په داسې ډول چې قسیم فهیم به د ځمکنـۍ جگـړې د عمومي مشـر پـه حیث امریکایانو ته مسؤل وي او له گري شـرون سره بـه همیشـنی تمـاس لـري، انجینـر عارف به استخباراتي معلومات سي آی اې ته رسوي. بسم الله خان په کابل د برید لپـاره غوره شوی و، د فرخار جبهه او د تخـار دنیولـو مسؤلیت داود داود تـه سپارل شـوی و، دنوموړي ملاتړ تـه د مولانـا سـیدخیلي او قومنـدان گـدا پنجشیري پـه مشـرۍ څو زره اضافه ځواکونه هم له پنجشیر څخه ورتلل، د کوکچې په بله غاړه پـه شـمالي تخـار کـې مطلب بېگ، پیـرم قـل، کبیرمرزبـان، پیرمحمـد تالقـاني او بشیر چاه آبي او ځینـي نـور جگړه مار قومندانان په دې گومارل شوي وو، ترڅو له امریکایي بمبار سره هـم مهـال د طالبانو په دفاعي لیکو هجوم وروړي. د گري شـرون په جنگي سـتراتیژۍ کـې سیاف د ختیځ افغانستان لپاره غوره شوی و، خو په ختیځ کې د عبدالحق لـه وژل کیـدو وروسـته سیاف زړه ونکړای شو چې له پنجشیر څخه راووځي.

گري د افغانستان په شمال او مرکزي ولایاتو کې هم یو شمیر جگړه مـاران د طالبـانو پـه خلاف ځمکنیو عملیاتو ته پـارولي وو. رشـید دوسـتم د امریکایـانو پـه لارښـوونه د دره صوف په لوړو سـاحو کـې خپـل کسـان راټـول کـړل چې د الفا پـه نـوم د سي آی اې ځانگړی ټیم هم ورسره ملگری و، له دوستم سره په څنگ کې عطاء محمـد نـور هـم د

بلخ په جنوبي غرنيو سيمو كې د طالبانو خلاف جګړې ته تياري نيوله چې د سي آی
اې د بريوو په نوم ټيم يې ملګرتيا كوله. كريم خليلي ته په باميانو كې د څمكني يرغل
او د طالبانو په خلاف د جګړې مسؤليت سپارل شوی و. له نوموړي سره د دلتا په نوم د
سي آی اې ځانګړی ټيم فعال و چې امريكايي الوتكې يې رهبري كولې. خو كريم
خليلي چې له طالبانو يې سخته ويره درلوده تر پايه يې دا زړه ونكړای شو چې د طالبانو
په خلاف كوم مؤثر عمليات ترسره كړي.

د افغانستان په لويديځ كې د امريكايانو د يادولو وړ ملاتړی تورن اسمعيل خان و، د
امريكايانو لخوا د ليكل شويو كتابونو دمعلوماتو له مخې نوموړي په دې شپو ورځو
كې د افغانستان په غرب كې د ايران د پولې په سل كيلومترۍ كې پټ و چې ورروسته
ورسره دسي آی اې د (چارلي) په شفري نوم استخباراتي ډله ملګرې شوه، ترڅو د
طالبانو په ضد جګړې ته يې وهڅوي.

په اسمعيل خان سربيره دغور په جنوب او پرچمن ولسوالۍ كې د ډاكټر ابراهيم غوري
كسانو د امريكايي الوتكو په سيوري كې په طالبانو عمليات كول او شمال ته د
كوهستاناتو په ساحه كې قومندان احمدخان مرغابي په فارياب كې د طالبانو په خلاف
په فعاليت بوخت و، چې امريكايانو ورته د دلالانو له لارې ډالر او د پراشوټ په واسطه
وسلې، خوراكي توكي او د آسونو اوبه او واښه رسول.[1]

### پنځه اونۍ سخته جګړه او سخت ترين مقاومت

لكه وړاندې چې وويل شول د امريكايانو هوايي بريدونه لومړی په ښارونو پيل شول،
راډيوګانې، هوايي ډګرونه، الوتكې، پوځي ډيپوګان، د مدافع هوايي مراكز او د
اتصالاتو شبكې يې بمبار كړې، ورپسې په داسې حال كې چې په ښارونو او څينو
كليوالو ساحو هم بمبارونه كيدل اصلي بريدونه په جنګي كرښو راټول شول.

(۱) ۸۸ ورځې تر كندهاره ليكوال رابرټ ګرينر. سي آی اې په پنجشير كې د ګري شرون كتاب

له يرغل وړاندې د طالبانو دوه مهم جنګي خطوط هغه و چې د احمد شاه مسعود د ځواکونو په وړاندې د کابل په شمال او د تخار په فرخار او خواجه غار سيمه کې پراته وو. دا مهال چې د سمنګانو په دره صوف کې او د بلخ په جنوبي غرنيو سيمو کې د دوستم، عطاء نور او محقق ټوپکيان راټول شوي وو. طالبانو د دره صوف او د بلخ د جنوبي سيمو د دفاع لپاره هم دفاعي کمربندونه ټينګ کړل. د امريکايانو ډېر بمبارونه د کابل د شمال، تخار او دره صوف په همدې جنګي کرښو و چې پنځه اونۍ يې مسلسل دوام درلود.

امريکايانو او داخلي ملګرو يې اټکل کاوه چې د جنګي کرښو په بمبار سره به ډېر ژر طالبانو ته شکست ورکړي. خو د اسلامي امارت مجاهدينو په ټولو جنګي کرښو کې کمسارۍ ثبات وښود. په داسې حال چې په ټولو جنګي کرښو کې د مخالفينو اړخ ته د سي آی اې ځانګړې ټيمونه ځای پر ځای شوي وو او د ليزرونو په واسطه يې الوتکو ته کوردينات ورکول، مجاهدين بيا هم توانيدل چې له بيلابيلو تاکتيکونو په استفاده له بمبار خخه ځانونه وژغوري. نو ځکه به کله چې له درانه بمبار وروسته د ټلوالې عسکرو تعرض پيل کړ، مجاهدين به په ټول قوت بيا راپورته شول او تر پخوا په لوړ مورال به يې د امريکا د ځمکنيو ملګرو تهاجم دفع کړ.

د بمبارونو د سلسلې اوږديدلو او د جنګي کرښو د ماتولو ځنډ که له يوې خوا د مجاهدينو او افغان ولس مورال لوړاوه، بل اړخ ته يې د يرغلګرو او د هغوی د ملګرو تر منځ د نهيلۍ او شکست احساس ته هم وده ورکوله. د ټلوالې يو مشر برهان الدين رباني چې همدا حالت ورباندې غميدلی و، له امريکايانو يې غوښتنه وکړه چې په طالبانو غټ غټ بمونه وغورځوي. جنرال قسيم فهيم چې د امريکايي يرغلګرو له مشر جنرال ټومي فرانک سره د کتنې لپاره تاجکستان ته تللی و. هم يې د ملاقات په مهال له امريکايانو د لانورو درنو بمبارونو او زيان اړوونکو بمونو د اورولو غوښتنه وکړه.

له دريو اوونيو درانه بمبار وروسته په امريکايي مطبوعاتو کې هم داسې ګنګوسې پيدا شوې چې د امريکايي يرغل د ناتوانۍ حکايت يې کاوه، د اکتوبر په وروستۍ نيته

نیویارک ټایمز ورځپاڼې د وتلي تحلیل گر آر ډبلیو ایپل یـوه ځیرنیـزه مقالـه خپره کړه چې پوښتلي یې و، آیا افغانستان یو بل ویتنام کیدای شي؟ آیا امریکا د نړۍ په هغه بله خوا له یوه شکست سره مخ کیدونکې ده؟ د همدې ورځې په سبا د امریکـا دفاع وزیر ډونالډ رمسفلډ په پینټاگون کې د خبري کانفرانس په مهال د خبریالانو له سختو پوښتنو سره مخامخ شو او د یرغل ستراتیژي یې بې اغیزې وبلل شوه. خو رمسفلډ وویل چې په جگړو کې بریا ژر نه ترلاسه کیږي، تاسو تاریخي شالید ته ځیـر شـئ، پـه جاپـان باندې درې نیم کاله بمباري روانه وه تر څو تسلیم شو، دغه راز په دوهم نړیـوال جنگ کې د هټلر جرمني پوره څلور کاله بمبار شـو. لـه شـک پرتـه پـه جنگـي کرښـو کـې د طالبانو تاریخي مقاومت رمسـفلډ اړ کـړی و چـې د اسـلامي امـارت پـه ابتـدائي وسلو سمبال محدود مجاهدین د هټلر له میلیوني مجهز پوځ سره پرتله کړي.

کله چې له څلور اونیو سخت بمبار وروسته بیا هم د کابل د شمال، تخـار او دره صوف خطونه مات نه شول، نو امریکایانو خپل قوت یوې خوا ته متوجـه کـړ، هغـوی د نومبر په لومړۍ اونۍ کې د هیواد په شمال کې د مـزار ښـار د نیولـو پـلان جـوړ کـړ د بلخ په جنوبي سیمو دغه راز د سمنگان په دره صوف کې یې د مجاهدینو پـه سـنگرونو سخته بمباري پیل کړه.

له (بوش اټ وار) کتاب او نورو امریکایي مستنداتو څخه معلومیږي چې امریکایانو په دې جگړه کې لومړی هدفمند بریدونه او فرشي بمبار پیل کـړ، خـو کلـه چـې د طالبانو مقاومت مات نه شو نو د پنځلس زره پونډه وزن لرونکو ډیزي کټر بمونو تر څنگ یې د کیمیاوي وسلو استعمال تـه هـم لاس واچـاوه. هغـه کیمیـاوي وسـلې چـې پـه وروستیو ورځو کې په جنگي کرښو وکارېدې، یو ډول زهرجن غاز یې خپراوه چې په تـنفس سره یې د هر ژوندي موجود سږي التهابي کیدل او چاودیدل. لـه همـدې املـه د جگـړې په کرښه کې د مجاهدینو ډېر شهیدان په داسې حال کې وموندل شول چې د مرمۍ یا ټپ هیڅ نښه به وربانديې نه وه، خو له غوږونو او پوزې به یې وینې بهیدلې او ځای پر ځای به شهیدان شوي وو.

د مزار جګړه واقعا درنه جګړه وه او امریکایي یرغلګرو په کې خپل ټول قوت وازمایه، د دې جګړه رهبري د بارټ ډیکر په نوم د امریکا د ځانګړو ځواکونو د هغه افسر-په غاړه وه چې له خپل کوچني ټیم سره یو ځای یې دوستم بدرګه کاوه او د مزار ښار جنوب ته ۱۵۰ کیلومتره لرې د المورتک غرنۍ سیمه کې ځای په ځای شوي وه. امریکایانو او دوستمیانو د درانه بمبار په تعقیب له المورتک څخه جګړه پیل کړه، وروسته یې لوړه او لاندې کشنده ونیول او تر شولګرې ولسوالۍ مخکې لاړل. مجاهدین چې د زهري بمونو د استعمال له امله یې ډېر کسان له لاسه ورکړي وو. د افرادو له کمښت سره مخامخ شول. مزار ښار ته نږدې د چشمه صفا په سیمه کې مجاهدینو یو ځل بیا د دفاعي کرښې د ټینګولو هڅه وکړه، له کابل څخه تازه دمې مجاهدین چې زیاتره یې د قبایلي سیمو په نفیر راوتلي ولسي-مجاهدین وو د مزار شریف د دفاع لپاره واستول شول. دغه مجاهدین د مزار ښار ته ورسیدل. خو لومړنی کتار یې چې کله د جګړې کرښې ته تلو د امریکایي الوتکو لخوا په هدفمندو بریدونو بمبار شو او ډېر مجاهدین په کې شهیدان شول. په دې ډول د مزار شریف د دفاع وروستۍ هڅې هم نتیجه ورنکړه او مجاهدین اړ شول چې له ښار څخه عقب نشیني وکړي.

## طالبانو ولې شاتګ وکړ؟

د بلخ ولایت د مرکز مزار شریف د دفاع لپاره طالبانو خپل ټول توان وکاراوه، خوکه له یوې خوا د دښمن وحشیانه فرشي بمباري او د کیمیاوي وسلو استعمال د جګړې په لومړۍ کرښه کې د مجاهدینو تلفات خورا زیات کړل له بلې خوا یې د وسلو او لوژیستکي توکو اکمال هم په ټپه ودراوه. د مجاهدینو په کاروانونو او موټرو د دقیق هدف ویشتونکو الوتکو بمبار د جګړې کرښو ته د تازه دمو ځواکونو لیږل هم له خنډ سره مخ کړي وو. همدا لامل و چې بالاخره د عقرب په اتلسمه (د نومبر نهمه) نیټه طالبان د مزار شریف له ښار نه ووتل او په دې ډول د عقب نشینۍ سلسله پیل شوه.

ملامحمد عمر مجاهد دا مهال په کندهار ښار کې مخفي ژوند کاوه، خو د خپل ځانګړې مخابره چې (نصرت) او په جنوبي ولایاتو کې د کندهار د قول اردو مسؤل

مولوي اختر محمد عثماني په توسط يې له مجاهدينو سره رابطه درلوده، په مزار شريف کې د امريکايي بمبار له زياتيدو وروسته نظامي مشرانو له ملا صاحب څخه د مقاومت يا شاتگ د امر غوښتنه وکړه، خو ملاصاحب ورته وويل تاسو د جگړې په ډگر کې ياست په وضعيت ښه پوهيږئ، ما ته له دې ځايه د جگړې حالت پوره درک وړ نه دی، زما په تاسو باور دی چې ناسمه پريکړه به نه کوئ، تاسو ته چې څه گټور معلوميږي هماغسې وکړئ.

د مزار له سقوط وروسته طالبان له سمنگان او سرپل ولاياتو څخه هم ووتل او دوه ورځې وروسته يې د تخار له جنگي خط څخه هم د کندز خواته عقب نشيني وکړه. په دې ډول د افغانستان له بيلابيلو سيمو څخه د طالبانو عقب نشيني پيل شوه. دا عقب نشيني اصلاً د امريکايي يرغل په خلاف د جگړې په ستراتيژۍ کې د بدلون نښه وه، طالبانو نه غوښتل په جنگي کرښو کې د ثابتو اهدافو په توگه د امريکا د هدفمندو بريدونو ښکار او په کيمياوي بمبارونو کې خپل افراد او ولس له عاموژنو سره مخامخ کړي. ځکه په وروستيو ورځو کې د امريکا بريدونو تر پخوا خونړي شوي او د مجاهدينو د تلفاتو کچه لوړه شوې وه، د امريکايانو لخوا وروستي رابرسيره شوي ارقام ښيي چې د يرغل د پيل په هماغو جگړو کې امريکايي ځواکونو په طالبانو ۱۸ زره بمونه کارولي چې له جملې يې لس زره بمونه په کمپيوټر رهبري کيدونکي يا دقيق هدف ويشتونکي بمونه وو، امريکايان وايي چې په دې بريدونو کې له ۸ تر ۱۲ زره طالبان وژل شوي دي. دا معلومه نه ده چې دا شميرې څومره کره دي. خو دا ثابتوي چې د مخامخ جبهه يي جنگ دوام د طالبانو په زيان وو.

بله دا چې که طالبانو د ښارونو دننه، کوڅه په کوڅه مقاومت کولای په دې سره شايد د افغانستان ټول ښارونو د امريکايي بمبار له امله په کنډوالو بدل شوي وای. موږ وليدل چې امريکايانو د عراق موصل او د سوريې رقه ښارد ښاري مقاومت د ماتولو په بهانه په داسې ډول بمبار کړل چې ۹۰ فيصده ودانۍ او تاسيسات يې له منځه لاړل. طالبانو نه يوازې په ښارونو کې له امريکايانو سره جگړه ونه کړه بلکې په عامو کليوالو ولس ميشتو سيمو کې يې هم امريکايانو ته د بمبار کولو بهانه په لاس ورنکړه، د طالبانو

مقاومت ټول په هغو جنګي سيمو کې راټول و چې تر دې پخوا هم د دوی جنګي خطوط په کې پراته وو او په شاوخوا کې يې عام خلک نه اوسيدل.

د يوې اونۍ په ترڅ کې د پلازمينې کابل په شمول د هيواد له ختيځ، شمال، جنوب ختيځ او مرکزي ولاياتو څخه د طالبانو وتل، که څه هم هغه مهال غيرمترقبه شاتګ بلل کيده، خو وروسته ثابته شوه چې د دغه اقدام له امله که له يوې خوا د ډيرو تلفاتو او ورانيو مخه ونيول شوه، له بلې خوا مجاهدينو تر ډيره حده خپل ځواک هم وساته او د چريکې جګړې په پيل سره يې امريکايان په يو داسې مقاومت کې راګير کړل چې د هغوی جنګي الوتکو او بمبارونو په کې مؤثر رول نه شوی ادا کولای.

د عقب نشينۍ په مرحله کې د نقد وړ نقطه د هيواد له شمال څخه نا انډوله شاتګ و، د مزار له سقوط وروسته د مجاهدينو په وړاندې يوازې د باميانو لار خلاصه پاته شوه خو دوه ورځې وروسته چې باميان سقوط وکړ، نو زرګونه مجاهدين په تخار، بغلان او کندز کې محاصره پاته شول.

**د کندز محاصره او د شمال دوهمه غميزه**

د شمالي ولاياتو خصوصا مزار شريف له سقوط وروسته طالبانو تخار ولايت هم ځکه پريښود چې له يوې خوا د امريکايانو هوايي بمبارونه او د مسعود د ځواکونو زميني يرغلونه مسلسل روان وو، بله دا چې د تخار په نسبت په کندز کې وسلې، مهمات، تېل او د زخميانو د معالجې په شمول نور سهولتونه هم موجود وو. په دې ډول مجاهدين له ټولو سيمو کندز ولايت ته راټول شول. خو کندز چې له ټولو خواوو محاصره او د مخالفينو تر بريدونو لاندې و، د امريکايانو ظالمانه بمبار هم وربانـدې هميشه جريان درلود.

دغه وخت د طالبانو عمومي مشري د ملا محمد فاضل آخند په غاړه وه، خو ورسره نور نظامي مشران لکه ملانور الله نوري، ملا عبدالقيوم ذاکر، ملا دادالله آخند، قاري فيض محمد سجاد، ملا عبدالرؤف خادم، سيد علاء الدين آغا، ملا شهزاده آخند، ملا عبدالباقي اخند او نور مجاهدين هم محاصره پاته وو. ملا فاضل آخند وايي په پيل کې

زموږ اراده دا وه چې ټول به د شهادت تر وخته مقاومت کوو. خو په دې وخت کې د امریکایانو بمبار او زمیني جنګونه دومره سخت شول چې ما پخوا هیڅکله داسې سخت حالت نه و لیدلی. مجاهدینو ته ډېر تلفات رسیدل. له جنګ نه علاوه د دوستم لخوا د قومندان غوث الدین او شمس الحق په نومونو دوه قومندانان راولیږل شول. موږ ته یې دا پیغام راوړ چې که تاسو خپلې وسلې موږ ته وسپارئ موږ تاسو ته له دې محاصرې د ژوندي وتلو او خپلو ځایونو ته د رسیدلو تضمین درکوو. په عین حال کې د مسعود د قومندان جنرال داود لخوا هم خلک راولیږل شول او همدا پیغام یې راوړ.

موږ ملګرو د دې خبرې د شرعي اړخ د سنجولو په خاطر د امیرالمؤمنین مرحوم په هدایت د اسلامي امارت له مشهور عالم شیخ الحدیث مولوي عبدالعلي دیوبندي صاحب سره رابطه وکړه، له هغه سره په مجلس کې د ستري محکمې رئیس مولوي نور محمد ثاقب صاحب او مولوي سدوزی اغا صاحب هم وو. هغوی راته وویل چې که تاسو هلته د محاصرې په حالت کې پاته کیږئ او همدا بمبارونه دربانـدې روان وي. نو نتیجه یې یوازې هلاکت دی. تاسو به ټول شهیدان شئ خو مسلمانانو او جهاد ته به مو هیڅ ګټه ونه رسیږي. نو که د ژوندي وتلو کومه لاره برابریږي، د مجاهدینو د ژوند او خلاصون په خاطر خامخا داسې لاره غوره کړئ.

د مجاهدینو د اطمینان لپاره موږ د شیخ مولوي عبدالعلي دیوبندي صاحب خبرې په یوه فیته کې ثبت کړې او بیا مو د مجاهدینو مشرانو ته هم واورولې. بیا مو دا خبره له امیر المؤمنین ملا صاحب سره هم شریکه کړه، هغه راته وویل چې تاسو د دغه ځای په وضعیت ښه پوهیږئ چې کومه لاره تاسو ته ښه معلومیږي زما لخوا درته اجازه ده هغه لار غوره کړئ. وروسته موږ مشرانو مجاهدینو لکه زه، نوري صاحب، ذاکر صاحب، خادم صاحب او نورو مشوره وکړه چې له کوم اړخ سره خبرې کوو. دا چې هغه وخت مسعود تازه وژل شوی و. موږ ویره درلوده چې شاید د مسعود کسان به زموږ له مجاهدینو انتقام واخلي. نو ځکه مو دوستم ته ترجیح ورکړه. بیا د دوستم له استازو (قومندان غوث الدین او شمس الحق) سره زه، نوري صاحب او قاري فیض محمد سجاد صاحب لاړو مزار شریف ته. له موږ سره د کندز او تخار مخور

قومندانان لکه آمر لطیف، ارباب هاشم او پیرمقل هم وو. د مزار شریف په قلعه جنګي کې مو له دوستم، عطاء محمد نور او محمد محقق سره ولیدل. دوستم او نورو ملګرو بې اطمینان راکړ چې که تاسو خپلې وسلې او موټر موږ ته وسپارئ موږ ستاسو د ژوند او سالم رسولو تضمین کوو. حتی تر هرات پورې مو په خپلو موټرو کې رسوو.

له دې توافق وروسته موږ کندز ته لاړو او هلته مو د مجاهدینو د سالم ایستلو ترتیب جوړ کړ. دا چې مخالفین ملا داد الله آخند ته ډیر له خښمه ډک وو، موږ وربانډې ویریدلو چې شهید به یې کړي، نو هغه مو په پټه له کندزه ویوست او د بلخ ولایت په بلخ ولسوالی کې یې ځان مخفي کړ. په دې شپو کې د امریکایانو بمبارونه هم بیخي ډیر زیات شوي وو. په کومه ورځ چې موږ له کندز څخه وتلو، نو لومړی د ملا عبدالباقي آخند تر مشرۍ لاندې یو شمیر مهاجر مجاهدین ووتل، وروسې زموږ عام مجاهدین وو. د ملا عبدالباقي آخند سره ملګري مجاهدین مزار شریف ته نږدې د دوستم کسانو محاصره کړل او قلعه جنګي ته یې یوړل چې وروسته د قلعه جنګي لویه پیښه رامنځته شوه. نور عام مجاهدین چې یرګنګ سیمې ته راغلل، ځانونه یې د دوستم کسانو ته په دې اعتماد وسپارل چې هغوی به یې له خپلو سیمو سالم تیروي، هغوی تر مزار شریف په خپلو موټرو کې یووړل، په مزار شریف کې یې موټر او هر څه ترې واخیستل او په کانتینرونو کې یې واچول ترڅو یې د شبرغان محبس ته انتقال کړي. په کانتینرو کې د ډیرو مجاهدینو تنفس بند شوی وو او ډیر مجاهدین شهیدان شول. کوم چې په شبرغان کې بندیان وو، په هغو کې هم دوی پلټنې شروع کړې او مشران مجاهدین یې امریکایانو ته په لاس ورکړل. زه، نوري صاحب، ذاکر صاحب او دوه نور طالبان یې په مزار شریف کې له نورو طالبانو جلا کړو او یو ځای یې بندیان کړو. هلته امریکایانو رانه تحقیق شروع کړ چې اسامه بن لادن چیرې دی؟ زموږ ځواب دا و چې موږ ته معلومات نشته. له روژې پنځه ورځې بعد امریکایانو موږ له مزار شریف نه یووړو او په سمندر کې یې په یوه مخفي زندان کې بندیان کړو. خلاصه دا چې د شمال د دوهمې لویې فاجعې اصلي عامل د عبدالرشید دوستم غدر و، هغه له موږ سره وعده کړې وه چې د نظامي تجهیزاتو له سپارلو وروسته به مجاهدینو

ته د سالم تیریدلو لاره ورکوي. اما کله چې مجاهدینو ورته نظامي وسائل وسپارل، دوستم هغوی بندیان کړل او ډیر شمیر یې په شهادت ورسول.

## ملا صاحب د جګړې مخامخ قومنده په غاړه واخیسته

د نومبر تر پنځلسمې چې د عقرب له ۲۴ مې او د ۱۴۲۲ هـ ق کال رمضان له لومړۍ سره یې سمون خوړ، طالبان د افغانستان له اکثرو ښارونو وتلي وو او یوازې د کندهار ولایت او ورسره پیوسته د روزګان، هلمند او زابل ځینې سیمې د مجاهدینو تر واک لاندې پاته وې. دا وخت مجاهدینو قوي روحیې او مخامخ رهبرۍ ته اړتیا درلوده. نو ځکه ملا صاحب د ستر خطر په منلو سره مستقیما د جګړې قومنده په غاړه واخیسته او هڅه یې وکړه چې حتی الوسع د امارت د وروستي سنګر دفاع وکړي.

د ملا صاحب ورور ملا عبدالمنان اخند وایي چې دغه وخت ملا صاحب د خپلې مخابرې له لارې له اکثره مجاهدینو سره خپله په رابطه کې و، له کندهار څخه یې تشکیلات کول او مستقیما یې جګړه رهبري کوله. په دې شپو ورځو کې د هلمند یو پخواني ټوپکي قومندان عبدالرحمن جان د ایران لخوا له ګڼ شمیر وسلوالو سره په ریګونو راغی او د هلمند مارجه ولسوالي یې ونیوله. عبدالرحمن جان لشکرګاه ته هم خطر پیښ کړ، چې ملا صاحب ورپسې د مجاهدینو تشکیل ولیږه. په مارجه کې سخت جنګ وشو. عبدالرحمن جان وتښتید او ۶۰ تنه ټوپکیان یې مړه شول، مارجه بیرته طالبانو ونیوه.

یو بل مهم تشکیل د روزګان ولایت ته وشو. تر څو په دې ولایت کې له لاسه وتلې سیمې بیرته ونیسي. د ملا برادر اخند په مشرۍ ګڼ شمیر مجاهدین دې ولایت ته لاړل، د ترین کوټ ښار ته په نږدې کیدو حامد کرزی او ورسره داخلي او خارجي ملګري یې سخت وارخطا شول نو ځکه یې له امریکایي الوتکو د عاجل بمبار غوښتنه وکړه. امریکایي الوتکو ترین کوټ ته نارسیده د ملا برادر اخند کاروان تر سختو بریدونو لاندې ونیو. تر پنځوس زیات موټران تخریب او په کې سپاره مجاهدین شهیدان یا ټپیان شول. لږ شمیر مجاهدین له بمباره ژوندي ووتل. له دې پیښې وروسته

حامد کرزي د شاولیکوټ خواته مخه کړه، جگړه په کندهار راتوله شوه او ملا صاحب د شینانړله خواته لیبرل شوی تشکیل له دلارامه بیرته راوگرځاوه.

دا وخت چې کندهار له څو خواوو د امریکا د گوډاگیانو تر تهدید لاندې و او په عین وخت کې مسلسل بمبارونه هم روان و. ملا صاحب خپل وروستی تلاش هم دریغ نه کړ. د کندهار ښار جنوب اړخ ته د ډوری سیمو ته یې مجاهدین ولیږل چې د ریگ لخوا د تعرض مخه ډب کړي. د گل اغا شیرزي د ځپلو لپاره یې بیا بیا د معروف ولسوالۍ خواته مجاهدین ولیږل خو امریکایي بمبار مجاهدینو ته د اغیزناکو عملیاتو فرصت نه ورکاوه. په وروستیو ورځو کې چې د گل اغا شیرزي کسانو تخته پُل ونیو د بیرته نیولو لپاره یې د ملا غلام نبي جهادیار په مشرۍ تشکیل وشو. جهادیار چې همدا شیبه د هلمند له محاذه راستون شوی و له یو شمیر مجاهدینو سره یې تخته پُل ته حرکت وکړ، د گل اغا شیرزي ځواکونه یې په یوه تنگه محدوده کې محاصره کړل خو مخکې له دې چې له منځه یې یوسي امریکایي الوتکو په مجاهدینو بې دریغه بمبار وکړ چې په نتیجه کې یې د ملا جهادیار په شمول گڼ مجاهدین شهیدان شول.

گل اغا شیرزی چې امریکایانو د کندهار د نیولو لپاره ټاکلی وو او د امریکا د ځانگړو ځواکونو او سي آی اې یو ټیم هم ورسره ملگری و طالبانو د تخته پُل له نیولو وروسته د تورکوتل په سیمه کې هم ورسره مقاومت وکړ، وروسته د ارغسان په پُله ورسره جنگونه وشول تر دې چې د امریکایي بمبار په بدرگه د کندهار د هوایي ډگر تر سیمې راورسید او دلته یې هم تر ډیرو د وړاندې تگ مخه ونیول شوه. خو درانه امریکایي بمبار مجاهدینو ته د خط ټینگولو موقع نه ورکوله. د هوایي ډگر په دفاعي خط کې د مجاهدینو مشري د ملا اختر محمد منصور په غاړه وه، په دې ساحه کې عرب مهاجر مجاهدین چې همدلته یې کورونه وو هم په میړانه وجنگیدل او ډیر کسان یې شهیدان شول.

د شمال اړخ ته حامد کرزی د کندهار په خوا را روان وو، ملا محمد یونس اخندزاده حکایت کوي چې د کندهار له سقوط څلور ورځې مخکې راته ملا صاحب وویل چې د شاولیکوټ سوزنیانو سیمې ته لاړ شم، وروسته یې په لومړي نمبر مخابره کې غږ

راباندې وکړ چې ویان سیمې ته لاړ شم. زه له خپلو مجاهدینو سره لاړم، دا سیمه چې د کندهار له ښاره لرې ده مخابرې له کندهار سره په آسانه نه رخ کیدلې، په دوهمه شپه مې د مخابرې له لارې په مولوی اخترمحمد عثماني صاحب غبږ وکړ، خو له مقابل لوري ملاصاحب ځواب راکړ، ملا صاحب وویل شاولیکوټ ته مو د ملابرادر اخند او ملا عبدالرزاق نافذ صاحب تر مشرۍ لاندې تشکیل کړی دی، چې په کرزي او ورسره امریکایانو باندې حمله وکړي. که چیرې دغه تعرض کامیاب شو. ته همدلته پاته شه او که ناکام شو نو ته هم را شاته شه. خو د شاولیکوټ په خوا تعرض هم امریکایي الوتکو په نښه کړ، د ملا برادر اخند موټر هم ولگید او پخپله ټپي شو. سهار بیا له ملاصاحب سره وغږیدم هغه ویل له دغه ځایه راشاته شه چې محاصره نه شې. همدا مې له ملا صاحب سره وروستۍ خبرې وې.

د رمضان تر اتلسمې نیټې مجاهدین له کندهار ښاره په دفاع توانیدلي وو. له جنوبي اړخه په هوایي ډگر د گل اغا شیرزي د وسلوالو حملې له سخت بمبار سره سره دفع شوې وې. ملا اختر محمد منصور او ورسره مجاهدین د هوایي ډگر په استقامت په دفاعي جگړه بوخت وو. شمال اړخ ته حامد کرزی او ورسره داخلي او امریکایي وسلوال له شاولیکوټ را تیر شوي او د ارغنداب خواجه ملک سیمې ته رارسیدلي وو. دغه وخت جگړه حساس پړاو ته رسیدلې وه.

ملا صاحب هوډ کړی و چې په وروستي سنگر (کندهار) کې تر شهادته وجنگیږي. د ملا صاحب ورور ملا عبدالمنان وایي چې ملاصاحب ملگرو ته وویل چې د کندهار ښار محله جات سیمې ته به ځو او له هماغه سنگره چې د شورویانو خلاف جهاد مو کاوه د امریکایانو خلاف به هم جهاد ته دوام ورکوو.

له ملا محمد عمر مجاهد سره گڼ شمیر مجاهدین هم په دې هوډ کې ملگري وو. خو بل خوا د امارت یو شمیر مشرانو مصلحت دا نه لید چې د امیر المؤمنین په شمول گڼ شمیر مجاهدین یوې داسې جگړې ته دوام ورکړي چې د سر ورونده زیان او د سیمو یومخیز بمبار او ورانې ورسره تړلې وي. نو ځکه د اسلامي امارت یو شمیر نظامي او ملکي امورو مشرانو ملاصاحب ته وویل چې باید له کندهار څخه ووځو. ځکه په

کندهار کې مجاهدین په یوه معلومه نقطه کې تر هدف لاندې دي او امریکایان یې په ډیره اسانۍ بمبارولی او هدف گرځولی شي. خو که ملا صاحب او مجاهدین له کلابند ښار څخه سالم ووځي په اطرافي سیمو کې په وخت سره جهاد ته ادامه ورکولای شي. دغو امارتي مسؤلینو ویل چې د دې لپاره چې دغه گڼ شمیر مجاهدینو ته له کندهاره د سالم وتلو لار برابره شي باید د منځگړو په توسط له مقابل جانب سره خبرې وکړو.

ملامحمدعمرمجاهد په اول کې د دوی له خبرې سره توافق نه کاوه او په مقاومت یې ټینگار درلود خو له بیا بیا مجلسونو وروسته آخري مجلس د۱۴۲۲هجري قمري کال د روژې د مبارکې میاشتې په نولسم ماښام وشو. پدې مجلس کې له سلا مشورو وروسته د مجلس ډیرى گډونوالو په همدې تاکید کاوه چې باید له کندهاره د وتلو هڅه وکړو ځکه په مقاومت ټینگار یوازې ویجاړي او تلفات ډیروي.

په پای کې ملا صاحب د سوله ییز توافق پلویانو ته وویل چې تاسو که د ځان او مجاهدینو د حفاظت یا د ویجاړیو د مخنیوي لپاره کومه طرحه لرئ عملي یې کړئ. خو زما په باره کې له هیچا سره د خبرو او توافق اجازه نه درکوم. له دې غونډې وروسته د امارت ځینو مشرانو په دې خاطر چې بمبار ودریږي او مجاهدین او کورنۍ یې په سالم ډول له ښاره ووځي د یوه پخواني قومندان ملا نقیب په توسط له حامد کرزي سره تماس ونیو چې له کندهار ښاره د وتلو په مقابل کې دې بمبار ودریږي تر څو مجاهدین په خوندي ډول له ښاره ووځي. او په دې سره له کندهار ښاره د مجاهدینو وتل پیل شول.

## له کندهاره وتل

ملا گل اغا اخند وایي چې ملا صاحب له خپلو نږدې ملگرو سره له مشورې وروسته توافق په دې راغی چې ملا صاحب به زابل ولایت ته ځي او راتلونکی جهادي ژوند به هلته تیروي. له توافق وروسته د نصرت مخابرې له لارې د زابل ولایت یو بل مشرمجاهد ملا عبدالجبار عمري چې د امارت د واکمنۍ په وخت کې د بغلان والي و، راوغوښتل شو.

ملا عبدالجبار عمري وايي زه د سيوري ولسوالي کې په خپل کور کې وم چې د نصرت مخابرې مسؤل (ملا حيات الله آخند) غږ راباندې وکړ چې عاجل کندهار تـه ورشـم، زه له خپلو څو ملگرو سره کندهار ته روان شوم، شـپه مـې پـه زاړه گمـرک کـې وکـړه، سبا سهار چې د رمضـان شـلمه ورځ و، د مـلا صـاحب پـه تـلاش ووتـم، لـومړی مـې ملا عبدالرزاق نافذ پیدا کړ ورته ومې ویل ملا صاحب تـه حـال ورکـړه چـې زه راغلی يم. نافذ صاحب لاړ څه وخت بعد ملا شيرين اخند هم ورسره و او دواړه راغلل. زه په موټر کې ورسره سپور شوم او مخامخ يې ملا صاحب تـه وروسـتم. مـلا صـاحب دا وخت د کندهار ښار له چوک مدد سره نږدې په يوه سرای کې و. لـه مـلا صـاحب سره مـلا گـل اغا آخند او څو نور ملگري هم وو. چې ورغلم له روغبړ وروسته نـور مجلـس ونـه شو. ملا صاحب مخامخ د خپل ساتنې په هکله پوښتنه رانه وکړه، ما ورتـه وويـل چـې ساتنه خو دې د الله تعالی کار دی خو زه به خپل وس درنه ونـه سـپموم. مـلا صـاحب وويـل: سمه ده، همدا نن له کندهار ښاره وځو. د مخابرو ځانگړی نمبر مـو سره واخيستی. مـلا صاحب وويل تاسو درځئ د کابل په لاره د نساجۍ له فابريکې سره ودرېږئ، مـوږ هـم دروځو.

عمري صاحب وايي موږ په خپل مـوټر کـې لاړو او د نسـاجۍ لـه فـابريکې سره انتظار شوو. د رمضان شلمه ورځ د غرمې دوولس بجې وې چـې د کنـدهار ښـار لخـوا سپين سراچه موټر راووت. همدا د ملاصاحب موټر و چې زموږ په ليدو يې په مخابره کې غږ وکړ چې تاسو مخکې شئ موږ در پسې يو. د ملا صـاحب پـه مـوټر کـې لـه ده سره دوه ملگري يې ملا عزيز الله اخند او ملا عبدالباري اخنـد هـم وو. دا وخـت چـې د کنـدهار ښار له ټولو خواوو محاصره و او يوازې د کابل او زابل په خوا غځېدلې لاره خلاصه وه، موږ په همدې لار له کندهار ښاره ووتو.

د جلدک په سيمه کې د ارغنداب مانده سيمې تـه چـې ورسـيدو، مـوټر مـو ودرول، همدلته نږدې د ترنـک سـيند تـه کـوز شـوو. اودسـونه مـو وکـړل او د ماسپښـين لمـونځ مو په جماعت اداء کړ. له لمانځه وروسته مو د کلات په خوا سفر تـه دوام ورکـړ، کلات ښار

ته په رسیدو د ملاصاحب د موټر ټایر پنچر شو. د موټر له جوړولو وروسته له کلاته جنوب اړخ ته روان شوو او مازدیګر د سیوري ولسوالی یوه کلي ته ورسیدو.

****

# اووم فصل

## د صلیبي یرغل په مقابل کې د جهاد تداوم

د امریکایي یرغل له پیله د ملاصاحب دا نظر و، که بالفرض طالبان په مخامخ جګړه کې مات شي نو د امریکایي یرغلګرو په وړاندې به هم د شوروي یرغلګرو په شان چریکي جهادي مقاومت دوام پیدا کړي تر څو امریکا په اوږده جنګ کې ستومانه او له پښو وغورځول شي.

د یرغل له پیل نه څو ورځې وړاندې د ۱۳۸۰ لمریز کال د میزان په پنځمه نیټه (۲۰۰۱ میلادي کال د سبتمبر ۲۷ مه) ملا صاحب د شریعت غږ راډیو له څپو څخه یوه اوږده وینا نشر کړه چې په یوه برخه کې یې وویل: اې امریکا او امریکا پلوه خلکو! تاسو څومره خام فکر کړی دی. دا د طالبانو حکومت خو داسې حکومت نه دی لکه د ظاهر شاه حکومت. چې ظاهر شاه روم ته لاړ او دلته عسکري نظام یې سقوط وکړ. عسکر یې بلې ادارې ته ورتسلیم شول. دا د طالبانو نظام خو جهادي منظم ګروپونه دي. منظمې جبهې دي. دا یې په ظاهره حکومت سقوط کړی، خو دا جبهې به بیرته د تیر جهاد په شان کلیو او غرو ته سي. نو بیا به ستاسو څه حال وي. خو بیرته به هغه د کمونیستانو د وخت په شان زوړ حال وي. بیا ته څنګه حکومت کوې؟ څوک به دې عسکر وي؟ که دي امریکایان عسکر وي خو روسان هم د کمونیستانو عسکر وو، څه شول؟ ته به څنګه ګذاره کوې؟ ډېر فکر وکړئ. ځانونه مه بربادوئ. ځانونه مه غرقوئ.دا د مسلمانانو ملک دی، افغانستان د مسلمانانو ځاله ده او د خدای تعالی ورباندې خاص نظر دی)

د ملا صاحب له لوړې وینا څخه معلومیږي چې نوموړی د نورو معاصرو سیاسیونو په شان هغه څوک نه دی چې د حکومت له نړیدو وروسته میدان پریږدي او په کوم بل ملک کې سیاسي پناه واخلي. همدا راز یې دې ته هم اشاره وه چې امریکا دې دا فکر نه کوي چې د طالبانو د حکومت په سقوط او د لویو ښارونو په نیولو سره هر څه پای

ته ورسيدل. بلکې طالبان به له ښارونو عقب نشيني وکړي، غرونو ته به لاړ شي او بيا به له غرونو او کليو د يرغلگرو او د هغوی د ملگرو په خلاف پاييدونکی او نه ماتيدونکی مقاومت پيل کړي.

امريکايانو د کندهار ښار له نيولو وروسته فکر کاوه چې نور د افغانستان قضيه يو طرفه شوې او جنگ پای ته رسيدلی. له همدې امله خو د امريکا دفاع وزير ډونالډ رمسفلد افغانستان ته د خپل لومړني سفر په مهال په دې هيواد کې د پوځي عملياتو بريا اعلان کړه. خو ښايي نوموړی به د امپراطوريو د هديرې (افغانستان) له مقاومتي خاصيت سره پوره بلد نه و نو ځکه يې د کاميابۍ دعوه تر وخت وړاندې وکړه.

په دې خبره اوس امريکايي پوځي کارپوهان هم اعتراف لري چې هغه وخت امريکايي چارواکو د افغانستان له وضعيت څخه سم برداشت نه درلود. د پوځي چارو امريکايي متخصص ډيويډ کال کلين چې د (نوي چريکي جنگونه) تر عنوان لاندې يې کتاب ليکلی او په ۲۰۰۹ ميلادي کال کې چاپ شوی. په يوه برخه کې يې ليکلي (زموږ پوځي مشرانو ته په کار وه چې د طالبانو له سقوط وروسته حالاتو کې يې د يوه پخواني برتانوي جنرال (Sir Olaf Caroe) دا خبره ياد ساتلې وای چې په افغانستان کې د جگړو او شکست د تجربو په رڼا کې وايي (د نورو ځايونو د جگړو خلاف، په افغانستان کې رښتيني جگړه هغه وخت پيلېږي کله چې تاسو د جگړې د پای ته رسيدو فکر وکړئ) د دې خبرې معنی دا ده چې افغانستان ته ننوتل او د ښارونو نيول يې آسانه دي خو په ټول هيواد باندې سيطره راوستل خورا سخت دي. ډيويډ کلين وايي چې د غربي ځواکونو ستره خطاء دا وه چې افغانستان ته داخليدل يې بريا وبلله، حال دا چې اصلي جگړه له دې وروسته پيلېدونکې وه.

د امريکايي اشغالگرو سره دوه مياشتنی مخامخ او جبهه يي مقاومت رښتيا هم د يوې اوږدې جگړې آغاز و. ملا صاحب که څه هم د امريکايانوسره د مخامخ جگړې پر تداوم او د ژوند تر وروستۍ شيبې پورې پرمقاومت ټينگار کاوه خو ورسره يې د امريکايي اشغالگرو خلاف اوږدې جگړې ته تياری هم نيولی و. په همدې اساس ويلی شو چې له کندهار څخه وتل او په زابل کې مخفي کيدل له جگړې څخه د ملا

صاحب (پتېډل) نه بلکې ( ورته پتېډل) یا په کمین کې کیناستل و. چې له کندهار ښخه له وتلو وړاندې د نوموړي ځینې خبرې او اقدامات هم د همدې خبرې ثبوت دی.

د ملا صاحب نږدې ملګری ملا ګل اغا آخند وایي: مخکې له دې چې طالبان له کندهار او ورځیرمه ولایاتو ښخه ووځي. یو شمیر د امارت کسانو اراده درلوده او ملاصاحب ته یې مشوره ورکړه چې دغه ولایات دې هغه جهادي قومندانانو ته وسپارل شي چې له طالبانو سره تر یو حده خواخوږي لري او هم خلک نسبتا پرې راضي وي ( لکه حاجي بشر، ملا نقیب او د جلدک ملا عبدالکریم و غیره)

خو ملاصاحب یې په ځواب کې وویل چې اول خو زه یوه سیمه چا ته نه تسلیموم او بیا که موږ د مصلحت په خاطر له یوه ښاره وځو، نو له موږ وروسته باید داسې ځوک رانشي چې هغه خلک له ځان سره ملګري کړي، د امریکایانو په یرغل او حاکمیت باندې قناعت ورکړي او د اشغال منلو ته یې آماده کړي. موږ به د امریکایانو خلاف جهاد کوو او په جهاد کې د خلکو ملاتړ ته ضرورت لرو. نو داسې کسان مه واکمن کوئ چې د عوامو لپاره دلیل شي او سبا به بیا د دوی په سبب ټول خلک ګمراه او د کفارو په ملګرتیا کې دریدلي وي.

ملا ګل اغا اخند وایي چې ملا صاحب په همدې وروستیو ورځو کې ماته امر وکړ چې د امارت د بودیجې دوه نیم میلیون ډالره پیسې د امارت په مشرانو او نظامي قومندانانو له دې پیغام او لارښوونې سره تقسیم کړم چې دغه پیسې ستاسو شخصي-نه دي بلکې په دې به په خپلو سیمو کې خپل جهادي کار برابروئ. ملګري به اکمالوئ تر ځو یا سره پیدا کوو او منظم کار شروع کوو. له دې ټول جریان ښخه ثابتیږي چې ملا صاحب د اشغالګرو په وړاندې د جهاد د دوام قاطعانه فیصله کړې وه او د دې پایدار مقاومت لپاره یې خپل مخفي سنګر د زابل ولایت ټاکلی و.

## له کندهار ښاره د سور غر تر لمنو

وړاندې وویل شول چې د روژې په شلمه نیټه (۱۴ / ۹ / ۱۳۸۰هـ ش) غرمه مهال ملا صاحب له خپلو دوو ملګرو ( ملا عزیز الله او ملا عبدالباري) سره په سراچه ډوله موټر کې له کندهار ښار څخه د کندهار ــ کابل په عمومي لاره ووت او په همدې ورځ مازدیګر مهال د سیوري ولسوالۍ دعمرزوپه نامه یوه کلي ته ورسیدل.

د سیوري ولسوالي د زابل ولایت د مرکز کلات په جنوب کې پرته ده چې د سور غر په نوم د مشهور غره شمال اړخ ته له ختیځه د لویدیځ په خوا غځیدلې ده. دا ولسوالي د اسلامي امارت له واکمنۍ وړاندې د شینکۍ ولسوالۍ مربوط سیمه بلل کیدله، خو د اسلامي امارت په وخت کې د جلا ولسوالۍ رتبه ورکړل شوه. سیوری کم نفوسه ولسوالي ده، چې خلک یي د انګورو او بادامو د باغونو له حاصله د ژوند ضروریات پوره کوي. ملا محمد عمر مجاهد له کندهاره له وتلو وروسته د پاتې ژوند ټول کلونه په همدې ولسوالۍ کې تیر کړل چې په راتلونکې صفحو کې به وربانديې وغږیږو.

## د زابل په سیوري کې لومړنۍ مشورتي مجلس

سیوري ولسوالۍ ته له رسیدو وروسته ملا صاحب ملا عبدالجبار عمري ته امر وکړ چې د زابل ولایت ټول مخکښ مجاهدین او ډلګۍ مشران را ټول کړي. په دې ډول د زابل اکثره مشران مجاهدین لکه ملا روزي خان عاکف، امیر خان حقاني، ملا عبدالسلام راکتي، ملا محمد نذیر، ملا سعدالله، ملا نیاز محمد، ملا عبدالجبار عمري، ثاقب صاحب، ملا عبدالقهار او ملا عبدالاحد جهانګیروال رایوځای شول او د ملا صاحب په ګډون یې مشورتي غونډه وکړه.

د غونډې په پای کې ملا محمد عمرمجاهد مجاهدینو ته د راتلونکي په هکله لازمي لارښوونې وکړې.

په دې وخت کې د زابل ولایت له مرکزه لا طالبان نه وو وتلي خو د وتلو په حال کې و. ملاصاحب د زابل مجاهدینو ته دا هم وویل چې په کلات کې د قومندان حمیدالله د مشرۍ مخه ونیسئ، قومندان حمیدالله چې د حامد کرزي ملګری و او امریکایانو د

زابل ولایت د تصرف لپاره غوره کړی و د کندهار له لارې د زابل ارغنداب ته رارسیدلی و او اراده یې وه چې کلات تر واک لاندې راولي.

**شینکی ته تګ**

د سیوري ولسوالی په لومړني میشت ځای کې له څو شپو تیرولو وروسته ملا صاحب په همدې کلي کې د عمري صاحب د یوه ملګري عبد الحمید آغا کور ته لاړ، د عبدالحیمد آغا د کورنی اعضاء بل ځای تللي وو او په کور کې یې یوازې ملا صاحب له خپلو ملګرو سره اوسیده. ملا صاحب دلته څو شپې وکړې او بیا د زابل ولایت شینکی ولسوالی ته لاړ او هلته د خپل اخښي مولوي عبدالرحمن صاحب په کور کې دېره شو چې دا د ملا صاحب د مورنی خور کور و، د څو شپو له تیرولو وروسته په شینکی ولسوالی کې د یوه دیني عالم (مولوي محمد اکرم صاحب) کور ته لاړ او څو شپې یې هلته تیرې کړې. دا مهال چې ملاصاحب په شینکی ولسوالی کې و، له ځینو نظامي ملګرو سره یې یوبل مجلس هم وکړ چې ملا عبدالرزاق نافذ، ملا عبدالقاهر آخند، ملا عبدالجبار عمري، ملاعبدالباري او احمد جان اخندزاده د دې مجلس برخوال وو. په دې مجلس کې هم د جهاد د تداوم په اړه سلامشورې وشوې. په کندهار کې د اسلامي امارت د انحصاراتو د ادارې مسؤل ملا عبدالباري چې په دې مجلس کې یې ګډون کړی وایي چې مجلس د شپې دائر شو. موږ هغه کور ته ورغلو چې ملاصاحب په کې اوسیده، په برنډه کې ګاز ډبه لګیدله او رڼا ته یې مجلس روان و. خبره پردې کیدله چې څه کوو؟ او جهادي عملیاتو ته باید څرنګه دوام ورکړو.

ځینو ملګرو وویل چې یو څه موده به صبر وکړو، امریکایان په جوش کې دي، وروسته به عملیات پیل کړو، خو ملا صاحب وویل چې هرڅوک دې په خپله سیمه کې د خپل توان مطابق کار پیل کړي. د مجلس له پای ته رسیدو بعد ملا صاحب ملا عبدالرزاق نافذ ته وویل چې خپلې اصلي سیمې روزګان ته مه څه، بلکې همدلته زابل کې موږ ته نږدې اوسه. نافذ صاحب له همدې امله ډېر وخت په زابل کې اوسیده خو کله چې ملاصاحب د امنیتي خطر له امله تنها ژوند غوره کړ او یوازې د خاص استازي په توسط یې له مجاهدینو سره رابطه کوله، بیا نو نافذ صاحب هم روزګان ته لاړ.

ملا صاحب د روژې وروستۍ ورځې او اختر په شينکۍ ولسوالۍ کې تير کړ، دا وخت د هيواد په سطحه د امريکايانو پوځي عمليات، تبليغات او رواني جنګ خورا په زور او ځشور کې و. راډيوګانو پرلپسې د امريکايانو د بريـا او د طالـب مشـرانو د نيولـو او وژلـو خبرونه ورکول. د زابل ولايت يوه پخواني مجاهد قومندان نور الله لـه ملاصـاحب سره د ملاقات په وخت هغه ته مشوره ورکړه چې پاکستان تـه لاړ شي او پـه دې برخـه کـې بـه دی ورسره همکاري هم وکړي. خو ملاصاحب پاکستان ته د تګ خبره رد کـړه او ويـې ويل چې همدلته اوسيدل غوره ګنم.

## سيوري ته راګرځيدل

ملا صاحب او ورسره دوه تنه ملګري يې ( ملا عزيز الله او ملا عبـدالباري ) چـې د روژې په پنځه ويشتمه شينکۍ ته تللي وو، د اختر په څلورمه چې د ۱۳۸۰ لمريز کـال د قـوس د مياشتې ۲۸ سره سمون خوري د ملا عبدالجباري عمري صاحب پـه رهنمايـۍ بيرتـه د سيوري ولسوالۍ ته راوګرځيدل. په سيوري ولسوالۍ کې يـې لـومړی د خـورج پـه کـلي کې د ملا عبـدالکبير آخنـد پـه کـور کـې ۱۸ شـپې ګـوزاره وکـړه او بيا يـې پـه همـدې ولسوالۍ کې د خوړې په نامه کلي کې د يوه بل مجاهد( عبدالصمد استاد ) په کـور کـې اقامت غوره کړ.

د سيوري په ولسوالۍ کې دغه کور چې ملا صاحب د ۱۳۸۰ لمريز کال د جـدي لـه ۱۶ مې نيټې بيا تر ۱۳۸۵ لمريز کال پورې په کې واوسيد. موږ يې په دې کتاب کـې يـوازې په (اولني کور) سره يادوو.

## اولنی کور( ميشت ځای )

په دې کور کې ملا صاحب او ورسره ملګري ملا عزيزالله اخنـد، ملاعبـدالباري اخنـد او ملا عبدالجبار عمري د ۱۳۸۰ هـ ش کال د جدي په شپاړسمه ځای په ځای شـول. دوی د کور يوه اړخ ته کوټو کې اوسيدل چې دروازه به د شا لخوا ورپسې کولـپ وه، تـر څـو کور ته راتلونکي ګاونډيان ونه پوهيږي چې په دې خونـه کـې څـوک شـته. پـه لومړيـو ورځو کې څرنګه چې ژمی و او هوا سړه وه، په همدې کوټـه کـې بخـارۍ لګـول شـوې

وه، خو د ورځې په کې ځکه اور نه لګول کېده چې ګاونډیان شک وانخلي چې ځرنګه د دې خالي خونې له دودکش څخه دود وځي. که به کور ته څوک میلمانه راغلل. نو په لوړ غږ خبرو سره هم احتیاط کېده، تر څو غږ بهر ونه وځي. د ۱۳۸۰ لمریز کال ترپایه ملا صاحب او ورسره درې تنه ملګرو همدلته ګوزاره کوله. د پسرلي په راتګ سره د ملا صاحب ملګری عمري صاحب د ملا صاحب په اجازه لاړ او دوه ملګري ملا عزیز الله او ملا عبدالباري له ملاصاحب سره پاته شول.

عمري صاحب وايي تر کومه چې زه وم، نو زیاتره به مو پخلی پخپله کاوه، د کور خلکو به پخه ډوډۍ او د کټغ لپاره شیان راوړل او موږ خپله په همدې کوټه کې پخول. د هغه مزاج همداسې جوړ و چې ځان يي د ملګرو تر منځ ممتاز نه باله.

د همدې کور یوه غړي او د ملاصاحب میلمه پال حاجی عبدالاحد راته وویل: د امریکایي یرغل په اولو میاشتو کې ملا عبدالجبار عمري زموږ کره راغی زما مشر ورور ته یي وویل چې که د ملا صاحب په ساتنه کې راسره همکاري وکړئ. موږ موافقه وکړه، بله شپه ملا صاحب، ملا عبدالجبار عمري، ملا عزیز الله او ملا عبدالباري راغلل او زموږ کره یي واړول، تر څو میاشتو پورې درې واړه ملګري هم له ملاصاحب سره وو، دوی ته مو کتابونه راوړل، مطالعې به یي کولې. څه وخت بعد یي یو ملګری رخصت کړ،پاته دوه ملګري یې تقریبا تر دوه کاله پوري همدلته ورسره وو وروسته یې هغه هم رخصت کړل او ملاصاحب یوازې پاته شو. ملا صاحب به تلاوت ډېر کاوه، مطالعه به یې کوله، راډیو به یې اوریده او کله به یې سر په ځنګون ایښی او تر ډېره به مراقبه و. کله به مو د کورکوچنیان (دغیږې ماشومان) هم وروړل ساعت به یې ورسره تیر و.

ملا صاحب موږ ملا عبدالله آخند باله، لومړی مو د کور په یوه طرف کې دوه اطاقونه ورکړي وو چې په منځ کې یې دهلیز و او د دهلیز دروازه به د بهر لخوا کولپ وه ظاهرا د چا شک نه راتلو چې دلته به څوک وي.د دې لپاره چې څوک ډېر رانشي له خپلوانو او حتی نورو ورونو سره مو تعلقات کم کړي وو. یوازې د کور لوی نارینه او ښځینه خبر وو. مور مې چې اوس وفات شوې ده په دې کې ډېره همکاره وه او په ډېر مهارت

بې دغه راز پټ ساته، وروسته موږ په باغ کې نوی سرای جوړ کړ او ور انتقال شوو، خو هلته مشکل دا و چې دا کور له کلي يو څه وتلی و، کله به چې امريکايان کلي ته راغلل نو اول به زموږ د کور سره نږدې ودريدل د همدې مشکل له امله مو کور بيرته زاړه سرای ته انتقال کړ او د ملا صاحب د حفاظت لپاره مو نوی ترتيب جوړ کړ.

د کور په کونج کې د نورو کوټو ترمنځ مو ملا صاحب ته داسې کوټه جوړه کړه چې په اسانۍ چا ته نه معلوميده، چې دلته به کوټه وي. دې کوټې ته يوازې د ځنګلورې کوټې څخه په الماری کې ور ورخلاص و. ظاهرا داسې معلوميده لکه دا چې الماری وي. خو هغه په حقيقت کې دروازه وه او د ملا صاحب کوټې ته به ترې تګ راتګ کيده.

دا چې ملا محمد عمر مجاهد د امريکايي يرغل وروسته مخفي ژوند اختيار کړ، نو څوک يې بايد د نوموړې په ويريدلو ورحمل نه کړي. هغه په عامه اصطلاح له امريکايانو څخه پټ نه بلکې (ورته پټ) و. معنی دا چې هغه پوهيده چې امريکايان په پوځي لحاظ ډير وسائل او امکانات لري او په مخامخ او ښکاره جګړه کې برلاسي کيږي. لکه څنګه چې عامو مجاهدينو د جبهه يې مقاومت پر ځای چريکي مقاومت پيل کړ او د علني تهاجمونو په عوض يې مخفيانه عملياتو ته توجه وکړه. ملا صاحب هم د بارز فعاليت پر ځای مخفيانه فعاليت غوره وباله. تر څو وکولای شي امريکايان په يوه اوږده او حوصله ماتوونکي جګړه کې راښکيل کړي.

د داسې مصالحو په خاطر ځان مخفي کول د پيغمبرانو او د امت د لويانو سنت او طريقه ده. لکه رسول الله صلی الله عليه وسلم چې کله له مکې مکرمې څخه د هجرت په وخت له ابوبکر صديق رضی الله عنه سره يو ځای څو شپې په غار ثور کې تيرې کړې. څکه کفارو يې پر سر د سل اوښانو جائزه ايښې وه. مشرکانو هغه تر دې حده تعقيب کړ چې د غار ثور خولې ته راورسيدل. ابوبکر صديق رضی الله عنه رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل چې که دوی خپلو پښو ته وګوري نو موږ به ورمعلوم شو. خو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په الله تعالی ټينګ باور و نو يې ځواب ورکړ چې ستا څه فکر دی د هغو دوو په هکله چې دريم يې الله تعالی دی. يعنی الله تعالی به

زموږ حفاظت کوي. همداسې وشول چې الله تعالی رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه ملګري ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته د همدې مخفي کیدو او احتیاطي تدبیر په سبب نجات ورکړ.

واقعیت دا دی چې د ملا صاحب ساتنه هم د الله تعالی یو ځانګړی فضل او د دې عظیم مجاهد یو ښکاره کرامت و. ځکه نوموړی په داسې سیمه کې اوسیده چې هلته امریکایانو بیا بیا پوځي عملیات ترسره کول. د نوموړي حفاظتي تدابیر هم ډیر معمولي او یوازې د هغه کور د ځښتن ابتکار و چې ملا صاحب په کې اوسیده. امریکایان څو ځله د ملا صاحب د اوسیدو تر ځایه هم راغلل. خو الله تعالی په خپل ځانګړي فضل سره هغه د امریکایانو له شر او اذیت څخه خوندي وساته.

**په خپل عقل مکلف یم**

د امریکایي یرغل لومړني کلونه د امریکایانو د ډیر پوځي فشار او استخباراتي تلاش کلونه وو. امریکایان چې د یرغل او پوځي بریا په مستۍ کې وو، د افغانستان په ټولو ښارونو، کلیو او حتی غرنیو او صحرایي سیمو کې یې ګزمو، عملیاتو او تلاشۍ جاري ساتلې وې. له بلې خوا یې د اسلامي امارت د مشرانو په خاص ډول د ملا محمد عمر مجاهد په سر هم ستر انعام ټاکلی او د پیدا کولو لپاره یې له الوتکو څخه تبلیغاتي پاڼې شیندلې. په دې کلونو کې په افغانستان کې دننه ژوند هغه هم د داسې مطلوب شخص لپاره له خطر څخه خالي نه و. خو له دې سره سره ملا صاحب په افغانستان کې هغه هم د زابل غوندې ولایت کې چې تر نورو سیمو وړاندې په کې جهادي تحرکات پیل شول او د امریکایانو توجه یې جلب کړه پاته شو او له هیواده وتلو ته یې زړه ښه نه کړ.

د ملاصاحب ملګری او استازی ملا عزیزالله اخند چې په دې کلونو کې لومړی له ملاصاحب سره یوځای اوسیده او بیا یې هم د استازي په حیث ورسره همیشه لیده کاته کول، وایي چې موږ به ملا صاحب ته ویل چې پدې سیمه کې اوسیدل ستا لپاره خطر دی. دغه راز د خلکو تر منځ به دا خبرې ګرځیدې چې له امریکایانو سره داسې سپیان شته چې د تلاشي په وخت خلک ورباندې پیدا کوي. دا کیسې به چې موږ اوریدې نو

په ملاصاحب به ویریدو چې هسې نه خدای مکړه د دښمن پـه لاس ورشي. خـو چې کله به مو دا خبرې ملاصاحب ته کولې، ده به ویل: ماته دا خبرې مه کوئ، زه یوازې پـه خپل عقل او تدبیر مکلف یم، ما ته خپل عقل وایي چې همدلته په افغانستان کې ښه پـه امن یم او الله تعالی به مې ساتنه کوي. زه ستاسو په عقل نه یم مکلف.

د ملا صاحب توکل خورا لوړ و. هغه دا چې په ډېر سخت حالت کې یې هـم پـه څیره کې وارخطایي نه معلومیده، په الله تعالی یې کامل باور درلود چې ساتنه بـه یـې وکـړي. حتی کله ناکله به یې قسم واخیست چې امریکایان او د هغوی گوډاگیـان ماتـه ضرر نـه شي رسولای. د هغه توکل هغه وخت چا ته د فهـم وړ نـه و، خـو وروسته معلومـه شـوه چې هغه الله تعالی همداسې وساته لکه ده چې څرنگه په الله تعالی توکل کړی و.

**په لومړني میشت ځای کې د امریکایانو تلاشي**

د اولني کور یو تن غړی حاجي عبدالاحد وایـي: ملاصاحب چې زمـوږ کـره و، څلـور واره په کلي د امریکایانو چاپه او تلاشي راغله خو په هر ځل الله تعالی ترې وساتلو. یـوه ورځ چې سهار وختي راپاڅیدو گورو چې کلی امریکایانو په سر اخیستی دی. زموږ پـه کور کې د بوټو یوه لویه کوټه وه. موږ یي منځ خالي کړی و او د اړتیا پـه وخـت سـړی منځ ته ورداخلیدلی او پـه کـې پنـاه کیـدلی شـوای. مـلا صـاحب لـه خپلـو ملگـرو سره احتیاطا همدلته پنا واخیسته. خـو امریکایـانو ځینـي کورونـه تـلاشي کـړل او بیرتـه لاړل. زموږ تر کوره تلاشي را ونه رسیده.

بل وار مازدیگر راغلل، موږ په کور کې نه وو، مور مې چې زموږ په نه شـتون کـې یـې د کور سرپرستي کوله هم له کوره وتلې او د یوه گاونډي کره وه. هغه چې د امریکایانو پـه راتگ خبره شوې وه په بیړه یې ځان کور ته د رسولو هڅه وکړه. امریکایان تر څه وختـه شاوخوا گرځیدل په کلي کې ځای ځای او زموږ د کور مخته یـي هـم ټانگـان درولي و او بیرته لاړل ملا صاحب یې په راتگ نه و خبر شوی.

بله ورځ غرمه مهال کلي ته امریکایان راغلل او په ټول کلي کې یې تلاشي پیل کړه، مـلا صاحب په خپله پټه خونه کـې وه، امریکایـانو د کـور ټـولې خونې وکتلـې، سـپیان هـم

ورسره و. هغه ځای ته هم ورغلل او تلاشي يي وکړه چې د ملاصاحب ځانګړې خونې ته ترې د الماری له لارې دروازه پرې وه، خو دوی پوه نه شول او نه هم سپيانو تـه درک معلوم شو. بيرته لاړل چې ملا صاحب ته ورغلو وارخطاء نه و او ويل يي تاسو بيغمه اوسئ، الله تعالی به مو وساتي.

بل وار د شپې آخر سپيده چاود مهال و چې ډبلډبنې طيارې په کلي راشيوه شوې، زموږ د کور له څنګ سره خوړ کې هم ۳ چينوک طيارې کيناستې د کلي لـه بـرسر څخه يي کور په کور تلاشي راشـروع کړه. کوم سړي چې د سهار د لمانځه لپـاره لـه کـورو وتـلي وو ټول يي بهر کينول او چاته يي کور ته د تګ اجازه نه ورکوله، موږ لا جماعـت تـه نه و وتلي چی په کور کې را ايسار شوو، دغه وخـت زمـوږ کـور تـه تـلاشي رانـږدې وه، د تلاشي له خلکو مخکې دوه امريکـايي ښـځې او يـوه افغانـه ترجمانـه زمـوږ د دروازې خواته راغلې، وروسته کورته راننوتې او زموږ د کور له ښځو سره يې مجلس شروع کړ، چې دلته خو به طالبان نه وي. هغوی ويل نشته طالبان، دوی مجلس ته دوام ورکړ چې وروسته د تلاشي والا راغلل، دغه ښځې ورووتلې او هغوی ته يي وويل چې دغـه کـور موږ وکوت، طالبان نشته او په دې ډول تلاشي زموږ له کوره واوښته.

حاجي عبدالاحد وايي چې ملا صاحب که څه هم ټول احتيـاط کـاوه چـې لـه دښمن څخه ځان وساتي. خو بيا يې هم په خپـل استوګنځای کـې وسـله هميشـه لـه ځـان سره ساتله. يو کيوبايي کله کوف، يو کلاشينکوف او يـوه شـل ټکـه ميګـاروف تفنګچه له پريمانـه مرميـو سره هميشـه د مـلا صـاحب تـر څنـګ وو، کـه احـتمالا امريکايـان د ملاصاحب په موندلو توانيدلي وای نو ملاصاحب ورته د تسليمي اراده نه درلوده.

### د مرستيالانو ټاکل او رهبري شوری تشکيل

د امريکايانو د يرغل لومړنی کال د اشغالګرو د ډېر پوځي فشار او يو اړخيز تهاجم کال و. د اسلامي امارت مجاهدينو کـه څـه هـم پـه دې کـال د تـورې بـوړې، شـاهيکوټ، د بولدک د هډې غر او د زابل ولايت د خورو ورو جګړو په شان د اشغالګرو پـه وړانـدې مقاومت ته دوام ورکاوه، خو دغه جهادي عمليات د اسلامي امـارت د پخـواني تشکيل

او ترتیب له مخې روان وو او لـه نـوي وضـعیت سره سـم نـوي تشـکیلات نـه و رامنځتـه شوي.

د دې تأخیر یو علت که یو اړخ ته د لومړي کال سختې، کړاوونه او اضطراري وضـعیت و بله خبره دا هم وه چې ملا عبدالجبار عمري صاحب وایي چې ملا صاحب امریکـایي یرغل ته د اسلام او کفر د یوه لوی جنگ په نظر کتل او ویـل بـه یـې چـې مسـلمانان او ټولـه اسـلامي نـړۍ لـه یـوه سـتر ازمیښـت سره مخامخ ده. نومـوړي تمـه درلـوده چـې مسلمانان به د امریکایي یرغل په وړاندې بې تفاوته پاتـه نـه شي، د افغانسـتان د مجاهـد ملت ملاتړ به وکړي او له اسلامي خاورې د صلیبي تسلط د پای ته رسولو لپاره به خپلـې هڅې سره شـریکي کړي.

د اشغال له پیل نه د یو کال په تیریدو سره د هیواد په بیلابیلو سیمو کې جهادي مقاومـت هم د نوې ساه اخیستو پـه حـال کـې و، داسـلامي امـارت یـو شـمیر لوړپـوړو پـوځي او ملکي چارواکو د ځانگړیو استازو پـه توسـط لـه ملاصـاحب نـه غوښتنه کولـه چـې لـه موجوده وضعیت سره سـم د جهـاد د رهبرۍ لپـاره نـوې تشـکیلات منظـور کـړي چـې بالآخره ملا صاحب د جهادي چارو د مخامخ رهبرۍ لپاره پخوانی د دفاع وزیـر مـلا عبید الله اخند او ملا عبدالغني برادر مشـران وټاکـل. څـه مـوده وروسـته یـې یـو صـوتي پیغام ثبت کړاو په هغه کې یې نوي وضیعت ته په کتو سره رهـبري شـوری تشـکیل کـړه چې لومړنی تشکیل یې ۱۱کسان وو. ملا عبیدالله اخند، ملا بـرادر اخنـد، مولـوي جـلال الدین حقاني، ملا محمد حسن اخند، ملا اخترمحمد منصور، مـلا دادالله اخند، مولـوی اخـتر محمـد عـثماني، حـافظ عبدالمجیـد صـاحب، مـلا گـل اغـا اخنـد، مولـوي احمدالله (مولوي نانی صاحب) او ملا عبدالرزاق نافذ.

خو د همدې کـال پـه وروسـتیو کـې یـې د ۸ کسـانو پـه زیـاتولو سره د رهـبري شـورى تشکیل نور هم پراخ کړ لکه مولوي نور محمـد ثاقـب، مولـوی عبدالکبیرصـاحب، مـلا عبداللطیف منصـور، قـاری دیـن محمـد حنیـف، امیرخـان حقـاني، مـلا محمـد حسـن رحماني، ملا عبدالسلام کاتب او مولوي امین الله صـاحب. خـو وروسـته مـلا صـاحب وخت په وخت پـرې نـوي اعضـاء ور زیـاتول تـر دې چـې د مـلا صـاحب د ژونـد تـر

وروستیو یې شمیر ۲۵ کسانو ته ورسید، چې په دې لړ کې ملا امیر خان متقي، ملا عبدالقیوم ذاکر، ملا عبدالرزاق آخند، شیخ الحدیث مولوی عبدالرشید شینواری، ملا محمد رسول او ملا عبدالرؤف خادم هم د رهبري شوری اعضاء شول. د دې سره په هغه وخت کې د سیاسي کمیسیون د مشر طیب اغا په پیشنهاد او د ملا صاحب په منظورۍ د سیاسي کمیسیون درې تنه اعضاء شیر محمد عباس ستانکزی، ملا عبدالسلام حنفي او مولوي نیک محمد هم په رهبري شوری کې شامل شول.

د رهبري شوری د جوړولو په تعقیب ملا صاحب د یوه بل پیغام په لیږلو سره د جهادي چارو د ښه تنظیم او مخامخ رهبرۍ لپاره نظامي کمیسیون تشکیل کړ، نظامي کمیسیون دوه تشکیله درلودل، چې د افغانستان ولایات یې په شرقي او غربي حوزو ویشل. په شرقي حوزه کې ۲۲ ولایات راتلل چې د نظامي کمیسیون مشر یې صدر ملا محمد ابراهیم صاحب وټاکل شو او په غربي حوزه کې ۱۲ ولایات راتلل چې مشر یې شهید قاري فیض محمد سجاد صاحب وټاکل شو.

د نظامي کمیسیون له جوړولو سره یو ځای د ملکي خدماتو د سرته رسولو لپاره لوړی اقتصادي، فرهنګي او سیاسي کمیسیونونه جوړ شول، چې په مربوطه برخو کې یې خپلې چارې تعقیبولې. وروسته د قضاء او محاکمو اداره، د صحت کمیسیون، د تعلیم او تربیې کمیسیون، اقتصادي کمیسیون، د بندیانو د چارو کمیسیون، د شهیدانو، معلولینو او یتیمانو د چارو کمیسیون، د دعوت او ارشاد کمیسیون، د مؤسساتو کمیسیون، د ملکي تلفاتو د مخنیوي اداره او نورې خدماتي ادارې هم جوړې شوې او امارت یو ځل بیا د یوه بشپړ نظام په حیث بروز وکړ.

دا چې ملاصاحب په یوه مخفي ځای کې ژوند کاوه او له مجاهدینو سره یې یوازې د دوو استازو په توسط رابطه وه، ملاصاحب د چارو د چټک ترسره کیدو لپاره رهبري شوری ته پراخ واکونه ورکړي وو.

## د میشت ځای بدلون

وړاندې وویل شول چې ملاصاحب د مخفي ژوند کلونه په دوو کورونو کې تېر کړل، چې په اول کور کې یې تقریبا پنځه کاله او په دوهم کور کې یې شاوخوا اوه کاله عمر تېر کړ. لکه څنګه چې په افغانستان کې دننه پاته کیدل د ملا صاحب خپله فیصله او د ده په خبره د خپل عقل او تدبیر په مقتضا عمل و، د میشت ځای بدلون هم د نومړي همداسې یوه ناڅاپي او هیښوونکې پریکړه وه.

د ملاصاحب استازی ملا عزیز الله اخند وایي چې یوه ورځ ناڅاپه د هغه کور غړو چې ملاصاحب په کې دیره و راسره رابطه وکړه چې ملاصاحب وایي همدا نن را روان شه او ځان راورسوه. دې خبرې زه هک پک کړم او فکر مې کاوه چې شاید کوم عاجل کار پیښ شوی دی. سفر مې پیل کړ او د شپې ناوخته مې د ملاصاحب تر میشت ځای ځان ورساوه.

لومړی مې د کور له مشر سړي مجلس وکړ او پوښتنه مې ترې وکړه چې څه خبره پیښه ده چې دومره عاجل یې راوغوښتم؟ هغوی ویل: موږ هم نه پوهیږو موږ ته ملا صاحب یوازې دا ویلي چې ملا عزیزالله اخند راوغواړئ. کله چې ملاصاحب ته ورغلم، الحمد لله جوړ او روغ ناست و، خپل لاسي بیګ او کلاشنکوف یې مخته ایښي و. له حالت نه داسې معلومیده لکه زما راتګ ته چې منتظر وي او دستي ولاړیږي، چې روغبړ مو سره وکړ، دستي یې وویل: درځه چې ځو د خیره. زه ور ته وایم چیري ځو د خیره؟ الله پاک دې خیر کړي، ولې څه مشکل خو به نه وي؟ وای هیڅ مشکل نشته،په همدې سیوري ولسوالۍ کې د عمرزو کلي ته ځو. زه ورته وایم اوس بیخي ناوخته هم دی، هغه خلګ چې ورځو هغه هم ناخبره دي او زه هم ښه بلد نه یم، تیاره هم ده او لاره ډیره اوږده ده.

بیا مې ورته وویل چې زه به ورشم د دې کور له غړو سره به دا خبره شریکه کړم. هغوی په بله کوټه کې ناست وو او چې کله زه ورغلم او هغو ته مې وویل چې ملاصاحب ستاسو له کوره د تګ اراده لري نو ډیر خپه شول او پوښتنه یې وکړه چې ولې خپه شوی خو به نه وي یا څه مشکل خو به نه وي؟ ما ورته وویل چې نه هیڅ خپه نه دی بلکې اراده یې کړې ده چې د اوسیدو ځای بدل کړي. بیا کوربنو ویل چې موږ

به درسره لاړ شو او په لاره کې به مو ملګرتیا وکړو خو ملاصاحب وویل چې نه تاسو تکلیف مه کوئ موږ دواړه ان شاءالله لاره پیدا کولای شو.

بیا موږ خپله وسله او یو بکس چې د ملاصاحب د ضرورت سامان په کې وو، هغه مو را واخستل او روان شوو، دا ۱۳۸۵ لمریزکال و، له یوې خوا تیاره او بل زه هم پوره بلد نه وم او تر هغه کلي ښه اوږد مزل و، په لاره کې د امریکایانو اډه یا قرار گاه هم وه، د حکومت ولسوالي او پوستې هم وې، موږ کوښښ کاوه چې بې لارې ولاړ شو، خو د امریکایانو د قرار گاه بتۍ دومره تیزې وې چې هر څه کوښښ به مو وکړ نه به ور څخه نهامیدو (پټیدو) له لاري څخه هم ډېر نه شوای اوښتلای، د نابلدتیا په خاطر چې وابه وښتو لوړي او ژوري ډیري وې، ملا صاحب مرحوم ډېر په تکلیف شو، ډېر وخت نه وو ګرځیدلي، څه کم پنځه کاله ځای پر ځای پاته شوی و، نو ځکه یې مزل نه شوای کولای، بله دا چې په لاره کې په تروږمۍ سربیره لوړې او ژوري، خاشې او ځوځان هم ډېر وو، په دې شپه به مو ټول تقریبا پنځه ساعته مزل کړی وي. د سفر په جریان کې یو ځل ملاصاحب دومره ستړی شو چې مزل یې نه شوای کولای. خو بیا هم په ډېر تکلیف روان و، ما به ورته وویل چې په شا به مو واخلم، خو د ده زړه نه وه او خپله هڅه یې کوله، خو چې یو مخ له تګ ولوېد نو بیا به ما تر یو ځایه پورې یو وار هغه اسلحې او سامان ورساوه او بیا به مې د ملاصاحب سره په تګ کې کومک کاوه. یو څه لاره همداسې لاړو، خو وروسته ملاصاحب بیرته ښه شو او په خپلو پښو راسره روان شو.

کلي ته چې ورسیدو هغه کور ته چې موږ ورتلو د هغه تر څنګ له یوه دیوال سره، ملا صاحب کیناست (دا کور د مرحوم شیرعلي اکا و او دا هغه کور و چې ملا صاحب د کندهار څخه اول وار راغی همدلته یې د زابل مشرانو مجاهدینوسره غونډه وکړه او اولې شپې یې هم دلته وکړې) ما ویل زه به یو وار کورته ورشم معلومات به وکړم چې میلمانه څوک شته او که نه؟ او د کوټې دروازه به خلاصه کړم، ځکه که مو دروازې ټکولای شاید د شاوخوا کورونو خلک هم را خبر شوي وای. د شیرعلي اکا د میلمه ځای (کوټې) دروازه د سرای د دروازې څخه جلا وه، سرای بیا د ننه د میلمه ځای سره

لار درلوده، زه چې دروازې ته ورغلم د الله پاک فضل و، هم دروازه اسانه خلاصه شوه او هم په میلمه ځای کې میلمانه نه وو، بیخي ډېر خوشحاله شوم، ملا صاحب ته چې راغلم ما ور ته وویل الحمد لله هم دروازه خلاصه شوه او هم میلمانه نشته، ملا صاحب مرحوم هم ډېر خوشحال شو، کوټې ته ورغلو، ملا صاحب په کوټه کې کیناست، ما کور والا خبر کړل، کور والا ډېر وارخطا شول، چې دا څنګه په دا نیمه شپه او بې خبره راغلاست، څه مشکل خو به نه وي؟ ملا صاحب ور ته وویل خیر دی، هیڅ مشکل نشته، دوی ډېر حیران وو، بیا ملا صاحب مرحوم شیرعلي ته وویل چې ور شه ملاعبدالجبار عمري را خبر کړه. بیا یې هغه را خبر کړ او ملاصاحب له هغوی سره په موافقه د هغوی په کور کې واړول چې بیا یې پاته ټول عمر په همدې میشت ځای کې تېر کړ.

## دوهم میشت ځای

د ملاصاحب همدغه دوهم د اوسیدو ځای هم د زابل ولایت د سیوري ولسوالۍ د عمرزو په کلي کې دی، په دې کور کې ملا صاحب د خپل ژوند وروستي کلونه (اوه کاله او پنځه میاشتې وخت)تېر کړي، د ملاصاحب له وفات څو کاله وروسته د همدې کتاب د موادو راټولولو په مهال زه ( د دې کرښو لیکوال) دغه کور ته ورغلم او د کور غړو راته د ملاصاحب د ژوند او اوسیدو د څرنګوالي په اړه معلومات راکړل.

دا یو له ختو جوړ پخوانی کور دی، چې د سیمې د نورو غریبانه کورونو په شان یې ټیټ دیوالونه او په ابتدائي طریقه جوړې شوې کوټې درلودې، د مهمانخانې سرای یې زړه دروازه درلوده،د مهمانخانې د سرای دننه شمال اړخ ته یوه اوږده او نسبتا ښه جوړه شوې کوټه وه، دا د کور عمومي میلمه ځای دی، دلته به چې د ملا صاحب استازي راغلل ډوډۍ به یې خوړله، د همدې سرای نه د قبلې اړخ ته دروازه خلاصه ده او دننه کوټه ده، چې د احتیاطي مخفي کیدو ځای هم په کې جوړشوی دی، ملاصاحب اول په همدې کوټه کې واړول او دوه کاله په کې واوسید.

وروسته کوربنو د همدې کوچني انګړ شاته یو بل سرای جوړ کړ،چې شمال دور ته یې دوه کوټې او مخې ته یې مامته( د پالیز کرلو ځای) جوړ کړل. په دې دوو کوټو کې د

شرق خواته کوټه د ملاصاحب لپاره جوړه شوې وه، چې مخې ته یې کوچنۍ برنډه، لمر ته د ناستې ځای او یو کوچنی چمن هم درلود. دې کوټې تشناب او د احتیاطي مخفي کیدلو خاص ځای هم درلود چې د احتمالي خطر په وخت کې به ملاصاحب هغلته تلو.

زه چې دې سرای ته ورغلم نو ومې لیدل چې د کوټو مخې ته مامته بانډې نهالونه ولاړ وو. د انګورو تاکان، د بادامو نارسیده ونې او د ګلانو بوټي هم وو، مخامخ د ملاصاحب د اوسیدو ځای و، یوه کوچنۍ برنډه، چې مخ ته یې د یونیم متر په طول او عرض کوچنی د چمن ځای درلود، له برنډې نه دننه خواته دروازه خلاصه ده، دا د ملا صاحب د اوسیدو ځانګړې کوټه وه، درې په درې متره کې ختینه کوټه چې سپین رنګ ورکول شوی و، په کوټه کې د قبلې اړخ ته لرګین کټ ایښی و، دا د ملاصاحب د ناستې خاص ځای و چې د ډیرې ناستې له امله یې په شاتني دیوال د اوږو او سر نښې تر اوسه پاته وې چې ده به تکیه ورته کوله. له کټ سره نږدې ډېر کتابونه هم ایښي و چې ملاصاحب به مطالعه کول.

کوټې یو کوچنی حمام درلود او ورسره په دیوال یوه کوچنۍ الماری جوړه وه چې ژېړ رنګ ورکول شوی. همدا الماری اصلا د ملا صاحب د نجات ظاهري ذریعه وه. دا الماری په اصل کې کړکۍ یا دروازه ده چې شاته پورې وهل شي نو خلاصیږي او د دیوال په اړخ کې په مهارت جوړ شوي پټنځای ته د ورتګ لاره ده، کله به چې تلاشي راتله نو ملا صاحب به د همدې الماری له کړکۍ څخه مخفي ځای ته اوښت او د چا شک نه راته چې دلته دې کوم بل ځای هم وي

**په دوهم میشت ځای کې امنیتي خطرات**

هغه سیمه چې ملاصاحب د خپل ژوند وروستي شاوخوا ۷ کلونه په کې تېر کړل د سیوري ولسوالی مرکز ته نږدې پرته ده. د امریکا خلاف جهاد کې زابل ولایت د هغو ولایتو د جملې څخه دی چې تر نورو ولایاتو وختي په کې جهادي عملیات پیل شول. شهید ملا روزي خان آخند او ځینو نورو مجاهدینو آن له ۲۰۰۲ م کال څخه د چریکي بریدونو لپاره خپل تشکیلات منظم کړي او د زابل په جنوبي ولسوالیو کې بې

کله کله په حکومتي او امریکایي اهدافو باندې بریدونه کول. همدا وجه وه چې امریکایانو په دې ولایت کې د خپلو ځواکونو د اکمال او پر وخت هوایي ملاتړ لپاره د سیوري په ولسوالی کې یوه لویه پوځي اډه جوړه کړه او بیا یې د زابل له مرکز کلات څخه پوخ سرک ورته را جوړ کړ. په دې اډه کې چې د څرخکو میدان هم په کې و، امریکایانو ترې په ټول زابل کې چاپې اچولې او د څرخکو په واسطه یې هوایي عملیات ترسره کول.

کومه سیمه چې ملا صاحب په کې اوسیده، خلکو یې له مجاهدینو سره بشپړه همکاري درلوده او اکثره ځوانان یې عملا مجاهدین وو، تر دې چې د امریکا ضد جهادپه لړ کې د دې کلي تر شلو زیات مجاهدین د شهادت مقام ته رسیدلي دي. همدا لامل و چې امریکایانو هم دې سیمې ته د مجاهدینو د نفوذ او ځواک د سیمې په نظر کتل او همیشه یې عملیات ورباندې ترسره کول. د دې کلي اوسیدونکي وایي چې امریکایان په لسگونو ځله دې کلي ته راغلي دي. خو هغه کور چې ملا صاحب په کې مخفي ژوند درلود امریکایي او داخلي عسکر یې ۹ ځله انگړ ته ورننوتي چې کله یې پوره تلاشي کړې او کله یې یوازې د کور له خلکو پوښتنې کړې دي. په دې لړ کې دوه ځله د ملا صاحب د اوسیدو اطاق ته هم ورغلي دي. خو ملاصاحب به په خپل ځانگړي مخفیگاه کې و او له عسکرو سره نه دی مخامخ شوی. البته له دې ټولو امنیتي خطراتو سره سره الله تعالی نوموړی ته نجات ورکړ او تر پایه دښمن ونه توانید چې د نوموړي په نیولو یا وژلو وتوانیږي. په داسې حال کې چې امریکایي اشغالگرو د نوموړي په سر میلیونونه امریکایي ډالر انعام ایښی و او د موندلو په مقصد یې همیشه له الوتکو څخه تبلیغاتي پاڼې خپرولې تر څو یې خلک په اړه امریکایانو ته معلومات ورکړي.

## د خاص استازو په واسطه د امارت اداره کول

ملا صاحب له همدې مخفي میشت ځای څخه د اسلامي امارت چارې د ځانگړو استازو په واسطه رهبري کولې، دغه استازي په پیل کې دوه کسان ملا عزیزالله اخند او ملا عبدالباري آخند و، خو وروسته د چارو د توحید او ښه تنظیم په خاطر یوازې ملا

عزیز الله آخند استازی وټاکل شو. د جهاد په لومړیو کلونو کې چې جهادي فعالیتونه کم و نو ملاصاحب ته د استازو تګ راتګ هم لږ و، په څو میاشتو کې به یو ځل ورته راتلل. خو وروسته چې جهادي عملیات پراخ او د اسلامي امارت تشکیلات او فعالیتونه زیات شول نو د استازي راتګ هم ډېر و. خو دا وخت هم د استازو د راتګ کومه ټاکلې نیټه نه وه، کله به په میاشت کې څو وارې تګ راتګ و او کله به تر میاشت زیات وځنډېدل.

ملا صاحب په جهادي چارو کې ډېر واکونه رهبري شورى او خپلو مرستیالانو لکه ملا عبیدالله اخند، ملا برادر آخند او وروسته ملا اختر محمد منصور صاحب ته سپارلي و، نو ځکه ډېرو چارو تر ده پورې ارتباط نه پیدا کاوه، خو بیا هم ملاصاحب د جهاد په ټولو نظامي او ملکي چارو ځان باخبره ساته او د هرې برخې په اړه یې خپل نظر او هدایات له اړونده ادارو او مسؤلینو سره شریکول. ملاصاحب ته به زیاتره هغه مسائل راجع کېدل چې په رهبري شورى کې به توافق ورباندې رانغی، یا به کومه د اختلاف یا په لوړه کچه د شکایت موضوع وه او یا به هم د کورنی یا بهرنی پالیسی په اړه کوم مهم اقدام و.

د ملاصاحب استازی وایي چې نوموړي د استشهادي عملیاتو په اړه د ډېر دقت او احتیاط توصیه کوله، چې دا عملیات باید په ډېرو مهمو ځایونو باندې او په ډېر دقت سره ترسره شي. دغه راز یې د امریکایانو په اړه نظر دا و چې دوی تر ډېره جنګ ته دوام نه شي ورکولای، دوی به ډېر زر له جنګي سیمو څخه ووځي او واک به داخلي عسکرو ته وسپاري. په دې اړه یې توصیه دا وه چې د امریکایانو له شاتګ وروسته په داخلي عسکرو باید په داسې طریقه عملیات ترسره شي چې هغوی په کې مغلوب او د مقابلې روحیه یې ختمه شي. ځکه که په داخلي عسکرو کمزوري چریکي بریدونه کیږي نو بالاخره هغوی زړور کیږي او د مقاومت روحیه پیدا کوي. دغه توصیې چې د استازو په لاس د اسلامي امارت تر مرستیالانو پورې رسیدلې هغوی په ډېر دقت سره یاداشت کولې او نظامي مسؤلینو ته یې رسولې.

دا چې د اسلامي امارت مجاهدین ټول د دیني جذبې او عقیدې په اساس جهاد ته راوتلي وو او د اطاعت روحیه په کې موجوده و، ملاصاحب که څه هم جسما غائب و، خو په امارت یې بیا هم بشپړ کنترول درلود او دغه لوی او وسیع جهادي صف یې د یوې ورې ډلګۍ په شان رهبري کاوه، هیڅکله نه ده لیدل شوي چې د اسلامي امارت کوم فرد یا ډلګۍ به د ملاصاحب له امر څخه سرغړونه کړې وي. د ملاصاحب هره فرموده وروستۍ خبره وه چې ټولو مجاهدینو به په پوره شوق او اخلاص منله او عملي کوله.

## د اشغال پر وړاندې جهادي بهیر ته لنډه کتنه

د امریکایي یرغل په وړاندې د ملا محمد عمر مجاهد تر مشرۍ لاندې د افغان مجاهد ولس جهاد او تر کلونو کلونو د مبارزې تداوم د معاصر تاریخ له خورا نادرو او هیښوونکو وقائعو شمیرل کیږي. دا یرغل چې د ناټو د غړو په شمول د ۴۸ کفري هیوادونو پوځیانو په کې عملا برخه درلوده او د سیمې او نړۍ د ۲۱ نورو هیوادونو استخباراتي همآهنګي هم ورسره وه، په مقابل کې یې د اسلامي امارت هغه تش لاسي مجاهدین وو چې نه خو د نړۍ هیڅ هیواد په رسمیت پیژندل او نه یې هم ورسره مالي،نظامي او سیاسي ملاتړ کاوه.

د اسلامي امارت مجاهدینو په خورا سختو شرائطو کې جهاد ته دوام ورکړ، د جهادي بهیر لومړني کلونه څکه ډېر سخت وو چې له یوې خوا د افغانستان په اکثرو سیمو د امریکایانو او د هغوی د ګوډاګیانو سلطه راغلې وه او د مجاهدینو د تعقیب، نیولو او له منځه وړلو په مقصد یې پراخ استخباراتي جالونه غوړولي وو. بل اړخ ته په ګاونډیو هیوادونو پاکستان او ایران کې هم مجاهدین په امن نه وو. د پاکستان د هغه وخت پوځي دیکتاتور پرویز مشرف چې له امریکایي ولسمشر جورج بوش سره یې په یرغل کې همکاري درلوده او حتی امریکایي پوځیانو او استخباراتي کارکوونکو ته په خپل هیواد کې د فعالیت اجازه ورکړې وه، د اسلامي امارت مجاهدین، ملاتړ کوونکي او هر هغه څوک چې د افغان ولس د جهادي داعیې حمایت یې کاوه یا یې ورسره مرسته کوله، د پاکستاني امنیتي ادارو لخوا نیول کیدل او بیا امریکایانو او یا هم د کابل

ګوډاګي رژیم ته سپارل کیدل. دغه راز په ایران او حتی عربي هیوادونو کې هم د اسلامي امارت ملاتړي تر ځار لاندې او نیول کیدل. خو له دې ټولو ستونزو سره سره مجاهدینو مورال ونه بایله او په لوړ عزم یې جهادي بهیر ژوندی وساته.

د جهاد په لومړیو کلونو کې په پکتیا، زابل، کندهار او د هیواد ځینو نورو سیمو کې له یرغلګرو سره جګړې وشوې چې ورسره د مجاهدینو روحیات لوړ شول. وروسته د چریکي عملیاتو، په دښمن د ریموټ کنټرول چاودنو، میزایل توغولو او هدفي بریدونو لړۍ دوام وموند چې ورسره د مجاهدینو لخوا د شب نامو د خپرولو او د امریکا ملاتړو ته د ګواښونو په شکل رواني عملیات هم روان ول. له دې سره خال خال فدایي عملیات هم پیل شول چې په ښارو دننه یې یرغلګرو پوځیانو ته درانه تلفات اړول.

د ۱۳۸۵ هـ ش کال (۲۰۰۶م) له پیل سره د جهادي عملیاتو نوعیت هم تغیر وموند، مجاهدینو له شپنیزو عملیاتو او وړو حملو ځخه ورځنیو بریدونو او لویو عملیاتو ته مخه کړه، تر دې وخته چې د هیواد په بیلابیلو ساحو او غرنیو سیمو کې د جهادي تدریب مراکز، د ریموټ کنټرول ماینونو او انفجاري موادو په لاس جوړولو کارځایونه او استشهادي معسکرات جوړ شوي وو، ورسره جهادي عملیاتو هم د څرنګوالي او کمیت له اړخه تغیر وموند. مجاهدین په لومړي ځل د هلمند په جنوبي ریګزارو سیمو کې د لویو تعرضي ګروپونو په ډول سره یوځای شول او د ګرمسیر ولسوالی په نیولو سره یې ګوډاګي رژیم ته ټکان ورکړ.

په همدې مرحله کې د کونړ او نورستان له غرونو بیا د فراه او هلمند تر دښتو پورې د افغانستان په ټولو سیمو کې جهادي پاځون د بیداریدو په حال کې و چې وروسته په ټولو ولایاتو کې د اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګیانو په مراکزو، کتارونو او لوړپوړو اشخاصو د مخامخ بریدونو، چاودنو، استشهادي عملیاتو او توغندویي ګوزارونو ناتمامه سلسله پیل شوه.

له نظامي عملیاتو سره په ځنګ د مجاهدینو صوتي، چاپي او ویډیویي نشرات هم د جهاد له لومړیو کلونو پیل شوي وو. چې وروسته د انټرنیټي فعالیت په پیل سره د

امریکا په خلاف د جهاد چوپ شوی غږ په بیلابیلو ژبو د نړۍ تر گوټ گوټ پورې ورسید.

په دې کلونو کې د جهادي عملیاتو فوق العاده ډیرښت د کابل د رژیم پایې ولړزولې او اشغالگر په دې وویریدل چې د جګړې په ډګر کې یې آبرو رژیدونکې ده نو ځکه یې د جهادي بریدونو د مخنیوي لپاره د خپلو پوځیانو شمیر له شل زره څخه ۳۱ زره ته پورته کړ خو کله چې دغه شمیر پوځیان هم د جګړې په کابو کولو ونه توانیدل نو پینټاګون د خپلو پوځیانو شمیر دوچند کړ تر دې چې د ۲۰۰۹ م (۱۳۸۸ لمریز) کال تر پایه د امریکایي عسکرو شمیر ۶۷ زرو ته ورسید.(۱)

د جګړې په ډګر کې د امریکایي پوځیانو ډیرښت که له یوې خوا د امریکا لپاره د جګړې مصارف څو برابره زیاتول، بل اړخ ته د امریکایي پوځ ځاني تلفات هم بې

---

(۱) امریکایي اشغالگرو لکه څنګه چې د پوځیانو ډیرښت او د جنګي فشار زیاتول د فشار د حربې په شان کارول، بل اړخ ته یې د اسلامي امارت د مشرانو له منځه وړل او یا نیول هم د یو مهمې ستراتیژۍ په حیث تر کار لاندې ونیول. د بوش د واکمنۍ په وروستیو او د اوباما د واکمنۍ په لومړیو کلونو کې که له یوې خوا د اسلامي امارت ډیر نظامي مشران په جهادي سیمو کې په هدفمندو بریدونو او چاپو کې شهیدان شول. بل اړخ ته ګڼ شمیر د سر کسان د پاکستاني چارواکو لخوا هم ونیول شول. د بیلګې په توګه د ۲۰۰۷ میلادي کال دجنورۍ د میاشتې په دریمه نیټه (۱۷ / ۱۰ / ۱۳۸۵ هـ ش) د ملا محمد عمر مجاهد مرستیال الحاج ملا عبیدالله اخند دپاکستاني چارواکو لخوا ونیول شو او د شهادت تر نیټې په زندان کې وساتل شو. همدا راز د ۲۰۱۰ م کال د فبرورۍ په میاشت کې (دلو ۱۳۸۸ هـ ش) کې د اسلامي امارت بل مرستیال ملا عبدالغني برادر په داسې حال کې ونیول شو، چې په هلمند کې امریکایي پوځیانو په مارجه ولسوالۍ د مشترک په نوم ستر عملیات پیل کړي وو. له دې پراخو عملیاتو سره هم مهاله د اسلامي امارت د مرستیال نیول د هغو څو اړخیزو فشارونو بیلګه وه چې په مجاهدینو له بیلابیلو اړخونو واردیدل. خو د حق د لارې قهرمانو مجاهدینو له دغو ټولو فشارونو سره سره همت ونه بایلود او په خواکمن ایمان او لوړ عزم یې د امتحاني شرائطو مقابله وکړه.

اندازې زیات شول او مجاهدینو ته هره ورځ په امریکایي اشغالګرو د برید کولو سهل الحصول اهداف په لاس ورتلل. په ۲۰۰۹م کال کې د امریکا نوي ولسمشر بارک اوباما په داسې حال کې واکمني پیل کړه چې د افغانستان ناکامه جګړه د سپیني ماڼۍ په وړاندې تر ټولو لویه معضله ګڼل کیده. اوباما د جورج بوش په شان د ځواک کارولو تجربه تکرار کړه او د نوې ستراتیژۍ په اعلان سره یې په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو شمیر نور هم زیات کړ، تر دې چې په ۲۰۱۰م کال کې په افغانستان کې دامریکایي عسکرو شمیر سل زره ته ورسید په داسې حال کې چې تر څنګ یې د ۴۸ نورو اشغالګرو غربي هیوادونو مجموعا ۲۹۴۶۹ پوځیان هم وو. خو همدا کال د امریکایي اشغالګرو لپاره تر ټولو له مرګ ژوبلو ډک کال ثابت شو او په زرګونو امریکایي او نور اشغالګر پوځیان د مجاهدینو په رسا بریدونو کې مړه او ژوبل شول.

بارک اوباما د افغانستان د جګړې د ګټلو لپاره لومړی د ستینلي مک کرسټل په نوم یو مشهور جنرال استخدام کړ، خو نوموړی له لنډې مودې دندې اجراء کولو وروسته بې اغیزې ثابت شو، چې وروسته یې دسپیني ماڼۍ او پینټاګون چارواکو ته په رسنیو کې بدرد ویل شروع کړل تر دې چې له دندې معزول کړای شو، د نوموړي په ځای په عراق کې د امریکایي ځواکونو مشر جنرال ډیویډ پیټرایس وټاکل شو، پیټرایس په افغانستان کې د اربکیانو په نوم د ملیشه سازۍ پروسه پیل کړه، چې د هیواد په ډیرو سیمو کې یې د سلګونو میلیونو ډالرو په لګولو پخواني ټوپکیان او نا اهله کسان د محلي پولیسو یا اربکیانو په نوم استخدام کړل. امریکایانو هیله درلوده چې په دې طریقه به هغه ځینې سیمې په خپل کنترول کې وساتي چې له مجاهدینو یې په درنو تلفاتو نیولي، خو اربکیان چې ظالم او جنایت کاره خلک وو له ولسي-نفرت او کرکې سره مخامخ شول نو ځکه څه موده وروسته دغه پروسه هم په ناکامۍ انجام شوه او اطرافي سیمې بیرته د مجاهدینو لخوا ونیول شوې.

هغه وخت چې ملا صاحب له دنیایي ژوند سره مخه ښه لا نه وه کړې، په افغانستان راغلي غربي اشغالګر په تر ټولو بد او د تیښتې په حالت کې وو.د ۲۰۱۱م کال په وروستیو کې امریکایي ولسمشراوباما اعلان وکړ چې زیات شمیرامریکایي عسکر به له

افغانستانه وباسي. له دې وروسته له امریکا سره په یرغل ګډونوالو ډیری هیوادونو له پوځي قرارګاوو خپل بیرغونه کوز کړل او د خپلو زیات شمیر پوځیانو په ایستلو سره یې د تیښتې لار ونیوه. تر دې چې په وروستیو کې یوازې امریکا، جرمني او د ګوتو په شمیر څو نور هیوادونو د جګړې په میدان پاته شول. خو بالمقابل مجاهدین دا وخت د هر کله په پرتله د قوت او پرمختیا په حال کې وو. جهاد د افغانستان ټولو ۳۴ ولایاتو او د هیواد ټولو پرګنو ته رسیدلی او خپور شوی و. اسلامي امارت له نوي وضعیت سره په بشپړه توګه ځان عیار کړی او د مشرتابه شورا، کمیسیونو، ولایتي ادارو او نورو بیلابیلو کاري اورګانونو په تنظیم سره امارت یو ځل بیا په یو بشپړ نظام بدل شوی و. کله چې امریکایانو په افغانستان یرغل کاوه، نو طالبان یې ترهګر بلل او له هغوی سره هیڅ نوع خبرو او تفاهم ته یې آمادګي نه درلوده. مګر د ملاصاحب د ژوند په وروستي وخت کې نه یوازې اسلامي امارت یو ځل بیا په نړۍ کې سیاسي وجاهت موندلی و بلکې امریکایانو هم د سولې او مذاکراتو نتواتې پیل کړې وې. نو په دې سره ویلای شو چې امریکایان که څه هم د ملا صاحب په ژوند له افغانستانه ونه وتل خو ملا صاحب یې د شکست او ذلت نندارو وکړه، ځکه د هغه په ژوند لا امریکایان دې ته آماده شوي وو چې د تیښتې لار ونیسي نو ځکه یې د خبرو او سیاسي تفاهم زاری پیل کړې وې.

## په نوې جهادي مرحله کې د اسلامي امارت اداري جوړښت

د ملا محمد عمر مجاهد د فرمانونو او هدایاتو له مخې د وړاندې وویل شول چې د جهاد له پیله د اسلامي امارت د نوي تشکیل کار پیل شوی و او پرلپسې د انکشاف په حالت کې و. د امریکا ضد جهادي مرحله کې که د اسلامي امارت اداري جوړښت ته نظر وکړو نو اوسنی حالت یې په لاندې نقشه کې خلاصه کولای شو.




### د سیاسي چارو رهبري او د قطر دفتر

د ملاصاحب په امر د سیاسي چارو کمیسیون د امریکا ضد جهاد له لومړیو کلونو رامینځ ته شوی و، چې وخت په وخت یې مشران تعینیدل او بدلیدل، په وروستو کې ملاصاحب خپل د دفتر پخوانی کارکوونکی سید طیب اغا د سیاسي چارو د کمیسیون د مشر په حیث وټاکه چې د ملاصاحب د وفات د اعلان تر وخته یې دغه کمیسیون رهبري کړ.

د سیاسي چارو کمیسیون چې د اسلامي امارت د بهرنی تګلارې ممثل و ملاصاحب په لاندې برخو کې اختیارات ورکړي او وظائف ورته مشخص کړي وو:

۱ـ له امریکا او نورو خارجي هیوادونو، سیاسي ډلو او اشخاصو سره لیدني کتنې او مثبت روابط پالل.

۲ــ د خارجيانو، خصوصا امريکا په لاس کې د افغان بنديانو د خلاصون په اړه مذاکرات او د تبادلې يا کومې طريقې له لارې د بنديانو د خلاصون هڅه.

۳ــ د ملگرو ملتونو له سازمان او د هغه له اړوندو ادارو سره اړيکې او تفاهم.

۴ــ د افغانستان له نادولتي مخورو سياسي څېرو او سياسي ډلو ليدنې کتنې.

۵ــ له خارجي مؤسساتو سره ليدل او خبرې اترې.

۶ــ د افغانستان په هکله په نړيوالو کانفرانسونو کې اشتراک او د افغانستان د اسلامي امارت داعيه او موقف د نړيوالو غوږونو ته رسول.

د سياسي چارو کميسيون ته ملاصاحب د خارجي پاليسی په تمثيل او گټورو ارتباطاتو په راڅرګندي کولو کې پراخ اختيارات ورکړي وو. د ملاصاحب د استازي په وينا دغه کميسيون يوازينی کميسيون و چې چارې يې ملا صاحب خپله او د مستقيمو هداياتو په توسط سمبالولې. حتی ملا صاحب رهبري شوری ته هدايت کړی و چې د سياسي چارو کميسيون ته چې کوم هدايت کوي لومړی يې بايد له ده سره شريک کړي او د ده هدايت په کې واخلي. د استازي په وينا ملاصاحب د سياسي چارو د کميسيون په مشر سيد طيب اغا باندې ډير اعتماد درلود او له چارو يې راضي و. نو ځکه يې ورسره د استازي په واسطه مستقيمه رابطه ساتله او مخامخ يې د سياسي پرمختياوو راپور او تازه حال ترې غوښت. خو ملاصاحب هميشه په سياسي مسائلو کې د شوری په نظرياتو هم عمل کاوه او په خپلو هداياتو کې يې ځای ورکاوه.

د سياسي چارو د کميسيون په توسط د ملاصاحب د سياسي اقداماتو يو مهم گام له امريکايانو سره د مذاکراتو د پيل او په يوه بهرني هيواد کې د سياسي دفتر د خلاصون موضوع وه. د دې مرحلې د پيل په اړه سيد طيب اغا وايي چې ملا صاحب په ۲۰۰۹ م کال کې اجازه وکړه چې له امريکايانو او نورو يرغلگرو جهتونو سره دې مخامخ خبرې پيل شي. نوموړی وايي: د لومړی ځل لپاره په ۲۰۰۹م کال کی د جرمنيانو سره د سياسي دفتر ملاقاتونه شروع سول او د هغوی غوښتنه دا وه چی بايد د کابل ادارې سره خبرې وسي او په دې اړه د هغوی سره يو څو ملاقاتونه تر سره سول، بالاخره موږ

هغوی تـه د کابـل اداريې پـه ځـای د امریکـا سره پـه خـبرو موافقـه وکـړه او دا موافقه د ملامحمد عمر مجاهد د منظوری په اساس وسـوه او د قطـر اسـلامي هيـواد وتاکل سو چي بالآخره د امریکا سره اولنی ملاقات په ۲۰۱۰ کی تـر سره سـو. پـه هغـه وخـت کي مونږ د خبرو پروسه په ۲ برخـو ویشـلې وه اول د اعـتماد سـازی مرحلـه وه څکـه چـي د اعتماد عدم وجود د ډیر لیري والي عامل و.

د اعتماد سازي په مرحله کې درې شیان شامل و

۱- د ګوانتانامو د بندیانو تبادله چی بیا وروسته ترسره سوه.

۲- تور لست، چې موږ د تورلست د یو ځايي ختمولو غوښتونکي وو او مقابل طرف په تدریجي ډول دا کار تر سره کول غوښتل خو دا کار هم که چیری خبرو دوام پیدا کړی وای حل ته رسیدونکی و.

۳- د سیاسی دفتر خلاصول.

او دوهمه د مذاکراتو مرحله وه چی په هغه کې د خارجي عسکرو د وتلو په شمول به په یو شمیر نورو موضوعاتو مذاکرات کیږي.

د ملا صاحب استازی ملا عزیزالله اخند وایي چې د سیاسي دفتر د پرانیستې او د هغه د ځای د انتخاب لپاره ملا صاحب لاندې شـرائط ایښي وو.

الف: سیاسي دفتر دې په یوه اسلامي هیواد کې پرانیستل شي داسې اسلامي هیـواد چې زموږ ګاونډی نه وي.

با: داسې هیواد چې په افغانستان کې عسکر ونه لري.

جیم: داسې هیواد چې پخوا یې له اسلامي امارت سره دښمنانه چلند نه وي کړی.

دهمدې شـرائطو په تناظر کې په قطر هیواد کې د اسلامي امارت سیاسي دفتر پرانیستل شو، په قطر کې د طالبانو بروز څکه ډېر د اهمیـت وړ و چـې پـه افغانسـتان د امریکـايي یرغل نه وروسته له یوې لسیزې زیاته موده اسلامي امارت د سیاسي اړیکو په برخـه کې کـاملا مخفیانـه فعالیـت درلـود، خـو پـه قطـر کـې د دفـتر لـه پرانیسـتې وروسته طالبـان

وتوانیدل چې یو ځل بیا د سیال سیاسي جهت په حیث خپل شتون ثابت کړي. په دې ډول په نړیوالو کانفرانسونو کې د سیاسي دفتر د غړو ګډون، هلته د اسلامي امارت د داعیې او موقف تشریحول او له بیلابیلو حکومتونو او ډلو سره د مثبت تفاهم په اراده لیدنې کتنې پیل شوې.

د قطر د دفتر فعال کردار د اسلامي امارت په اړه هغه تصویر د نړۍ د ډیرو هیوادونو او ملتونو له اذهانو پاک کړ چې امریکایي تبلیغاتو رامنځته کړی و، هغه دا چې اسلامي امارت یې یوه باغي او په اصطلاح ترهګره ډله بلله. د طالبانو سیاسي بروز نړۍ ته ثابته کړه چې اسلامي امارت د افغان مسلمان ملت د خپلواکۍ غوښتنې د داعیې ممثل دی او یوه پرځای او موجهه تګلاره او پالیسي-لري. د سیاسي دفتر بله ستره کارنامه د ګوانتانامو له زندان څخه د اسلامي امارت د پنځو تنو مشرانو مجاهدینو لکه حاجي ملا محمد فاضل مظلوم، ملا نور الله نوري، ملا خیر الله خیرخواه، ملا عبدالحق وثیق او مولوي محمد نبي عمري، راخلاصون و چې د یوه امریکایي عسکر برګډال په وړاندې تبادله کې راخوشي کړای شول.

**د مخفي ژوند په مرحله کې د ملا صاحب ورځنۍ مصروفیت**

ملا عبدالجبار عمري چې د ملاصاحب د وروستي شاوخوا ۱۳ کلن مخفي ژوند په مرحله کې ډیره موده له ملاصاحب سره یو ځای پاته شوی او د هغه خدمت یې کړی وایي: ملاصاحب به چې سهار لمونځ اداء کړ، نو د خپل پخواني معمول سره سم یې سهار د خفیه اذکارو وظیفه کوله، وروسته به یې سهارنۍ ناشته وکړه، په سهارنۍ ناشته بې له خواږه شین چای سره ډوډۍ خوړله، خو د ملاصاحب خوراک بیخي کم و. چای یې په ورځ کې یوازې سهار او ماسپښین خوړ.

له سهار تر غرمې او د ورځې په نورو برخو کې مصروفیت یې زیاتره وخت تلاوت، مطالعه، ذکر او فکر و. د مطالعې لپاره د تفسیر جلالین، معارف القرآن او تفسیر کابلي په شمول بیلابیل تفاسیر، د بخاري شریف اومشکوة المصابیح په شمول د احادیثو کتابونه او د هدایې په شمول د فقهي ځینې کتابونه ورسره وو، له دې علاوه یې نور هم

بیلابیل کتابونه لکه حیات الصحابه او داسې نور کتل. خو ډیره مشغولا یې د قران کریم تلاوت او د قران کریم د تفاسیرو مطالعه وه. د ورځې په جریان کې یې راډیو هم اوریده او د نړۍ او افغانستان له حالاتو یې همیشه ځان باخبره ساته.

عمري صاحب وایي: په دې اوږده موده کې ماته معلومه شوه چې د ملاصاحب یو امتیازي عادت دا و چې خوراک، خبرې او خوب یې خورا کم و. هیڅکله یې د امتیازي خوراک غوښتنه او هیله نه کوله، څه چې عموما د افغانستان په غریبانه کورونو کې خوړل کیږي هماغه یې خوراک و. خوراک یې دومره لږ و چې زما نه یادیږي چې تر نیمي ډوډۍ زیات خوراک یې کړی و. خبرې یې هم ډیرې نه کولې، حتی د ضروري مجلس په مهال به یې خبرې خورا لنډې وې او یوازې مهمه او د کار خبره یې کوله. د مجلس په مهال به یې ډیر وخت غوږ نیو، اول به یې په خبره ښه ځان پوه کاوه او بیا به یې خپل نظر وایه.

د ملاصاحب خوب داسې و چې سړي یې د ویښې له حالت څخه ډېر فرق نه شوای کولای. چې د هر رنګه خوب په حالت کې به غږ پرې وشو، داسې ځواب به یې وایه لکه ویښ چې وي، خوب یې له لویه سره کم و.

ملاصاحب چې له کندهاره راتلو نو له ځان سره یې یوازې دوه جوړه جامې را اخیستي وې، چې یوه یې اغوستې او بله اضافي ورسره وه، یو اندازه شخصي پیسې هم ورسره وې چې صدقة الفطر او ځیني شخصي مصارف یې له هماغو شخصي پیسو څخه کول. له کندهاره چې راته نو ملګرو یې د ده په ناخبرې کې په بکس کې یوه اندازه پیسې ورته اینښې وې چې د مخفي ژوند په موده کې د ده او د څو تنه ملګرو عمده مصارف له همدې پیسو کیدل.

ملاصاحب د مخفي ژوند په مرحله کې هم د پخوا په شان اوږده کالي اغوستل او د پاچ لویه لنګوټه یې تړله، کالي به اکثرا د کورنۍ لخوا ورته رالیږل کیدل.

## د کورنۍ سرپرستي يې

وړاندې يادونه وشوه چې د امريکايي يرغل په لومړۍ شپه ملا صاحب له خپلې کورنۍ څخه بېل شو او بيا يې د وفات تر نېټې له خپل اهل و عيال سره ونه ليدل. په دې مرحله کې د ملا صاحب د کورنۍ سرپرستي د ملا عبدالمنان عمري لخوا کېدله. ملا عبدالمنان آخند د ملا صاحب د مورنيو ورونو له جملې يوازينی پاته ژوندی ورور دی. چې دوه نور ورونه يې تر دې پخوا د اسلامي امارت د حاکميت په مهال شهيدان شوي وو.

ملا عبدالمنان آخند آن د اسلامي تحريک د پيل له وخته د ملا صاحب د کور چارې سرته رسولې، د تحريک له پيل سره د ملا صاحب وظيفوي ضرورتونه ډېر شول. په لومړيو کلونو کې به په اونۍ کې يوازې يو ځل کور ته راتلو. دا چې ټول وخت به په امارتي کارونو مصروف و نو ځکه يې د کور چارې او ضرورتونه سرته رسول ملا عبدالمنان آخند ته سپارلي وو. د امريکا له يرغل وروسته چې ملاصاحب له خپلې کورنۍ څخه بېل شو د ملا عبدالمنان عمري مسؤليت نور هم زيات شو. خو نوموړي په دې مرحله کې له ټولو خطراتو او ستونزو سره سره په پوره همت او اخلاص د امير المؤمنين د کورنۍ کفالت وکړ. د ملا صاحب زامنو ديني زده کړې وکړې او له دې سختې مرحلې په کاميابۍ راووتل.

ملا عبدالمنان آخند وايي په دې مرحله کې ملا صاحب يوازې يو ځل هغه هم له کندهاره د وتلو نه شاوخوا دوه مياشتې وروسته په سټلايټ ټيلفون له ما او مشر زوی مولوي محمد يعقوب صاحب سره خبرې وکړې او د کورنۍ حال يې وپوښت. له هغه وروسته يې بيا له خپلې کورنۍ سره ټيلفوني رابطه نه ده شوې او نه يې هم ورسره مخامخ ليدلي دي. البته د قاصدانو په واسطه يې هميشه خپل هدايات له کورنۍ سره شريکول او له حال يې ځان خبر ساته.

د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد مشر زوی مولوي محمد يعقوب صاحب وايي چې ملا صاحب وخت په وخت زموږ د کورنيو مسائلو په اړه موږ ته هدايات را استول

او موږ به د کورنیو مسائلو اړوند مهمې او غټې پیښې څه بلکې په کوچنیو او عادي کارونو کې له ده څخه مشوره غوښته او هدایات به مو ځینې اخیستل.

په زابل کې د اوسیدو په وخت د ملا صاحب وروستی میشت ځای تر پخوانیو ځایونو پـراخ و او د دې وړ و چې لـه ملاصـاحب سره یـې کـورنۍ او اولادونـه واوسي. ملا عبدالجبار عمري صاحب وايي چې ملاصاحب ته مو څو ځله پیشنهاد وکړ چې اهل و عیال به یې دلته راولو. خو د ده ځواب دا و چې اول خو امنیتي شـرائط نه دي مساعد او بل په دې وخت کې الله تعالی ماته گوښه نشیني او یوازیوالی محبوب کړی دی. په دې تنهایي کې مې چې د عبادت کوم خوند او روحاني کیفیات لیدلي دي لـه لاسه یې نه شم ورکولای.

### ځینې عجیب خصوصیات

عمري صاحب وايي د ملاصاحب د ژوند په دې وروستۍ دیارلس کلنه مرحله کې یې د نوموړي ځیني داسې خصوصیات لیـدلي دي چې کـه یـې بیـان کـړي کیـدای شي د ډیرو خلکو زړه ته به ونه لویږي. له دې جملې د ملاصاحب یوعجیـب حالـت د هغه د تفکر او مراقبې حالت و، ملاصاحب به د ورځې او شپې ډیر وخت د مراقبې په حالت ناست و او په ذکر او فکر به مشغول و.

ملا صاحب عادتا چاته غوسه نه کوله، خو یوه ورځ چې د ماښام آذانونه شـوي وو، زه د ملاصاحب اطاق ته ورغلم، ملا صاحب د مراقبې پـه حالـت کـې و، مـا فکـر وکـړ چې ویده دی نو مې غږ ورباندې وکړ، چې د لمانځـه وخـت دی. خـو ملاصـاحب چې سر راپورته کړ، سخته غوسه یې راته وکړه. وروسته یې بیا راته وویل چې خـدای دي وکـړي زما په غوسه به خپه شوی نه یې. زه ویده نه یم. خو دغـه د ذکـر او فکـر پـه وخـت کـې کله ناکله په ما باندې یو حالت راځي چې په هغه کې دومره لذت وي چې هغه لذت ما په هیڅ دنیوي نعمت کې نه دی لیدلی. هغـه وخـت زه پـه هغـه حالـت کـې وم چې تا راباندې غږ وکړ نو ځکه غوسه راغله.

عمري صاحب وايي چې نړيوال مطبوعات او د اسلامي امارت اکثره مخالفين دا تبليغ کوي چې ملاصاحب يو توند فکره او افراطي شخص و، اما له هغه سره په دې اوږده ملګرتيا او نږدې اوسيدلو کې ماته معلومه شوه چې ملاصاحب د معتدل مزاج خاوند و، د هغه هر څه په اعتدال و، له عام ژوند او چلند را ونيسه بيا تر عباداتو پورې. د ملاصاحب هغه صفات چې زه ترې متأثر شوم د ده صبر و.

په ديارلس کاله تنهايي کله هم ما په ده کې بې صبري نه ده ليدلې او نه يې هم شکايت کاوه، د خپلو اولادونو او موركې يادونه يې کله کوله، خو د خپل يوازيتوب په اړه يې تأسف نه کاوه، حتی په مرض يې دومره صبر درلود چې اکثره وخت به مريض و خو د ده له حالته به داسې نه معلوميده چې مريض دی او نه به يې شکايت کاوه، مرضونه يې زغمل او سخت ترين صبر يې کاوه.

لکه وړاندې چې وويل شول د ډيرو خبرو عادت يې نه درلود. که به يې ناجائزه خبره واورېده او يا به هم د کوم چا له ظلم او ناجائز کار څخه خبر شو. نو د نامناسبو خبرو او غيبت په ځای به يې نصيحت کاوه، د نصيحت په وخت به يې اکثرا غږ په زوره کيده او له( خدايه وويريږئ ) جمله به يې ډيره تکراروله. ملاصاحب د آسايش او راحت مزاج نه درلود، ساده زندګي خوند ورکاوه او له چا يې د خدمت او يا کوم خاص امتياز توقع نه کوله. رحم يې ډېر زيات درلود او اکثره وخت به يې مجاهدينو ته توصيه دا وه چې په جهادي عملياتو کې ډېر زيات احتياط وکړي تر څو بې ګناه خلګو ته زيان ونه رسيږي. د ملکي خلکو د مرګ ژوبلو څخه په خبريدو به ډېر خپه کيده.

د نادرو خاطرو له جملې يې يوه دا ده، چې يو وخت په هغه سيمه کې چې ملاصاحب اوسيده واوره وشوه. واورې ځينې مارغان لاندې کړي و او يخزني شوي وو چې الوت يې نه شوای کولای او ماشومانو ژوندي نيول. د همدې کور يوه ماشوم هم يو يخ وهلی مارغه ژوندی نيولی و او ملاصاحب ته يې وروووړ، ملاصاحب ماشوم د مارغه په ورکړه رضا کړ، بيا يې يخ وهلی مارغه بخارۍ ته تود کړ، کله يې چې وزرونه خلاص شول، په خپله يې له کوټې راويوست او پرې يې ښود چې والوځي.

## په دې مرحله کې د ملاصاحب صحي حالت

عمري صاحب وايي دمخفي ژوند په وروستيوکي د ملا صاحب بدن پـه تـدريج سره په کمـزوري کيـدو و او وزن يـې کمېـده. د وزن بايلـل، بـدن کمـزوري کيـدل، د رنګ سپينيدل او د سينې له درده شکايت يې د دې علائم و چې د نري رنځ (سيل) ناروغي يې درلوده خو موږ نه ورسره پوهيدو چې پر خپل وخت مو د علاج هڅه کړې وای. له دې علاوه يې عموما صحت ښه و، کله ناکله به موسمي امراض لکـه زکـام وغيره ورته پيښيدل خو د دوا له خوړلو پرته به ښه شو. عادت يې دا جوړ و چې د مرض پـه وخت يې صبر او مقاومت کاوه. لـه مرضـه شـکايت يـې بيخـي نـه کـاوه، کـه بـه يـې ملګري وربانديې پوه شول او د دوا به يې ورته وويل نو هم به يې ويل چـې دا عـادي مرض دی په خپله ښه کيږي.کله به يې غاښونو هم درد کاوه، که څه هـم کلـه ورتـه بـدني امراض پيښيدل خو په روحي لحاظ يو مخ ښه وه، ستونزې او يوازيتوب يې په لـوړ عـزم تحمل کاوه او کومه داسې نښه په کې نه معلوميده چې د ده په رواني ناروغۍ دلالت وکړي.

## وروستی مرض او وفات

د ملا صاحب کوربه حکايت کوي چې له وفات نه درې شپې وړانـدې مـې يـوه شپه د ماخستن ډوډۍ وروړه او بيرته ترې لاړم. کله چې څـه شـيبه وروسـته بيـا ورغلـم، ګورم چې ديوال ته يې اړخ لګولی دی. ما وربانديې غږ وکړ، خو ملاصـاحب غږ ونکړ. چې ومې کوت، نو پوه شوم چې بې هوښې وربانديې راغلې ده. بيا مې په اړخ څملاوه.

د دې لپاره چې د دې موضوع په اړه مو سمه حل لاره موندلې وي، په همـدې شپه مې په کلي کې يو همراز ګاونډی خبر کړ او د مـلا صـاحب د مـرض د سـختيدو مـې ورته وويل. له هغه سره مو مشوره په دې شوه چې لـه دې ځـانګړي ميشـت ځـای څخه بې نږدې بل کور ته انتقال کړو. همدا د ۱۳۹۲ هجري شمسي- کـال د ثـور دريمـه شپه وه، چې فضا سخته باراني وه او ټوله شپه د افغانستان په جنوبي ولايـاتو سخت باران او ږلۍ اوريدله. په همدې شپه د کندهار په هوايي ډګر د ډيرې غټـې ږلـۍ د اوريـدو لـه امله د ناټو او امريکايي ځواکونو شاوخوا ۵۰ هليکوفتر پـه سـطحي ډول زيـانمن او لـه پرواز

ولويدل چې خبر يې په رسنيو کې هم راغی. ملا صاحب د ده د دريو تنو ملګرو لخوا په همدې شپه له خپل ميشت ځای څخه يوه بل کور ته انتقال شو.

په سبا چې د ثور د مياشتې دريمه ورځ وه، ملا صاحب سهار مهال يو څه ښه شو، چای يې هم نوش کړ او څه خبرې يې هم وکړې، خو وروسته بيا وربانديې بې هوشي راغله. کورنۍ او راټولو شويو ملګرو فيصله وکړه چې د اسلامي امارت نور مشران خبر کړي، په همدې ورځ دمشرانو د خبرولو لپاره استازی وليږل شو. ملا صاحب په همدې ورځ او را روانه شپه کې کله پر هوښ او کله هم بې هوښي وربانديې راتله، ورسره يې د سينې درد او شکايت هم زيات شوی و.

په سبا ورځ د سيمې يو ډاکټر ورته راوستل شو، هغه چې معاينه کړ، نو ويې ويل چې حالت يې وخيم دی او که شفاخانې ته انتقال نه شي نو ژوند يې له خطر سره مخ کيدلی شي. فيصله په دې وشوه چې مازديګر به يې د يوه عام افغان ناروغ په حيث په مخفي ډول د کلات او يا کومې بلې شفاخانې ته وړو او بستر کوو. خو ماسپښين ناوخته ملا صاحب خپل روح ملک الموت ته وسپاره او د فاني ژوند له دياره يې کډه وکړه. انا لله و انا اليه راجعون

په مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد باندې په را روانه شپه د شپې ۳ بجې شاوخوا د خپلو ورسره ملګرو او کورنۍ لخوا د جنازې لمونځ اداء شو او بيا يې په مخفي توګه جسد خاورو ته وسپارل شو.

### د امارت مسؤلين او کورنۍ يې څنګه خبره شوه؟

د ملا صاحب استازی ملا عزيز الله اخند وايي چې د ملا صاحب له وفات څلور ورځې وړاندې زه ورغلی وم او ملاقات مې ورسره وکړ. له ملا صاحب سره مې د شپې تر يوې بجې مجلس وکړ، خو له خيرې او حالت څخه يې داسې معلوميده چې ناروغ دی. کله چې رسمي کارونه خلاص شول، ما د صحت پوښتنه ترې وکړه. ده وويل يو څه مريض يم. ما ورته وويل تبه دې وي او که بل تکليف دی؟ ويل يې ټول بدن مې درد لري.

پخوا به ملا صاحب دوا نه غوښتله خو دا وار چې ما ورته وویل دوا بــه درتـه راوړم راسره ویې منله. په سبا سهار زه ترې راغلم.

یوه شپه وروسته د ملا صاحب تکلیف زیـات شـوی و. کوربنـو یـو څـه دوا ورکـړې وه خو ګټه یې ورته نه وه کړې، نـو یـې یـو ملګـری ماتـه راولیـږه او حـال یـې راوړ چې د ملاصاحب تکلیف زیات شوی دی، حتی خبرې نه شي کولای. موږ دلته لـه یـو ډاکټـر سره ولیدل د ملا صاحب د ناروغۍ علامې مـو ورتـه بیـان کـړې، ډاکټـر وویـل چې دا علامې د تي بي (سیل) ناروغۍ دي. بیـا هغـه ډاکټـر ضروري دواګـانې راکـړې، دا مې هغه ملګري ته ورکړل چې دا عاجل ورسوه او که ممکنه وه ډاکټر ته یې ورسوئ تر څو یې مرض مشخص شي او علاج یې وشي.

په همدې ورځ ما د مـلا عبدالسـلام آخنـد سره خـبره شـریکه کـړه او د مـلا صـاحب د ناروغۍ حال مې ورته ووایه. بیا موږ په ګډه د اسلامي امارت د هغـه وخـت لـه مرستیال ملا اختر محمد منصور صاحب سره ولیدل او ټول حال مو ورسره شـریک کـړ. پـه ګـډه مو موافقه وکړه چې د ملا صاحب د کورنۍ غړي په خاص ډول تره یـې مولـوي محمـد جمعه صاحب او ورور یې ملا عبدالمنان عمري به هم له موضوع خبر کـړو تـر څـو پـه ګډه یې د تداوۍ یو مناسب تصمیم ونیسو.

د ملا صاحب ورور ملا عبدالمنان عمري وایي په همدې شپه چې استازي ملا عزیز الله آخند له منصور صاحب سره لیدلي وو، ماته یې هم حال راکړ بیا ما او زموږ اکـا مولـوي محمدجمعه صاحب د ملا عبـدالغفار[1] آخنـد پـه کـور کـې سره ولیـدل. هغـوی د ملا صاحب د ناروغۍ خبره وکړه. مشوره په دې وشوه چې ضروري دواګانې او طبي سـامان الات به سبا راسره واخلو او سیمې ته به ورشو تر څو یې د عـلاج یـا انتقـال کـوم ترتیب برابر کړو. سبا سهار استازی وختي روان شو او موږ یو څـل بیـا لـه منصـور صـاحب سره

(۱) مـلا عبـدالغفار آخنـد د مـلا صـاحب د تـره (اکـا) زوی دی چې مولـوي محمـد جمعـه صـاحب هم د ده په کور کې اوسیده.

ولیدل او بیا موږ هم پسې روان شوو. استازي ملا عزیز الله آخند ته د ملا صاحب پخوانی کوربه حاجي عبدالاحد په مخه ورغلی و چې زموږ په خوا را روان و. حاجي عبدالاحد ورته ویلي و چې ملا صاحب وفات شو. نو ځکه دوی دواړه له نیمې لارې راګرځیدلي وو.

په همدې ورځ موږ ( ملا عبدالمنان آخند، ملا عبدالسلام آخند او مولوي عبدالرحمن صاحب) هم چې د ملاصاحب د اوسیدو سیمې ته پر لاره وو، په نیمه لار کې مو له استازي ملا عزیز الله اخند او حاجي عبدالاحد سره پیدا کړل. هغوی د ملا صاحب د وفات خبر راکړ چې زموږ لپاره خورا دروند غم و. ځکه له نورو ارمانونو سربیره زموږ د کورنۍ دا ځانګړی ارمان پوره نه شو چې ټولو تمنا درلوده تر څو که یوه ورځ ټول یو وار بیا په یو ټغر سره را ټول او سره ووینو. همدلته مو مشوره وکړه چې د ملا صاحب مشر زوی مولوي محمد یعقوب صاحب هم راوغواړو .

مولوي محمد یعقوب صاحب وایي د جمعې شپه وه چې ناوخته ملا عبدالمنان آخند په ټیلفون حال راکړ چې موږ درته انتظار یو سبا وختي ځان راورسوه. سهار وختي له لمانځه وروسته روان شوم او له درې ساعته مزل وروسته ور ورسیدم. هلته دوی په موټر کې راغلل چې ملا عبدالمنان آخند، ملا عبدالسلام آخند، ملا عزیز الله آخند، مولوي عبدالرحمن صاحب او حاجي عبدالاحد صاحب وو، زه هم په موټر کې ورسره سپور شم. په همدې حال کې ملا عبدالسلام کاتب صاحب را ته وویل چې ملا صاحب یو څه ناروغ شوی و نو ځکه مو ته هم راوغوښتې چې د علاج یوه طریقه یې برابره کړو. خو وروسته یې په خبرو کې وویل چې الله تعالی دې رحم ورباندې وکړي او وفات کیدلو ته یې اشاره وکړه. د دې خبرې په اوریدو زه پوه شوم چې وفات شوی دی. نو ډېر زیات غمجن شوم. خو دوی مسلسل تسلي راکوله چې د الله تعالی فیصله وه او ته صبر کوه. له لږ مزله وروسته په یوه دښتي سیمه کې له موټر ښکته شوو او همدلته مو مشورتي مجلس وکړ.

فیصله مو وکړه چې زه او ملا عبدالمنان آخند به د زابل سیوري ولسوالی ته لاړ شو تر څو د ملا صاحب جسد مبارک په خپلو سترګو ووینو او د وفات ټول تفصیل یې مؤثق

کړو. په همدې ورځ د سیوري په خوا روان شوو او مازدیګر ورسیدو. لومړی د ملا صاحب هغه د اوسیدو ځای ته ورغلو چې ده په کې د عمر وروستي څو کلونه تیر کړي وو. په دې ورځ په سیمه د امریکایانو ډیرې طیارې ګرځیدې او داسې خطره وه چې کیدای شي چاپه واچوي. نو ځکه کوربنو مشوره راکړه چې سبا سهار به د ملا صاحب قبر ته ورشو.

سبا سهار د ملا صاحب قبر ته ورغلو، د هغه جسدمبارک مو په خپلو سترګو ولید، د هغه د جسد په لیدو سره یو داسې کیفیت راباندې راغی چې ټول غم مې سپک شو. د لیدلو ارمان مې وروسته له ډیرو کلونو پوره شو، داسې مې احساسوله لکه په ژوند مې چې ورسره لیدلي وي او زړه ته مې یو عجیب اطمینان او سکون حاصل شو. د ملا صاحب د جسد مبارک له لیدلو وروسته بیرته روان شوو او مازدیګر له ملا عبدالسلام آخند او نورو ملګرو سره بیا یو ځای شوو.

دلته مو یو وار بیا مجلس وکړ، ملا عبدالسلام کاتب صاحب وویل: زه نور کار نه درلرم که دا خبره پټوئ که یی نه پټوئ خو دا یوه خبره درته کوم چې دا امارت یوه دیني وجیبه ده، باید پر شریعت برابر روان شي. دلته نورمجلس نه دی شوی.

له څو ورځو تیریدو وروسته مو د اسلامي امارت مرستیال ملا اختر محمد منصور صاحب خبر کړ، دغه راز د امارت څو نور مشران او مشائخ لکه شیخ الحدیث مولوي هبة الله اخندزاده صاحب، شیخ الحدیث مولوي عبدالسلام صاحب او شیخ الحدیث مولوي عبدالحکیم صاحب مو هم خبر کړل. چې وروسته د منصور صاحب لخواد امارت څو نور مشران لکه مولوي نور محمد ثاقب صاحب، ملا عبدالقیوم ذاکر صاحب، امیر خان حقاني صاحب او څو نور مشران هم خبر شوي وو او دوی په ګډه یوه مجلس جوړ کړی و. چې په هغه مجلس کې له منصور صاحب سره د امارت مشر په حیث بیعت شوی و او په عین حال کې یې دا فیصله هم کړې وه چې د ملا صاحب د وفات خبره باید تر یو وخته پټه وساتل شي. ځکه په همدې وختونو کې امریکایان د شکست په حال کې و او د خپلو عسکرو د ایستلو لړۍ یې پیل کړې وه. نو دوی ویل چې که په دې حساس وخت کې د ملا صاحب وفات اعلان شي دا به په

جهادي وضعیت بد اثر وکړي، امریکایان به زړور شي او د خپلو عسکرو د خروج لړی به متوقفه کړي.

****

# اتم فصل

## تأثرات او خاطرې

د عاليقدرامیرالمؤمنین ملامحمدعمر مجاهد رحمه الله د وفات د اعلان په اړه د اسلامي امارت د رهبري شورى او د مرحوم د کورنۍ اعلامیه

بسم الله الرحمن الرحيم

إن الحمد لله؛ نحمده، ونستعينه، ونستغفره، ونتوب إليه، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ومن سيئات أعمالنا. من يهده الله؛ فلا مضل له، ومن يضلل؛ فلا هادي له. ونشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له. ونشهد أن محمداً عبده ورسوله. صلى الله عليه وعلى آله وأصحابه وسلم تسليماً كثيرا.

أما بعد. فقد قال الله تبارك وتعالى:

﴿وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ أَنْ تَمُوتَ إِلاَّ بِإِذْنِ الله كِتَابًا مُّؤَجَّلاً وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهِ مِنْهَا وَمَن يُرِدْ ثَوَابَ الآخِرَةِ نُؤْتِهِ مِنْهَا وَسَنَجْزِي الشَّاكِرِينَ۱۴۵ وَكَأَيِّن مِّن نَّبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُواْ لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ وَمَا ضَعُفُواْ وَمَا اسْتَكَانُواْ وَاللهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ۱۴۶ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلاَّ أَن قَالُواْ ربَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ﴾ [آل عمران/۱۴۷]

ترجمه: او هیڅ یو کس لره دا واک نشته چې مړ شي مگر دالله تعالی په حکم سره په لیکل شوې ټاکلې نیټه به مري، او څوک چې د دنیا اجر غواړي نو له همدې يې برخه ورکوو او څوک چې د اخرت اجر او ثواب غواړي نو له هماغه یعني اخرته یې ورکوو، او زر به شاکرینو ته ښه بدله ورکړو. او ډېر داسې نبیان دي چې په خوا کې يې ډېر خدای پالونکي جنگیدلي دي خو د الله په لاره کې د ور رسیدلو مصیبتونو له امله نه سست شول، نه کمزوري شول او نه یې سرټیټی وکړ او الله همداسې صابرین خوښوي.او د دوی له دې پرته بله خبره نه وه چې ویل به یې: اې زموږ ربه گناهونه مو راوبخښه او په خپلو چارو کې زموږ تیرى راوبخښه او پښې مو ټینگې کړه او پر کافرانو نصرت او بریا راکړه.

مرگ حق دی موږ پردې ایمان لرو چې له الله تعالی پرته هر موجود د مرگ سره مخ کیږي، حتی دالله تعالی تر ټولو محبوب مخلوق د دووجهانونو سردار حضرت رسول اکرم محمد صلی الله علیه وسلم هم د مرگ څکه کړې او له دنیا څخه یي رحلت کړی دی.

همدې حقیقت ته په پام سره د افغانستان د اسلامي امارت مشرتابه او د ملامحمد عمر مجاهد کورنۍ اعلانوي چې داسلامي امارت مؤسس او زعیم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د وریپښې شوې ناروغۍ له امله خپل روح ملک الارواح ته وسپاره او له دې فاني جهان څخه یي د ابدي نړۍ په خوا سفر وکړ. انالله واناالیه راجعون. ورحمه الله تعالی رحمة واسعة

ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه د اسلامي امت یو ویاړلی او مخلص رهبر و، چې په ډیرو سختو شرائطو کې یي د اسلامي حاکمیت لویدلی بیرغ راپورته کړ، د اسلامي امارت تر نامه لاندې یي یو بشپړ منظم او د اسلامي سیاست په اصولو برابر شرعي نظام تأسیس کړ، الله تعالی د ده په توسط نه یوازې د افغانستان په سطحه مؤمنانو ته د اسلامي نظام نعمت ورولید، بلکې درست جهان ته یي د واقعي اسلامي حاکمیت نمونه وړاندې کړه.

دا څو کرښې شاید د نوموړي د ویاړمنو کارنامو د احتوا تاب ونلري، نوځکه اصلي خبرې ته څو او هغه دا چې عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله نور له دې دنیا رحلت کړی، په دې شرائطو کې زموږ دنده دا ده چې له نوموړي راپاتې امانت اسلامي امارت هماغسې وپالو لکه ده مرحوم چې پاللی و، هماغسې اسلامي شریعت ته التزام وکړو، هماغسې مخلص او په الله تعالی متوکل واوسو، هماغسې قرباني ته حاضر او د حق په لاره کې مؤمن، متعهد، متوکل، صابر، ثابت او له الله تعالی څخه ویریدونکي واوسو تر څو الله تعالی همداسې د دې ستر بار د پورته کولو او تر منزله رسولو توفیق راکړي، او همداسې مو د دنیا او اخرت په سرلوړۍ او بریا ونازوي.

مرحوم ملامحمدعمر مجاهد چې د امریکا په مشرۍ د نړیوال کفري یرغل له ټول فشار او تعقیب سره سره په هیواد کې اوسېده اوپه تیرو څوارلسو کلونو کې حتی د یوې ورځې لپاره هم له افغانستان څخه بهر پاکستان یا کوم بل هیواد ته نه دی تللی او له خپل میشت ځای څخه یي د اسلامي امارت چارې رهبرې کولې چې د نوموړي په دې ستر استقامت او له هیواده په نه وتلو کره شواهد او دلایل موجود دي، څه موده وړاندې د ورپیښې شوي ناروغۍ له امله چې ناجوړي یې په وروستیو دوه اونیو کې سختي زیاته شوه او په حق ورسید.

عالیقدر امیرالمؤمنین رحمه الله که جسما یو شخص و مگر په معنوي لحاظ نوموړی یو خوځښت، یوه نظریه او د یوه مقدس ارمان حامل و، که څوک غواړي د هغه روح خوشاله کړي او له هغه سره د وفا ثبوت وړاندي کړي، نوباید د نوموړي له میراث اسلامي امارت سره وفا وکړي، د اسلامي نظام د اعادې لپاره په دې شرائطو کې په حیث د مسلمان دا زموږ د فرد فرد وظیفه ده چې د اسلامي امارت د قوت، وحدت، پراختیا او بریا لپاره ټولې هڅې په کار واچوو، د دې گډ کور بنیادونه لا پاخه کړو، څکه زموږ د مسلمان ولس او مجاهد قشر عزت او سرلوړي یوازې د همدغه صف په قوت سره تضمینیدلی شي.

مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله اسلامي امارت د یوه ستر خوځښت په حیث په داسې ډول ودان کړی او روان کړی چې ترشا یي جوړ او محکم بنیادونه، مخلص او باتدبیره ملگري او منظم تشکیلات پرې ایښي دي. لهذا مجاهدین او ټول مسلمانان دي مطمئن اوسي، چې دا کاروان به د اسلامي امارت ټول مسؤلین او افراد د الله تعالی په نصرت او دمسلمانانو په ملاتړ د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله له ارمانونو سره سم منزل مقصود ته رسوي ان شاءالله تعالی و ما ذالک علی الله بعزیز

داسلامي امارت د مشرتابه، رهبري شورا او د عالیقدرامیرالمؤمنین رحمه الله د کورنۍ له پریکړې سره سم به سر له نن یعنې د ۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال له ۱۴ څخه تر دریو ورځو پورې په ټولو سیمو کې د علماء کرامو ، د مساجدو د امامانو، قومي او جهادي

شخصیتونو، داسلامي امارت د مسؤلینو، مجاهدینو او عام ولس لخوا د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله روح ته د دعاء په خاطر دقران کریم د ختمونو، فاتحو او دعاګانو مراسم ترسره کیږي، او له الله تعالی څخه به مرحوم امیرالمؤمنین ته د مغفرت او اسلامي امارت ته د استحکام او بریالیتوب دعاګانې کیږي.

په پای کې باید یادونه وکړو چې د مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد مورنی ورور ملا عبد المنان اخند او د مرحوم ملامحمد عمر مجاهد مشر زوی مولوي محمد یعقوب صاحب له ټولومسلمانانو څخه خصوصي غوښتنه کوي چې د مرحوم ملا محمدعمر مجاهد په مشرۍ د اسلامي امارت په واکمنۍ کې که د دوی کوم ډول حقوق تلف شوي وي، نو ټول دې ورته عفو وکړي او په دعاګانو کې دې تل یاد ساتي، موږ په دې ستر غم کې ټول مسلمان امت او په خاص ډول دافغانستان مجاهد ولس له ځان سره شریک بولو او ټولو ته له الله تعالی څخه د تسلیت او صبرجمیل غوښتونکي یو. والسلام

دافغانستان د اسلامي امارت رهبري شورى او د عالیقدر مرحوم ملا محمد عمر مجاهد کورنۍ

۱۴۳۶ هـ ق کال د شوال المکرم ۱۴مه

۱۳۹۴هـ ش کال د اسد ۸ مه

## د اسلامي امارت د يو شمير مشرانو او رهبري شورى د اعضاوو تأثرات

## د اسلامي امارت د زعيم امير المؤمنين شيخ هبة الله اخندزاده صاحب تأثرات

الحمد لله و كفى و سلام على عباده الذين اصطفى. اما بعد فقد قال الله تعالى فى كتابه الحكيم

﴿مِّنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُم مَّن قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُم مَّن يَنتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا﴾[الاحزاب]

عن ابن عمر رضي الله عنهما قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: اذكروا محاسن موتاكم ... رواه ابوداود و الترمذي.

حضرت عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد ( الله پاک دې يې وبخښي او الله تعالى دې يې په ورځ د قيامت د عادلو او صالحو امراوو په ټولي کې راوپاڅوي او الله تعالى دې جنت الفردوس ورکړي) د اسلافو يوه نمونه وه. په داسې حال کې چې افغانستان د شوروي له ماتې وروسته د يو سخت بحران سره مخامخ و، هر ځای د قدرت پر سر جنگونه روان وو، د هيچا سر، مال او عزت په امن کې نه وو. په هر ولايت او ولسوالي کې مختلف حکومتونه وو. علماوو او نيکانو مجاهدينو يا د ملک څخه هجرت وکړی يا په خپلو کورونو کې کيناستل. شر او فساد دې حد ته ورسيد چې يو کلی او ښار هم ترې خلاص نه و. د شريعت نوم چا نه سوای اخيستلای، فيصلې او پريکړې د ټوپک په زور وې، مطلق ټوپک حاکم و، په ټولنه کې هغه ارذال، جهال، بې دينه او بې حيا خلک په واک او قدرت کې وو. مسلمانان ورځ تر بلې له سختو مشکلاتو سره مخامخ کيدل. هغه جهاد چې افغان مؤمن ولس د شوروي يرغل په مقابل کې د بې شميره شهيدانو، زخميانو او مهاجرتونو او نورو قربانيو په ورکولو سره د يوه شرعي اسلامي نظام د راتگ لپاره کړی و هغه نظام هم لاسته رانغلی. چې دې حالت په کلونو دوام وکړ. په دې سخت حالت کې الله تعالى د مظلومو مسلمانانو د تعاون او کومک او د خپل دين د احياء لپاره په انساني ټولنه کې قدرتمند انسانان د ديني علومو زده کوونکي طالبان او د هغوی استادان او مخلص مجاهدين د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد په قيادت کې او د مخلصو او متدينو ولسونو په

حمایت کې راپورته کړل چې په کوم وخت کې یې د افغانستان ډیره حصه (په سلو کې ۹۵) د الله تعالی په نصرت سره فتحه کړه او د الله تعالی شرعي نظام په کې حاکم، شرعي حدود نافذ سوه، د ښه امنیت فضا د شریعت په نافذولو سره حاکمه سوه، مسجدونه په لمونځونو او شرعي تعلیماتو باندې آباد سول، امر بالمعروف و نهی عن المنکر جاري سو، کلي او ښارونه په مدارسو آباد سول، د علم قدر زیات سو. شرعي علومو ته توجه وسوه، علماوو ته د قدر په سترګه کتل کیدل، د هر سړي به دا کوښښ و چې خپل زوی د شرعي علومو طالب کړي، مظلوم قدرتمند سو، ظالم بې قدرته سو، عدالت تأمین سو، د ښځو او نارینه وو حقوق تأمین سول، د شعائر الله تعظیم پر ځای سو، د جاهلیت رسوم له منځه یووړل سول، لکه په بامیان کې د بودا بتان چې له منځه یووړل سول، چې د امیر المؤمنین صاحب په دې عمل سره ټولې نړۍ ته دا ثابته سوه چې د امیر المؤمنین صاحب د مخلوق تر رضا د الله تعالی رضا خوښه ده.

امیر المؤمنین رحمه الله تعالی په دې آخر الزمان کې د شرعي احکامو په عملي کولو سره شریعت په عملي شکل خلکو ته وروښود. هغه احکام چې موږ د شریعت د کتابونو په عباراتو کې ویلي او مطالعه کړي وو او په عملي میدان کې مو د هغو هیڅ بیلګه نه په خپل ملک نه په نورو ملکونو کې په خپل دور کې لیدلې یا اوریدلې وه، د مرحوم امیر المؤمنین رحمه الله په دور کې مو په عمل کې ولیدل. جزاه الله تعالی احسن الجزاء نور الله مرقده و جعل جنة الفردوس مأواه.

اسلامي امارت د ټولو مسلمانانو د زړونو یو ارمان و چې پوره سو او مسلمانانو په کې د آرام ساه واخیسته، چون واقعي اسلامي نظام د نړۍ کافرانو خصوصا امریکا ته چې د نړۍ د کافرانو په سر کې ده د زغملو وړ نه و، لهذا د نړۍ کافرانو قسم قسم بهانې لټولې، چې دغه اسلامي نظام له منځه یوسي چې بالاخره نړیوالو کفارو د امریکا په مشرۍ ایتلاف جوړ کړ، ظالمانه حمله یې پر اسلامي امارت خالص د اسلام په وجه وکړه چې په دې وخت کې جناب امیر المؤمنین رحمه الله تعالی پر خپل قوي ایمان ودریدی، د امریکا په مقابل کې یې جهاد اعلان کړ، د کفارو سره یې د اسلام او مسلمانانو پر سر هیڅ قسم سازش ونه مانه، تر دنیوي مفاداتو یې اسلام ته ترجیح ورکړه،

چې په نتیجه کې یې الله تعالی نصرت وکړ د امریکا او ملګرو په مقابل کې مخلصو مسلمانانو د ده جهادي اعلان ته لبیک ووایه. جهاد شروع سو، چې فعلا هم ادامه لري. دا جهاد به تر هغه وخته شروع تر څو چې د جهاد هدف چې اسلامي شرعي نظام دی د افغانستان پر پاکه او مقدسه ځمکه قائمیږي. په دې لار کې به د امیر المؤمنین رحمه الله تعالی په شان چې د اسلامي شرعي نظام په مقابل کې یې هیڅ معامله ونه کړه، هیڅ معامله نه کیږي. الله تعالی دې موږ هم په خپل عزم کې دغسې کامیاب کړي. لکه امیر المؤمنین رحمه الله تعالی چې کامیاب سو. په آخر کې امیر المؤمنین رحمه الله تعالی او د ده د شرعي او اسلامي لارې ټولو لارویانو ته دعاء کوم چې الله تعالی ټولو ته جنت الفردوس او د دنیا او آخرت کامیابي ورنصیب کړي. آمین

## د اسلامي امارت د ریاسة الوزراء پخوانی مرستیال او د رهبري شوری غړی الحاج ملا محمدحسن آخند

ملا صاحب مرحوم د شورویانو پر خلاف د جهاد په دوره کې ډېر مشهور قومندان یا ډلګی‌مشر نه و، چې په هغه وجه دي د طالبانو د اسلامي‌تحریک لپاره مشر وټاکل شي او یا د پخوانی جهادي تجربې په وجه دي دا د طالبانو د اسلامي‌تحریک او بیا د اسلامي‌امارت دا دومره پراخ کار او نظام وچلوي، بلکې په مرحوم ملا صاحب کې یو شمیر داسې صفات وو چې د هغو په وجه الله تعالی د دې ستر خدمت د پاره غوره کړ.

ملا صاحب مرحوم، ډیره زیاته باطني سپیڅلتیا درلوده، تل یې پر دې فکر کاوه چې څرنګه له غرور او تکبر نه وساتل شي، زما یاد دي کله چې به موږ له ملا صاحب سره یو ځای شوو مجلس به مو کاوه نوموړي به دا خبره ډیره کوله او موږ به یې داسې مخاطب کړلو (شریکانو زه تر نور هرڅه پر خپل ځان ډیره پهره داري کوم، داسې نه چې شیطان لعین می لار ووهي، د دې قدرت او واکمني په وجه لویي او تکبر راڅخه ونشي، او یوې کندي ته ونه لویږم او له مستقیمې لارې څخه مي منحرف نه کړي...) نو باطني پاکي یو ډېر غټ صفت دی او دا په ملا صاحب کې موجود و.

دوهم، د الله تعالی پر فیصله یې ډیره کلک باور او عقیده وه، په دې یې باور و چې څه چې الله کوي هغه په بله نشي کیدای، له نورو افواهاتو او وهمونو څخه هیڅ نه ډاریدی.

زما یاد دي، کندهار تـه د حرکـت انقـلاب اسـلامي د ګونـد مخکښ علـماء او مشـران راغلي وو او له ملا صاحب سره یې ملاقات و، په والي کوټې (میلمستون) کې، دې وفـد ملا صاحب ته د خپل سفر موخه بیان کړه، چې موږ کابل ته ولاړو لومړی مـو لـه رباني سره ولیدل او بیا له سیاف سره، تر څو له طالبانو سره صلح ته اماده شي، خـو سـیاف پـه ځواب کې راته وویل چې زه به تر هغو مقاومت کوم او له کابل نه نه وځم تر څو پـر سر مي زریدار ټانګ راتیر کړي، د وفد د علماو ډېر تشویش وو چې کـه طالبـان کابـل تـه ورسیږي هغه وخت به ډېر بد حالـت رامـنځ تـه شي ځکـه دوي د استاد سیاف سـختو خبرو او ګواښونو په تشویش کې کړي وو.

وروسته ملا صاحب ورته وویل چې، علماء کرامو خدای مو هرکله راوله، هـیڅ تشـویش مه کوئ، فیصلې چې کوي هغه بل ذات دی فیصلې د سیاف په لاس کې نه دي، کـه الله تعالی فیصله وکړي چې وځه سیافه! بس دا سیاف به تاسو وینئ نه بـه یـې پـر سر ټانـګ تیر شوی وي او نه موټر خو له کابله به وځي، تاسو هیڅ تشویش مـه کـوئ څـه چې الله کوي هغه به کیږي.

بیا هغسې وشول کله چې طالبان کابل ته ورښـکاره شـول، سیاف او ملګـري یـې بیـا پـه پنجشیر کې ګرځیدل.

نو د الله تعالی پر فیصله یقین او باور درلودل، دا صـفت هـم یـو د دې باعـث و چې الله تعالی دی د دې ستر خدمت او کار لپاره انتخاب کړ.

دریم: ملا صاحب مبارک، ډېر زیات صابر و، پـه تکـالیفو، مشـکلاتو خواریـو او تنګیـو یې ډېر صبر کاوه او مایوسي یې نه ښکاره کوله، یوه نمونه یې داده، کله چې د اسـلامي امارت حکومت سقوط وکړ، مـلا صـاحب ۱۳ کالـه متصـل لـه خپلـې کـورنۍ اولادو او قریبانو څخه جلا وخت تیر کړ او په وطن کې دننه اوسیده. زموږ د معلوماتو له مخې پـه دې دیارلس کاله کې یو ساعت هم له هیواده دباندې نه دی وتلی، لـه خپلـو مجاهـدینو سره یو ځای اوسیدی، په دې دیارلس کاله کـې بـه یـې ضرور ډیـر تکلیفونـه، تنګـی او خوارۍ تیرې کړې وي، او دیـارلس کالـه متصـل لـه خپلـې کـورنۍ جـلا اوسیدل او لـه هرڅه سهولیاتو لرې، دا یو ډېر قوي عزم غواړي او دا د ډېر صـابر کـس کـار دی. نـو زه

ویلای شم چې ملا صاحب ډېر زیات صابر سړی و، او صابر کس د الله تعالی ډېر خوښ وي.

اوس یو شمیر خلګ دا خبره تبلیغوي چې د ملا صاحب تداوي د کراچي په یوه روغتون کې کیدله، په داسې حال کې چې هغه مرحوم د مریضي له امله ډیرې خوارۍ تیرې کړې مګر پر هغو یې صبر کاوه خو د یوه ساعت لپاره د پاکستان هیواد یا کوم بل هیواد ته نه لاړ.

ځلورم: ملا صاحب ډېر غیرتي او شجاع سړی و، زه تاسو ته یو مثال درکوم، کله چې د امریکا په تجارتي مرکز کې چاودنې وشوې، له هغه وروسته امریکایانو دا تور په اسامه بن لادن رحمه الله پسې وتړی، امیرالمومنین ملا محمد عمر مجاهد ته امریکایانو او نورو خارجیانو وویل چې اسامه بن لادن به موږ ته سپارئ، ملا صاحب ورته وویل چې که تاسو کوم ثبوت لرئ او یا اسناد درسره وي د اسلامي اصولو مطابق او که له تاسو سره اسناد نه وي او هسې یو الزام وي، په هیڅ وجه زه دې ته تیار نه یم، امریکایانو په ځواب کې ورته وویل چې بې قید او شرطه به اسامه موږ ته سپارې، کنه موږ به افغانستان حمله کوو. امیرالمومنین رحمه الله ورته وویل چې زه له اسنادو پرته کفارو ته د یوه مسلمان سپارلو ته په هیڅ وجه تیار نه یم، که مې کور خرابیږي، که اره کیږم، سر او عیال مې ټول قرباني کیږي هم ستاسو غوښتنه نشم منلای، او نه تاسو ته سر ټیټوم، ځکه که نن ستاسو دا غوښتنه ومنم، سبا به وایاست چې په افغانستان کې اسلامي نظام نشو برداشت کولای دا نظام مه پیاده کوئ، نو هغه وخت به زه څه کوم. بیا موږ او تاسو ولیدل چې په دې لار کې هرڅه قرباني ته تیار شو خو له خپل غیرته تیر نشو.

دا چې اوس خلګ خبرې کوي چې ملا صاحب د پاکستان تر اثر لاندي کس و، ایا دا کیدای شي چې یو سړی دې دومره غیرت مند وي چې ټولې کفري نړۍ ته د مقابلې لپاره ور وړاندې کیږي، بیا دې یوازې د یوشخص چې هغه هم له هرې نګاه کمزوری وي دهغه تر اثر لاندي دې راشي، دا د یوه غیرتمن شخص له شانه سره بعیده خبره ده.

پنځم: د ملا محمد عمر مجاهد یو صفت او خصوصیت دا وو چې په خپله واکمنۍ بوره مسلط و، خپلو اتباعو او پیروانو ته یې خپله سپېڅلتیا، قاطعیت او جدیت په عملي توګه ښودلی وو، چا یې له امره سرغړونه نه کوله.

ملا صاحب د کوکنارو د کښت د بندیدو حکم او امر صادر کړ، هم مهاله په ټولو هغو ساحو کې چې د اسلامي امارت واکمني وه، په کلکه بند شو، هیچا هم بیا د تاریاکو د کښت کولو جرات نه دی کړی، په داسې حال چې نه د دې لپاره کوم کمپاین وچلیدی او نه څوک ووژل شول او نه څوک وځوریدل، ټولو په خپله خوښه او رضا د خپل امیر امر ته لبیک ووایه. نو دا یو ډیره ښه مثال دی چې ملا صاحب پر خپله واکمني باندي بوره تسلط درلودی.

ملا صاحب په خپل پوځ هم همداسې تسلط درلودی، د اسلامي امارت د دورې په مهال یو وخت یو شمیر کسانو، ملا صاحب ته د اسلامي امارت د یوه مشهور او تکړه قومندان داسی شکایت راوړ چې په ځینو امورو کې یې له شرعي اصولو مخالفت کړی و، ملا صاحب وزیردفاع مرحوم ملا عبیدالله اخند ته حال وکړ چې دا قومندان تر مازدیګره پورې مکمل خلع سلاح کړي او ماته یې راولیږئ، په هغه ټاکلي وخت کې دا مشهور قومندان چې دښمن به یې له نامه څخه لا بیریدي او امارت هم په همدې قومندان پوره حساب کاوه، خو ټولې دلګۍ او ګروپونه یې خلع سلاح شول. هیڅ چا سرغړونه ونکړه او نه یې مخالفت ښکاره کړ، دا هم پر خپل پوځ او مجاهدینو د تسلط یو ډېر ښه مثال دی.

شپږم: ملا صاحب د علومو شرعیه وو ډېر طرفدار وو، او د احکامو شرعیه وو یې ډیره زیاته پابندي کوله، او دیوه شرعي حکم په تعمیل کې یې هیڅ تاخیر نه خوښاوه، د اسلامي امارت په دوره کې په ټول هیواد کې علم خپور شو، مدارس او علمي مرکزونه خلاص شول، د دیني او شرعي علومو د زده کړې شوق او رغبت په خلګو کې زیات شو. او د همدې شرعي احکامو د پابندي په وجه په ټول ملک کې بې ساری امنیت راغی او اسلامي نظام پلی شو، هیچا د بد امني نه شوای جوړولای. هر چیرته به له خپلو مالو او پیسو سره په ډېر اطمنان په شپه او په ورځ تلل راتلل.

اووم: ملا صاحب مرحوم خپله باطني سپېڅلتیا درلوده، دهغې اثر او برکت یې تر ډېره حده په خپلو ملګرو او د ادارو په منسوبینو کې هم ښکاره و.

زه چې کله په کندهار کې په لومړي ځل د والي په صفت معرفي شوم او بیا کابل ته ولاړم په وزارت خارجه او بیا د ریاست الوزرا د مرستیالۍ د دندې تر مهاله په دې ټوله دوره کې تر اوسه پورې داسي کس ماته نه دی راغلی او یا شخصا زه وربانديي پوهېدلی نه یم چې، ماته دې د یوه کار د خلاصیدو لپاره د رشوت وړاندیز وکړي، دا د ملاصاحب برکت وو، چې داسی یو سوچه اسلامي نظام یې رامنځته کړی وو چې نه یو مسئول او نه عادي کس په ښکاره د دې جرأت کولای شوای چې اداري امورو کې غیر شرعي قدم واخلي. د بل چا څخه دا یوه واقعه مي په یاد ده، زما یو نژدې ملګری یوه ورځ ډېر وارخطا او تیز زما د کار دفتر ته راننوت او په وارخطا حالت کې یې راته وویل چې هغه فلانکي تجار حاجي صاحب پرون راته وویل چي دا زما قضیه ولې ژر نه خلاصیږي، که ستا یا خپله د حاجي ملا صاحب څه ضرورت وي ماته وواياست زه به يې ډېره ژر ضرورت پوره کړم. ما ورته ویل ته یې دلته راوله، حاجي صاحب یې ماته مخامخ کښیناوه او مخاطب مي کړ، چې تا څرنګه دا جرات وکړ چې د رشوت وړاندیز دي کړی دی، تجار په خپل کار پښیماني ښکاره کړه او معذرت یې وغوښت بیا مې هم ملګرو ته وویل چې د یوځه وخت لپاره یې بندي کړئ چې آینده کې نور عبرت واخلي. نور په دې اووه کاله کې ماته داسې واقعه مخ ته نه ده راغلي.

اتم: ملا صاحب مرحوم له خپل قدرت او واک څخه شخصي استفاده نه ده کړې، هیڅ څوک نشي ثابتولای چې ملا صاحب په ټول افغانستان کې چیرته یو تعمیر، پوخ کور یا مارکیټ لري، دا هیڅ نشي ثابتولی. نو دا ټول د ملا صاحب او د هغه د جوړ کړي اسلام نظام برکت وو.او اثر یې په ملګرو او منسوبینو کې هم ښه ښکاره وو.

یوه نمونه یې زه درته وایم، کله چې د اسلامي امارت حکومت سقوط وکړ، کیدای شي له ځینو مشرانو ملګرو سره د خپلو ادارو مربوط څه نقدي پیسې پاته شوي وي، زموږ یو مشر ملګری چې نوم یې نه اخلم، او د امارت په مهمو وظیفو پاته شوی او اوس هم په غټه وظیفه دی، یو وخت یې راته وویل چې که کله امیر المؤمنین شیخ هبة الله اخند

زاده صاحب ته ورتللې زه هم درسره ځم کار مي دی، نو موقع پیدا شوه شیخ صاحب ته ورغلو، کله چې په مجلس کې کښېنستلو، ما ورته وویل چې که ستا شخصي ـ او پټ کار وي زه به ووځم، هغه وویل نه ستاځخه نه دی پټ، نوله جیب څخه یې یوه تړلې غوټه را وایستله او شیخ صاحب ته یې وړاندې کړه، چې دا څو لکه روپۍ دی، کله چې موږ له کابل نه ووتلو له ماسره پاته وي، بیا په دې وجه چې دا پیسې رانه ضایع یا ورکې نه شي په یوه کار مو بندې کړې، وروسته دا پیسې بندې شوې او ماته په لاس نه راتلې، اوس دا دی وتوانیدم پیسې مي لاسته راغلې بیرته یې د امارت بودیجې ته سپارم نه کوم لیک غواړم او نه ضمانت، خو دا چې دا پیسې وځنډیدې که د دې تقصیر په وجه راته بخښنه وکړې. او شیخ صاحب ترې قبولې کړې.

نهم: ملا صاحب انتهایي خاکسار او غیر مقتضي سړی وو، د ډېر اسایش او مرفه ژوند تقاضا یې نه درلوده، هر وخت چې به موږ ورغلو په خپل ځای کې به په یوه کمزوري (کټ)باندي ناست وو، او یا به یې کوم دیواله ته فرش غوړولی وو او پر یوه کمزورې نالي او بالښت به یې څنګ وهلی وو.

نو د پورته ذکر شویو صفاتو او خصوصیاتو په وجه چې په ملا صاحب مرحوم کې موجود و، الله تعالی ددې ستر خدمت لپاره غوره کړ، او د ژوند تر وروستی سلګی پورې یې ښه انجام کړ.

الله تعالی دي د ده قبر منور وګرځوي.

**د اسلامي امارت سیاسي مرستیال الحاج ملا عبدالغني برادر تأثرات**

د اسلامي امارت مؤسس مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د دې عصر یو له سترو شخصیتونو څخه و. له نوموړي سره زما تعارف او ملګرتیا له هغه وخت څخه وه کله چې په کندهار کې د ژړی ولسوالی د سنګ حصار په سیمه کې مو د فیض الله اخندزاده صاحب په جبهه کې جهادي ملګرتیا درلوده او د شورویانو خلاف مو جهاد کاوه. نوموړی په تمامه معنی یو واقعي مؤمن، مخلص، مجاهد او خپل دین او هیواد ته ژمن شخصیت و.

د ملاصاحب د غوره صفاتو له جملې يو دا و، چې قدرت او منصب وربانديې هيڅ منفي اثر نه کاوه، تکبر او عجب يې په کې نه پيدا کاوه، ما له ده سره د طالبۍ په وخت چې سخت د مسکنت او محتاجۍ وخت و، هم گذاره کړې ده او وروسته چې ملا صاحب امير المؤمنين و او د افغانستان واک يې په لاس کې و، هم ورسره نږدې وم. مگر په دې دواړو حالاتو کې ما په ده کې کوم تفاوت نه دی ليدلی. چې يا يې وضعيت او چلند بدل شوی وي او يا په کې نور فرق راغلی وي. ملا صاحب تر پايه د هماغه صداقت، اخلاص او تواضع چلند له هر چا سره درلود.

د ملا صاحب بل صفت چې ما ته ډير جالب و هغه د ده غيرت و، دا چې الله تعالی غيرتي ذات دی او غيرتي خلک خوښوي، نو ځکه غيرتي انسان هر چا ته محبوب وي. ملا صاحب ډير زيات غيرت او ځوانمردي درلوده. دا چې هغه د فساد او ظلم په خلاف قيام وکړ هم يو علت يې دا و چې نور د هغه ديني غيرت دا نه منله چې په افغانستان کې داسې حالت روان وي او دی بې تفاوته پاته وي. په جهاد کې شجاعت خو يې موږ ته هغه وخت معلوم و چې کله افغانستان د شورويانو تر اشغال لاندې و، او د هرات ـ کندهار پر لاره به شوروي کاروانونه تيريدل. هغه وخت چې زموږ مرکز په سنگ حصار سيمه کې وه، ملا صاحب به هميشه هڅه کوله چې په عمومي سرک د روسانونو کاروانو ته په کمينونو کې شرکت وکړي. نوموړي به داسې خطرناک عمليات ترسره کول چې ډير ځلې خو به مجاهدينو ورسره په عملياتو کې شرکت نه شوای کولای.

د ملا صاحب بل صفت سخاوت و، د اسلامي امارت له تأسيس مخکې ما او ملا صاحب د سنگ حصار په سيمه کې امامت درلود او اقتصادي حالت مو ډير کمزوری و، دغه راز مو د خپلو مجاهدينو اطاق په مدرسه بدل کړی او پنځلس تر شل پورې طالبان په کې اوسيدل چې د خرڅ او خوراک هيڅ مدرک يې نه درلود. ملا صاحب په هماغه فقيرانه ژوند کې چې څه يې په لاس کې درلودل له همدې طالبانو يې قربانول. وروسته د اسلامي امارت د مشرتوب په وخت کې هم هغه فوق العاده سخاوت درلود. خصوصا په مجاهدينو، زخميانو، معيوبينو او نورو محتاجو خلکو يې ډيره پراخي کوله.

ملا صاحب لکه څنګه چې په اصولي موضوعاتو کې ډېر جدي وو، په عام ژوند کې بیا بې تکلفه او خوشطبعه مزاج درلود. ځان یې له ملګرو لوړ نه باله.

له امریکایي یرغل وروسته چې کله ملاصاحب مخفي ژوندرلود. نو زموږ رابطه په د استازي په واسطه وه دا چې هغه وخت په امارت کې لوی مسؤلیت ماته سپارل شوی و، نو د استازي په واسطه مې له ملا صاحب څخه په ټولو امورو کې د بخشش غوښتنه وکړه چې وروسته ده هم په ټوله مهرباني د بخشش اطمینان راولیږه وروسته زه ګرفتار شوم او کله چې نوموړی وفات کیده زه لا بندي وم نوځکه مې بیا هیڅکله ورسره ونه لیدل.

**د اسلامي امارت د مرستیال الحاج خلیفه صاحب سراج الدین حقاني تأثرات**

الحمدلله رب العالمین، و العاقبة للمتقین، والصلاة والسلام علی خیر خلقه محمد و علی اله و صحبه اجمعین و بعد.

اسلامي تاریخ په خپلو پاڼو کې د تل لپاره د خپلو اسلافو او لویو شخصیتونو زرینې کارنامې خوندي کړې دي.

په اسلامي تاریخ کې د حضرت ابوبکر الصدیق رضي الله عنه، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، حضرت عثمان ذي النورین رضي الله عنه، حضرت علي کرم الله وجهه، حضرت عمر ابن عبدالعزیز رحمه الله، سلطان محمود غزنوي رحمه الله، صلاح الدین ایوبي رحمه الله او ... زریني کارنامې هغه څه دي، چې مسلمانان د خپل اسلام په ساتلو او د هغه په دفاع کې ترې د سربښندنې او فداکاري الهام اخلي.

زمونږ عصر که په زماني لحاظ د صحابه کرامو، تابعینو، تبع تابعینو او د امت د نورو اسلافو له عصر څخه ډېر واټن لري، مګر په معنوي لحاظ په دې عصر کې هم ځینې داسې اشخاص شته دي، چې اخلاق، تعامل، عدالت او د اسلام د دفاع په لاره کې مواقف یې د خیرالقرون دورې اکابرو ته ورته دي.

مونږ دلته پر مسلمانانو د ترحم او له هغوی څخه په شرعي دفاع کې د امیرالمؤمنین ملا محمدعمر (مجاهد) رحمه الله موقف او تعامل د بیلګې په توګه یادوو.

اميرالمؤمنين ملا محمدعمر (مجاهد) په داسې مهال په افغانستان کې د مظلومو مسلمانانو د دفاع داعيه پيل کړه، چې دلته چا له ظالم څخه د مظلوم انتقام اخيستلو تصور نشواى کولاى. خو نوموړي د توکل محض پر اساس دا ستره داعيه د سنګ حصار له يوې خړې حجرې څخه پيل او په خپل لوړ عزم سره يې د افغانستان تر ګوټ، ګوټ پورې ورسوله.

له اسلامي احکامو څخه د دفاع په لاره کې يې داسې مواقف غوره کړل، چې په نړۍ کې د حق په جرم ځورول شوي هر مظلوم مسلمان يوازې د ده د حاکميت تر سيورې لاندې خپل ځان محفوظ او خوندي ګاڼه.

اميرالمؤمنين ملا محمدعمر (مجاهد) د معاصر دور هغه تاريخ جوړوونکی شخصيت دی، چې د مسلمانانو اوسنی او راتلونکي نسلونه به يې په تاريخي کارنامو وياړي.

اميرالمؤمنين د يوه مسلمان حاکم په حيث د ښو ټولنيزو مواصفاتو او مشخصاتو لرونکی انسان و، چې هر څوک يې له خپلې زاويې څخه د ده عالي مواصفات تر بحث لاندې نيسي.

زه هم غواړم د بيلګې په توګه دلته له پوځي اړخه د نوموړي د ثبات، شهامت او لوړ پوځي مورال په اړه يادونه وکړم.

له مرحوم والد صاحب څخه مې اوريدلي دي:

پر افغانستان د امريکايي يرغل ډېرې سختې او وارخطا کوونکي لحظې وې.

د امريکايي درنو بمباريو له امله د هيواد په شمال کې د مجاهدينو جنګي کرښې ماتې شوې او مجاهدين خوندي سيمو ته د عقب نشيني په حال کې وو.

په کابل کې هم د ملګرو د مجاهدينو د خونديتوب په غرض د کابل ښار د تخليې پريکړه کړې وه.

زه په دې نظر وم، چې د کابل تر تخليې وړاندې بايد په شمال کې د محاصره مجاهدينو را ايستلو چاره وشي. مګر د کابل په جنګي کرښو او همدا راز د کابل پر ښار

د امریکایي B-52 الوتکو او کروز توغندیو شدت دومره ډېر و، چې په کابل کې يې نور د مجاهدينو پاتې کېدل ستونزمن کړي وو. هماغه وه، چې د اسلامي امارت دفاع وزارت د ولس د حفاظت لپاره د کابل ښار د تخلیې پرېکړه وکړه او مجاهدينو د کابل له شمالي کرښو څخه عقب نشيني پيل کړه. د عقب نشيني پر مهال هم له پوځي نقطه نظره زما دا رايه وه، چې هغه بايد تدريجاً ترسره شي.

په دې ډول چې له کابل ښاره بهر د چهارآسياب او همدا راز د میدان ښار په استقامتونو کې بايد مونږ دفاعي کرښې جوړې کړو. ترڅو دښمن ته د پر شاکيدونکو مجاهدينو د تعقیب امکانات په لاس ورنشي.ـ خو د ملګرو نظر دا و، چې بايد له جنګي کرښې جوړولو پرته د عقب نشيني مرحله تکميل شي.

فيصله په دې وشوه، چې په دې اړه له اميرالمؤمنين څخه هدايت وغوښتل شي، چې هغوی څه ډول لارښوونه وکړي نو هغه به عملي کيږي.

په دې حال کې ما له خپل ځان سره دا پرېکړه وکړه، چې که چېرته اميرالمؤمنين هم همداسې په بيړه له ټولو سيمو څخه د عقب نشيني پرېکړه وکړي، بس زما ملګرتيا به په همدې ځای ورسره ختمه وي. او که اميرالمؤمنين په دې موقف و، چې حتی الامکان بايد له يرغلګر دښمن سره مقاومت وکړل شي، بيا به مې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې ملګرتيا ورسره وي.

کله مو چې په دې اړه د امارت له مقام سره رابطه وکړله، د نصرت مخابرې سبا اته بجې وخت راکړ او ويې ويل، چې ټول مجاهدين او مسؤلين دې په ټاکلي وخت د اميرالمؤمنين پيغام ته منتظر شي.

زه په دې انديښنه کې وم، چې يا الله اوس به په دې اړه د اميرالمؤمنين پرېکړه او موقف څه وي؟!

د دښمن د برلاسي او د مسلمانانو د ماتې زړه لړزونکې شيبې وې، سيمه ټوله د امريکايي الوتکو تر بمبار لاندې وه او هر ځای به يې بې درېغه بمونه ورول.

د سهار تر اتو بجو پورې د انتظار شيبې ډېرې اوږدې شوې.

بالاخره ټاکلی وخت راورسېد، مونږ ټول په یوه ځای کې راټول وو، چې امیرالمؤمنین مخابروي وینا پیل کړه.

له حمد او ثنا وروسته یې د جهاد او مبارزې په لاره کې د دغه ډول ازمېښتونو او ستونزو په اړه خبرې وکړې او په دې لاره کې یې ثبات او استقامت د مجاهدینو له اساسي مواصفاتو څخه یاد کړل.

وروسته یې صریحاً زموږ د استهدا په اړه وضاحت وکړ او ټول چارواکي او مجاهدین یې داسې مخاطب کړل:

(ټولو مجاهدینو او مسؤلینو! نن امریکایانو زموږ پر هیواد یرغل کړی دی. د کافرانو د دې یرغل مقابله کول پر مونږ فرض عین ده. لهذا تاسو که یو یاست، که دوه یاست، که یو میل وسله درسره وي او هغه هم یوه مرمۍ لري، له یرغلګرو کفارو سره وجنګېږئ، فرار عن الحرب حرام دی، زما درته امر دی، چې په هرځای کې یاست ورسره وجنګېږئ. پر شا مه ترې ځئ!)

چې دا خبره یې وکړه، په زړه مې سړې اوبه توی شوې، ما وویل چې پرېکړه وشوه، اوس به د نوې کرښې ترتیبات جوړوو، ملګرو هم دا توافق وکړ، چې سمه ده سبا به پرې مجلس وکړو.

د یرغل په دغه ډول سختو او امتحاني شېبو کې د امیرالمؤمنین له ثبات او مقاومت څخه دا جوتېږي، چې امیرالمؤمنین د همدې وحشیانه یرغل په مقابل کې د جهاد په بریالیتوب یقین درلود، ځکه یې د دې نړیوال کفري یرغل او د یرغلګرو د بې درېغه وحشت په مقابل کې یې د هیڅ ډول وارخطایي، تزلزل او تردد احساس نه کاوه او د په شاتګ پر ځای یې له هغوی سره په مقاومت ټینګار درلود.

له نظامي اړخه د جګړې پر مهال تر ټولو بریمن قومندان هغه دی چې د دښمن د جنګي ځواک تر اغېز لاندې رانشي او ترلاس لاندې ځواک یې په پوځي مورال داده وي.

اميرالمؤمنين د خپلې کلکې عقيدې او لوړ جهادي مورال له مخې له هغه نړيوال کفري ائتلاف سره چې د احزاب له غزا وروسته يې په اسلامي امت د دغه ډول پراخ کفري يرغل هيڅ بيلګه نشي ليدل کيدای په داسې موفقانه ډول مقابله وکړه چې د نړۍ ټول پوځي ماهرين او د پوځي پېښو شنونکي ورته ګوته په غاښ دي.

له صليبي ټلوالې سره د اميرالمؤمنين د مقاومت او په دې مقاومت کې د غيرت او شهامت په اړه د عربي نړۍ د پوځي او سياسي پېښو مشهور څېړونکی دوکتور شامل داسې وايي: ((اې د نړۍ ژبيوهه اديبانو! راشئ د نړۍ د ټولو ژبو قاموسونه له سره وليکئ، له هغو ټولو څخه د رجوليت (نارينتوب) لغت وباسئ او پر ځای يې يوازې د ملامحمد عمر نوم ورځای کړئ!))

همدا راز له صليبي ټلوالې سره د اميرالمؤمنين د مدبرانه تاريخي مقابلې په اړه د اسلامي نړۍ بل مشهور عالم، څېړونکی او ليکوال دوکتور حاکم المطيري داسې وايي: ((ملا محمدعمر مجاهد په معاصر دور کې د اسلامي امت يو ستر مجاهد زعيم دی، داسې زعيم چې د يرغلګرې صليبي ټلوالې په خلاف يې تاريخي مقابله وکړه، نوموړی په واقعي ډول د اسلامي امت لپاره داسې جهادي امام دی، چې د اسلامي امت موجود او راتلونکي نسلونه، د هغوی ټول جهادي او فکري نهضتونه او فقهي مدارس به په ملا محمدعمر مجاهد پسې اقتداء کوي.))

اميرالمؤمنين د دې ترڅنګ چې د محاربې په ډګر کې يو تر ټولو مسلط او ځواکمن قوماندان و، د قراني ارشاد له مخې يې له خپلو مجاهدينو، ملګرو، علماؤ او عامو خلکو سره اخلاقي تعامل ډېر ښه او په زړه پورې و.

والد صاحب به د اميرالمؤمنين د همدې لوړ اخلاقي تعامل په اړه ويل: ((مرحوم ملا صاحب د خپلو نېکو عالي اخلاقو، جهادي بصيرت او هر اړخيزې ځيرکتيا له امله د داسې محبوبو صفاتو لرونکی امير و، چې که مونږ ته الله تعالی د امير په توګه په اوسني عصرکې د يو چا د غوره کولو اختيار راکړی وای له ده پرته بل هيڅوک به مو د دغسې غوره صفاتو لرونکی شخصيت نه وو پيدا کړی.))

موږ باید څه وکړو؟

د قران کریم د ایتونو په ترتیب کې د عقایدو، احکامو، وعد، وعید او امثالو ترڅنګ د انبیاء علیهم السلام او پخوانیو امتونو د قصصو په باره کې هم د مفسرینو په قول (۱۶۰۰) آیتونه راغلي دي.

د قصصو له مبارکو آیتونو څخه اصلي هدف له هغوی څخه درس او عبرت اخیستل دي، چې الله تعالی مسلمانانو ته په قران کریم کې د همدې غرض لپاره راوړي دي.

د امیرالمؤمنین په جهادي ژوند له دې مختصر تأثر څخه هم زموږ غرض دا دی چې باید موږ خپل ځانونه د هغه مرحوم په حسنه اخلاقو، په شعائر الله غیرت کولو او په جهاد کې په صبر، استقامت او ثبات باندې متصف کړو.

زموږ مسؤلیت صرف د امیرالمؤمنین د جهادي کارنامو او مواصفاتو په بیانولو سره نه پوره کیږي؛ باید د هغه په څېر د الله تعالی د احکامو پیروي وکړو، د الله په دین غیرت وکړو، له مسلمانانو سره حسن سلوک او خپل ځوریدلي ولس خدمت وکړو، د مجاهدینو، شهیدانو، زخمیانو، معیوبینو، یتیمانو او د شهیدانو له کورنیو او د هغوی له ارمانونو سره خیانت و نه کړو.

کوم اسلامي مسؤلیت چې امیرالمؤمنین ته د اسلام، جهاد او خپل ولس په اړه راجع وو، هغه مرحوم په ښه ډول سره ترسره، خو موږ او تاسو ته اوس متوجه دی، باید د هغه په ښه ترسره کولو کې هیڅ ډول تمبلي او غفلت ونه کړو.

له متعال خدای څخه غواړم چې موږ ته د همدې مدبر، بابصیرته او شرعي مواصفاتو لرونکي قائد امیرالمؤمنین ملا محمدعمر (مجاهد) رحمه الله په جهادي نقش قدم د تللو توفیق رانصیب کړي.الله تعالی دې د نوموړي د حسنه اخلاقو صداقت، شهامت، غیرت او له دین سره د وفا اثرات په موږ او ټولو مجاهدینو کې پیدا کړي.الله تعالی دې د نوموړي درجې لوړې او په فردوس جنت کې ابدي خوښي ورنصیب کړي.

اللهم امین

وصل الله تعالی علی خیر خلقه محمّد وعلی اله و صحبه اجمعین

## د ملا صاحب د ځانګړي محرر ملا عبدالسلام کاتب صاحب تأثرات

بسم الله الرحمن الرحیم

که څوک د مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله ټول ژوند د امارت په وخت کې یې کړنې او ځانګړي صفات له دیني اړخه په پوره غور سره مطالعه کړي او په انصاف سره پریکړه وکړي نو هرومرو به ووایي چې ملا صاحب مرحوم د الله تعالی یو رښتینی بنده و او الله جل جلاله په دې خاص وخت کې د دین د خدمت لپاره منتخب کړی و. دلته د نمونې په ډول د ملا صاحب مرحوم د یو څو داسې عمده صفاتو یادونو کوو چې ان شاءالله د ټولو صفاتو د یادونې اړتیا به پاته نه شي.

اول: نیک نیت

نیت په اسلام کې خورا مهم ځای لري، د احادیثو په کتاب صحیح البخاري کې د حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم څخه په روایت شوي لومړني حدیث کې راغلي چې د اعمالو ټراو تر نیته دی. یعني په کوم کار کې چې د چا نیت سم وي هغه کار یې سم دی او که یې نیت سم نه وي هغه کار یې ناسم دی. که څه هم په اوس وخت کې اکثره خلکو نیت یو مخ له پامه غورځولی دی، په خپلو کارونو کې د نفس او زمان تابع دي. خو ملا صاحب مرحوم بیا دومره نیت ته متوجه و چې په اوس وخت کې مور د ده په ډول بل څوک نه دی لیدلی.

د کارونو په جریان کې یې د نیت دومره زیاته یادونه کوله چې سړی ویلای شي چې هغه خپل ټول لوی او واړه کارونه لومړی پر نیت عرضول او بیا یې کول. په خپله خاصه اصطلاح به یې ویل چې په دې کار کې مې نیت برابر دی، ځکه مې وکړ او په دې کار کې مې نیت نه برابرېږي نه یې کوم. او کله خو به یې یو کار په مخکې و، اقدام به یې نه کاوه، ویل به یې نیت مې نه برابرېږي. بیا چې به یې یو مصلحت په زړه شو هغه کار به یې وکړ نو ویل به یې اوس مې نیت برابر شو. نه یوازې خپله دومره د نیت پابند و، بلکې د امارت نورو مسؤلینو او افرادو ته به هم متوجه و او د نیت د سموالي توصیه به

يې ورته کوله. مطلب ملا محمد عمر مجاهد د نبي کريم صلی الله عليه وسلم حديث ته په پام سره کوښښ کاوه چې خپل ټول کارونه په نيک نيت سره ترسره کړي.

دوهم: د حق په مقابل کې د نفس او هوی تر تأثير لاندې نه راتلل.

ملا صاحب مرحوم د حق په مقابل کې د نفس او هوی تر تاثير لاندې نه راتلی، ځکه يو وخت يې په خپل دفتر کې د کار په جريان کې قسم واخيست. ويل يې چې زما په ټول ژوند کله هم داسې نه ده پيښه شوې چې زما د نفس او شريعت دې ټکر سره راغلی وي او ما دې د نفس تابعداري کړې وي.

رښتيا هم همداسې و، دغه وجه وه چې هر‌چا هر وخت د ملا صاحب په وړاندې په جرئت سره د حق او حقيقت بيان کولای شو، که څه هم د ده د شخصيت په اړه کومه خبره وای. ځکه ټولو ته معلومه وه چې ملا صاحب د حق په مقابل کې د نفس تر تاثير لاندې نه راځي ترڅو د انتقام او منفي عکس العمل سره مخامخ شم.

قدرت او حيثيت چې ډېر خلک يې د نفسي تقاضا له وجې په طلب کې دي خو ملا صاحب مرحوم په دې چاره کې هم د نفس پيروي نه ده کړې. ځکه د لويه سره د ده مبارزه د قدرت لپاره نه وه، يوازې د دې لپاره يې مبارزه کوله چې په ملک کې مو بړ اسلامي نظام او شرعي قانون نافذ وي. په هغه وخت کې يو ځل موږ ملګري د ده سره د کندهار ـ هرات پر لوی سړک په موټر کې روان وو، کله چې د ده هغه د شوروي ضد جهاد د وخت سنګر (سنګ حصار) سيمې ته ورسيدو، ملا صاحب د سړک يوه طرف ته اشاره وکړه ويل يې: چې دلته مې څه څمکه (پټی) درلودای او پر اوسيدلای او په افغانستان کې يو شرعي اسلامي حکومت وای او بل چا حکومت کولای، څومره خوند به يې کړی وای.

او دا خبره چې دی د حق په مقابل کې د نفس او هوی پيروي نه کوي د امريکايانو سره په مقابل کې يې عملا هم ثابته کړه. ځکه چې تر خپل ټول قدرت او هر څه تېر شو خو له خپل برحق دريځ په هيڅ وجه تېر نه شو.

دريم: پر الله تعالی ټينګ باور او اعتماد

امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد پر الله تعالی د اتکل څخه زیات اعتماد او باور درلود. که د طالبانو د اسلامي تحریک پیل راواخلو، ملا صاحب په کندهار کې د علماء کرامو هغې غونډې ته چې دی یې امیر المؤمنین وټاکه، د خپلې وینا په یوه برخه کې ویلي و چې موږ ولې او څرنګه پاڅون وکړ. ملا صاحب وایي: ما پر الله تعالی توکل محض وکړ او توکل محض ناکامي نه لري. مطلب د کامیابي لپاره مو ظاهري اسباب په هیڅ حساب وو، یوازې او یوازې پر الله تعالی اعتماد او باور و چې برحق پاڅون به مو ان شاءالله کامیابیږي.

او وروسته له ټوپکیانو سره د جګړې جریان چې رهبري یې مخامخ ده خپله کوله، په لږو نفرو او لږو وسلو به یې د د نظامي اصولو خلاف نـاممکنې جګړې ګټلې. دا هـم د توکل ثمره وه. همدا پر الله تعالی د ده اعتماد او باور و چې تر پایه نه مایوسه شو او نـه یې حوصله له لاسه ورکړه، که نه نو څو ځله طالبان دې تـه اړ شـول، چې نیـولې سیمې بیرته له لاسه ورکړي او شاته تګ به یې وکړ. یو ځل په لومړیـو کلونـو کې د هـرات پـه لور چې د طالبانو د عمومي قومندان په شـمول څـه مشـران شـهیدان شـول، طالبـانو تـر داسې حده شاتګ وکړ، چې حتی دا ویره وه چې طالبان به خپلې ټولې نیولې سیمې لـه لاسه ورکړي. خو ملا صاحب پر الله تعالی ټینګ اعتماد درلـود، حوصله یـې لـه لاسـه ورنکړه او جګړه یې په نوې بڼه خپله رهبري کړه. طالبانو بیرته پـه مقابـل لـوري تعرضي عملیات پیل کړل، ټوپکیان یې پر شا وتمبول، پرمختګ ته یې دوام ورکړ، چې پـه لـږو ورځو کې تر هراته ورسیدل او هرات ولایت یې فتح کړ.

نور هم داسې ډیر واقعات شته چې که ظاهري اسباب وسیله بلل شوي وای، هیڅکله بـه د هغې سیمې د نیولو او جنګ اقـدام نـه وای شـوی. خـو هغـه هـم پـر الله تعـالی د مـلا صاحب د کامل اعتماد نتیجه وه چې ناممکن کارونه به ورته ممکن ښکاریدل.

د اسامه بن لادن په موضوع کې چې د امریکایانو غوښتنو ته تسلیم نـه شـو، هـم یـې دا باور و چې موږ به کامیاب یو. د هغه یـوازې دا کامیـابي نـه وه مـراد چې امریکـا بـه پـه افغانستان حمله ونکړای شي. هغه د ډیرې لویې کامیابۍ په تمه و، ولې کله چې امریکـا پر افغانستان بریـد پیـل کـړ، مـلا صـاحب د بي بي سي راډیـو د یـوه خبریـال سره د پـه

راډیویي مرکه کې د اخطار په ډول خبریال ته وویل چې امریکا بـه اوس نـو د لست د سره څخه د لست پای ته ځي. مطلب يې د نړۍ په کچه د امریکا ماته وه. چې وروسته همداسې وشول. امریکا نه یوازې په افغانستان کې ماته وخوړه، بلکې په ټوله نړۍ کې يې دبدبه او رول کمزوری شو.

او د اسامه بن لادن په نه سپارلو کې يې هم لویه کامیابي بلله. ده به خپله ملګرو تـه ویـل چې د اسامه موضوع تاسو سپکه مه ګڼئ، ځکه امریکا ته د ده لـه سپارلو او نـه سپارلو سره د اسلام لوړوالي او ټیټ والي تړلی دی. مطلب که يې په لاس ورنکړو نـو بـه اسلام لوړ او مسلمانان جرأتمند شي چې دښمن کـه هـر څومره قـوي وي بیا يـې هـم مقابله ممکنه ده.

او بیا د طالبانو د واکمنۍ تـر سقوط وروسته چې تقریبـا د نیمـي نـړۍ باطـل قوتونه د هوايي او زمیني عصري وسلو سره یو ځای پر افغانستان راغلل، په وړاندې يې پـه خالي لاس سره د ملا محمد عمر مجاهد پـه مشـري او لاربشـوونه د جهـاد پیـل چې چا يې خالي تصور هم نه شوای کولای او هم پـه دغـه وخـت کـې پـه افغانستان کـې پـه یـوه محدوده سیمه کې په کلونو د ده مخفي ژوند او په اطمینـان اوسیدل، یوازیـوالی، صبر، حوصله او پر خپل دریځ ثبات دا ټول هغه څه دي چې پـر الله تعـالی د اعـتماد او بـاور پرته يې څوک سر ته نه شي رسولای.

دغه وجه وه چې د هغه څه کارونه د عادت خلاف ښکاریدل. داسې نـه وه چې د هغه سر نه خلاصیدی، هغه په پوره دقت سره خپل کارونه سرته رسول. ولې هغه کـه څـه هم ډیر دلاور او جرأتمند و خو بې پروا نـه و چـې د کـارونو عواقـب ونـه سنجوي. هغه د تکلیفونو او مشکلاتو احساس کاوه، د مجاهدینو په شهادت، زخمیتـوب او شکست به تر نورو زیات خپه کیده. پر څیره به يې له ورایه اثر معلوم و. په خـوب خـوراک او وزن کې يې د تېر په نسبت د پام وړ کموالی راغلی و. یوازې دې خبرې مطمئن کړی و چې ده به ویل په دې لاره کې مو مرګ او ژوند دواړه کامیابي ده.

## د اسلامي امارت قاضي القضاة شيخ الحديث مولوي نور محمد ثاقب صاحب

لوی ملا صاحب عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله تعالی عليه رحمةً واسعةً ډير لوی او درونـد شخصيت ؤ، د هيواد د دوو سترو معرکو او جهادونو اتل، د مجاهدينو سالار، د نړۍ په کچه پیژندل شوی قائد، ستر مفکر، نوميالی روحاني، جهادي، سياسي، اجتماعي او انقلابي شخصيت ؤ او د بنده سره يې تعلق ډير د صميميت، خلوص او اعتماد تعلق ؤ.

راځو دې خبرې ته چې د مرحوم ملا صاحب سره زما اولنۍ کتنه او ملاقات په کندهار کې د چهارشنبې په ورځ د ۱۴۱۵ هـ ق کال د شعبان المعظم په څلورمه نيټه ترسره شو او موږ د پنځلس کسه علماوو وفد وو، جريان داسې و. کله چې په همدې کال ۱۳۷۳ هـ ل کې د طالبانو تحريک راپيل شو او زمونږ ډيرو شاگردانو پکې اساسي او پراخ رول اداء کړاو مونږ يې هم له هماغه پيله ټينگ ملاتړ وکړ او د تحريک د پرمخ بيولو لپاره مو هلې ځلې شروع کړې او په هماغو اوائلو کې د تحريک د مشرتابه لخوا يو خصوصي ليک هم راغلی ؤ د بنده ( مولوي نورمحمد ثاقب ) او مولوي حاجي محمد صادق او مولوي موسی جان په نوم.

مونږ لومړی د طالبانو د تحريک په حمايت کې د چهارشنبې په ورځ د ۱۴۱۵هـ ق کال د رجب المرجب د مياشتې په شپږ ويشتمه(۲۶) په جامعه دارالعلوم حقانيه اکوړه ختک کې غونډه وکړه، په غونډه کې د تحريک په حمايت او ملاتړ کې ډيرې خبرې وشوې او په پای کې د بنده په شمول دولس(۱۲) کسيز هيئت وټاکل شو، چې يوه شورئ جوړه کړي چې د هر ولايت نه پکې درې درې جيد علماء کرام شامل وي.

بيا مونږ پنځه ورځې پس د جلوزو کمپ په مهاجربازار کې پراخه غونډه وکړه، په غونډه کې د تحريک په حمايت کې مفصلې په زړه پورې او هر اړخيزې ويناوې وشوې او په پای کې زما په شمول دولس (۱۲ ) کسيز وفد وټاکل شو چې دوی به د تحريک د مشر ملا محمد عمر مجاهد سره گوري او هم به دغه وفد د کندهار ترخنگ ځينو نورو ولايتونو ته هم ځي، چې په هغه وخت کې د کندهار، ارزگان، زابل

ولایتونه مکمل او د هلمند ولایت د مرکز په شمول ددې ولایت زیاتره برخې د طالبانو په لاس کې وې.

بیا صبا د سه شنبې په ورځ د شعبان المعظم په دریمه نیټه مونږ دغه دولس کسیز وفد،کندهار ته روان شوو، له کویټې څخه درې کسه علماء: مولوي باران آغا، مولوي قاضي نظر محمد او مولوي عبدالمنان هم راسره ملګري شول، نو دغه پنځلس نفري وفد د بولدک له لارې کندهار ته لاړو، چې بولدک ته ور واووښتلو هلته مو وکتل چې تقریباً ټول طالبان زمونږ شاګردان وو، دوی زمونږ راتلو ته ډیر زیات خوشحال شول.

بیا مو د کندهار په ښار کې د طالبانو له مشر ښاغلي مجاهد ملا محمدعمر اخند سره وکتل، چې د ده ملګري مولوي احسان الله احسان، ملا عبدالستار اخند او نور هم حاضر وو، ملا صاحب ډیر د تواضع، تقوی، ترحم، توکل، عمیق فکر، متین عزم، لوړ مورال او قوي شجاعت لرونکی شخصیت راته وبرېښېد، او نورې ډیرې ځانګړتیاوې راته پکې ښکاره شوې.

ملا صاحب ډیرې پخې او په زړه پورې خبرې وکړې، او مونږ له خپل طرفه او د شاته پاتې ټولو علماوو له طرفه د پوره حمایت او په دې لار کې د هر راز هلو ځلو ډاډ او اطمنان ورکړ.

د خاطرې په ډول به یادونه وکړم دلته چې مونږ او ملا صاحب د ماښام ډوډۍ یوځای او په یوه دسترخوان وخوړه هغه ډوډۍ د کورونو څیرې ( وظیفې ) وې او طالبانو ورسره یوځه ساده وریژې پخې کړې وې هغه هم شاید د میلمنو د اکرام په خاطر.

زمونږ او ملا صاحب په دې خبرو کې یوه اهمه خبره دا وشوه، چې دغه علماء دې لاړ شي د هلمند د موسی کلا سیمې ته چې هلته عبد الغفار اخندزاده په مخالفت کې ولاړ دی چې خبرې ورسره وشي ترڅو له مخالفت څخه لاس په سر او د طالبانو ملګرتیا غوره کړي، نو مونږ هلته لاړو ددې کار لپاره، بیا مشر ملا صاحب مجاهد ملا محمد عمر اخند هلته سنګین ته راغلی ؤ هلته مو بیا ورسره وکتل او ناسته او خبرې مو سره وکړې.

وروسته د اسلامي امارت د واکمنۍ په مرحله کې مو له ملا صاحب همیشنی تعلق درلود او ډیرې ښې خاطرې يې شته. یو وخت چې زه په کندهار کې د دارالافتاء رئیس وم او کابل تازه فتح شوی و او په کندهار کې ډیر مسؤلین کابل ته تللي وو او هلته په مختلفو وزارتونو کې په خدمت بوخت وو. د ۱۳۷۵ هـ ش کال د عقرب د میاشتې په (۳۰) مه مې د امیر المؤمنین ملا محمد عمرمجاهد سره ملاقات ؤ، په ملاقات کې امیرالمؤمنین بنده ته وویل: حاجي مولوي صاحب! زه دغه د دارالافتاء کار ډیر اهم بولم، او زه د دارالافتاء څخه بغیر یو قدم هم نشم اخیستی، او په دارالافتاء کې خو به هم په یو چا اعتماد کیږي، نو مونږ غواړو چې ته دلته دارالافتاء کې پاته شې، او مونږ غواړو چې دا مرکزي دارالافتاء نوره هم فعاله کړو، او چې زه چیرته یم هلته به دارالافتاء یعنی ته هم يې، او که بیا کابل ته نقل کیدو هم یوځای به لاړشو، او (وزارتونو او نورو ته په اشارې سره يې) وویل یو کار به داسې وي چې هغه به منصب بلل کیږي خو اهمیت به يې دومره نه وي زه خو فکر کوم چې دا ټول کارونه راغونډ شي دومره اهمیت به يې نه وي لکه د دارالافتاء ځکه د شریعت نفاذ او هم محاکم دې ته ضرورت لري، په آخر کې يې وویل: دا زما خوښه ده نور نو چې ستا څرنګه خوښه وي هغسې به وکړو.

بنده ورته وویل: هُو بالکل همداسې ده زه هم دغه کار ډیر اهم بولم او چې ستا دغسې خوښه ده زما هم خوښه ده، نو امیر المؤمنین ډیر زیات خوشحال شو.

## د ریاسة الوزراء پخواني مرستیال او د رهبري شوری غړی مولوي عبدالکبیر صاحب

دا چې امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله) په کم وخت کې د مبارزې په میدان کې د مخکښ مبارز، د جهاد په میدان کې د اعلی سرقوماندان، د سیاست په عرصه کې د کامیاب سیاست دان، د استدلال او پیشبیني په ډګر کې د بصیرت او فراست د اتل، د طالبانو، مجاهدینو او مسئولینو په اعلی کیفیت روزنه کې د عظیم مرشد او د خیر غوښتني په صحنه کې د مُحسن بشریت په توګه تبارز وکړ، د دغو حیرت انګیزو پرمختګونو، بدلونونو، نوښتونو او کرامتونو تر شا ځینې هغو ځانګړیو مواصفاتو

وجود درلود چې رب العزت یې تر منصور او فاتح گرځولو مخته خپلو خوښو بندگانو ته نصیب کوي.

د ملا صاحب مرحوم له هغو ځانگړو مواصفاتو چې ما د ملگرتیا په مهال په دوی کې لیدلي ځینې یې په لنډه توگه په لاندې ډول دي:

۱ـ امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله) نیک او صالح انسان و، په هېڅ ډول حالاتو کې هم له فتوا او تقوا څخه تېر نه و، له ظلم او حرامو څخه یې په کلکه ډډه کوله، خپل ملگري او امارتي مسئولین یې هم له ظلم او حرامو څخه وېرول او دا توصیه یې ورته کوله چې موږ را پاڅېدلي د ظلم، وحشت او حرامخورۍ په خلاف یو، د دوی تقوا او په دې هکله د دوامداره مراقبت نتیجه دا وه چې امارت او امارتي مسئولینو کې د الله په فضل د امانتدارۍ گراف ډېر لوړ و، چې د اسلامي امارت مخالفین هم په دې هکله په ډاگه اعتراف کوي او هغه د امن او امانتدارۍ یوه نادره دوره بولي.

۲ـ ملا صاحب مرحوم حق پرسته انسان و، د قوم، ژبې، او سمت د پالنې هېڅ ډول آثار په کې نه ښکارېدل، له هر ډول تبعیض او تعصب څخه پاک و، له قوم پرست اشخاصو څخه یې کرکه درلوده او په آسانه یې د ملگري په توگه ځان ته نژدې نه پرېښودل.

۳ـ ملا صاحب مرحوم په لومړي ځل د سړي د معلومولو په هکله ښه توجه کوله، چې کله به له یو چا څخه مطمئن شو نو یې بیا د هغه د بار بار وزن کولو عادت نه درلود او نه په آسانه پرې بې اعتماده کېده، د اعتماد په صورت کې یې د خپل عادت له مخې شخص ته ټول هغه واک او اختیارات ورحواله کول چې د هغه له دندې سره به اصولا مناسب و.

د مثال په توگه: ملا صاحب به چې د ننگرهار په ولایت کې یو څوک مقرر کړ موږ چې هلته د رئیس تنظیمه په حیث مسؤلیت درلود کله به مو چې هغه کس مناسب ونه باله، ملا صاحب سره به مو خبره شریکه کړه ملا صاحب به بېرته خپله خبره یا حکم واخیست چې دا د ښه اعتماد یوه ستره نښه وه.

۴ـ ملا صاحب سره به چې څوک بلد نه و، نو په لومړي ځل يې له دې امله چې خاموشي پرې غالبه وه د هغه د ځيرکتيا او لوړ استعداد کچه نه شواى معلومولى، مګر د بحث او استدلال په مهال بيا سړى ته معلومېده چې هغه د ژورو معلوماتو، ښه بصيرت او لوړ استعداد څښتن دى.

۵ـ ملا صاحب خود خواه انسان نه و، خبرې او دليل ته يې غوږ ايښوده، د قوي استدلال او معقول نظر په نتيجه کې له خپل نظر څخه ډېر په آسانه منصرف کېده، حتى خپله فيصله يې هم ماتوله.

د مثال په توګه: يو ځل ملا صاحب سره د ملاقات لپاره قندهار ته ورغلي وو، له ملاقات نه مخکې د ملا صاحب سکرتر را ته وويل: ملا صاحب په افغانستان کې د يو تحريک د فعاليتونو د بندولو په هکله فرمان امضاء کړى خو تر اوسه صادر شوى نه دى، که تاسو ملا صاحب سره خبره وکړى که دا فرمان او حکم بيرته واخيستل شي ښه به وي، ملا صاحب سره مونږ خبره وکړه د هغه تحريک د بنديدو جانبي نقصانات مو ورته بيان کړل او ورته مو وويل چې د بنديدو په ځاى بايد د اصلاح کوشش يې وشي. ملا صاحب راسره ومنله فرمان يې معطل کړ او مونږ ته يې وويل چې تاسو او څو نور ملګري يې هم راته په ګوته کړل چې په شريکه يوه اصلاحي تګلاره ورته جوړه کړئ او دا يې هم وويل چې بيا يې عملي هم کړئ په تاخچه کې يې مه ږدئ.

**د رهبري شورى غړى شيخ الحديث مولوي عبدالحکيم صاحب**

مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله يو مخلص او باعزمه مجاهد و چې ټولې دنيا ته يې د دين اصلي صورت څرګند کړى و.

مرحوم ملاصاحب يو باکرامته شخص و، يو له کراماتو يې د ټولو مجاهدينو او عامو مسلمانانو په زړونو کې د ده مقبوليت او محبوبيت و. په صحيح حديث شريف کې راغلي دي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللّهم عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَقَالَ إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ قَالَ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ فَيَقُولُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ قَالَ ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ... رواه البخارى:

ابي هريرة رضی الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې الله تعالى له يو چاسره محبت لري نو جبريل عليه السلام راوغواړي او ورته ووايي چې زه له فلان شخص سره محبت لرم ته هم ورسره محبت کوه، نو جبريل ورسره محبت کوي او بيا جبريل اهل السماء ملائکو ته ووايي چې الله تعالى له فلان شخص سره محبت لري تاسو هم ورسره محبت کوئ، بيا ملائکه هم له هغه شخص سره محبت لري تر دې چې وروسته الله تعالى همدغه کس په ځمکه کې هم محبوب وگرځوي.

مرحوم اميرالمؤمنين د ساده مزاج او تواضع خاوند و، متکبر نه و، زموږ کور چې هغه وخت په سنگين کې و زما يو ورور و عبدالحليم نوميده چې مشهور په صوفي و، د مرحوم امير المؤمنين د پخواني جهاد د وخت شناخته و، نو امير المؤمنين صاحب همالته زموږ کور ته راغلی و، ډېر ښه عاجزانه مجلس به يې کاوه او کله به يې مزاح هم کاوه.

مرحوم امير المؤمنين صاحب په اسلامي غيرت سمبال شخص و، هيڅکله يې د اسلام دښمنانو ته تنزل ونه کړ. د ده د اسلامي غيرت په وجه الله تعالى د وفات تر وخته د اسلام د دښمنانو له قبضې څخه محفوظ وساته، سره له دې چې ټول وخت له افغانستان څخه ونه ووت او لکه حضرت عاصم رضی الله عنه چې الله تعالى د مشرکانو د قبضې څخه د مچيو په واسطه وساته الله تعالى د مرحوم امير المؤمنين هم همداسې حفاظت وکړ.

مرحوم امير المؤمنين صاحب د اسلامي قوانينو او احکامو په اجراء کولو کې ډېر قوي عزم درلود، اسلام احکام يې پر خپل ځان، قريبانو او عامو مسلمانانو يو شان جاري کول. الله تعالى دي ټول خدمتونه ترې قبول کړي او الله تعالى دې قبر منور وگرځوي. آمين

## د رهبري شورى غړى شيخ الحديث مولوي محمد شريف حقاني

در سال ۱۴۱۹ هـ ق عدهٔ بشمول من خاکسار ارادهٔ ملاقات امير المؤمنين وقت ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله را داشتند. بمن وظيفه سپردند تا بحضور وی بنمايندگی از

حاضرین مشکلات را بیان کنم. بعد از اینکه مجلس ختم شد، بمن و حاضرین تأثرات مخصوصه رونما گردید. از جمله:

الف: در اطاق بالای کت و توشک فقیریکه لحاف خواب پشت سرش متکا گذاشته بود، بتواضع نشسته بود. عن عابس بن ربیعه قال: قال عمر بن الخطاب رضی الله عنه علی المنبر ایها الناس تواضعوا فانی سمعت رسول الله ﷺ یقول: من تواضع لله رفعه. المعجم الاوسط ۸/۱۷۲.

ب: هرگز بوی احساس تکبر نه می شد و آثار تقوی بچهره اش رونما بود: عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من تواضع لله رفعه الله و من تکبر وضعه الله. المعجم الاوسط ۵/۱۳۹.

ج: سکوت وی غالب بود و تنها بر مقصود لب باز میکرد. قال رسول الله ﷺ: رحم الله من سکت فسلم. مسند الربیع بن حبیب ۱/۲۹۷

د: با حوصله تمام سخن را گوش میکرد. و من حسن الخلق أن یحسن الاستماع کما یحسن الکلام.

ه: کلامش صادق و اراده و عملش قاطع بود و همه چیزیکه به وی مربوط بود اجراء کرد.

این تأثرات در قبال وی تنها ازمن خاکسار نبود بلکه همهٔ مجلس متأثر شدند، و تا کنون افراد حقبین از کردار های مختلف وی متأثر اند.

## د رهبري شورى غړى او د سياسى دفتر مرستيال مولوي عبدالسلام حنفي

نحمده و نصلی علی رسول الکریم و علی آله و صحبه أجمعین و بعد:

د مرحوم امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په باره کې زما تأثر دا دی چې زما شناخت له مرحوم ملاصاحب سره د د تحريک په اول کال د کندهار ښار لـه فتحې وروسته پيدا شو. د ملا صاحب مرحوم په وجود کې ډېر خصوصيات موجود وو. مثلا

د ملا صاحب شجاعت او سخاوت دوه داسې بارز صفتونه وو چې هیڅوک ترې انکار نه شي کولای. که به یو عادي مجاهد هم درخواست ورته وکړ، ملا صاحب مرحوم کوښښ کاوه چې مشکل یې په اساسي ډول یا حد اکثر حل کړي.

د ملاصاحب بل صفت حق پالنه او حقانیت و، که به ملا صاحب ته یو شی معلوم شو چې دا د اسلامي شریعت مطابق عمل دی په ټول توان یې د هغه حمایت کاوه. د ملا صاحب بل صفت چې دی یې ډېر محبوب گرځولی و. هغه د ده مهرباني او له تکبر ځان ساتل و. بې نهایت متواضع او له تکبر او غرور څخه خالي شخصیت و. باید د ملا صاحب دغه خصوصیات د تاریخ په زرینو پاڼو کې ثبت او د همیشه لپاره پاتې شي او باید اسلامي امارت ټول مشران او کشران د ملا صاحب مرحوم په دغو صفاتو خپل ځانونه متصف کړي.

## د هرات پخوانی والي ملا خیر الله خیر خواه صاحب

ملا صاحب څو ډېر ښه خصوصیات درلودل، که یو څوک قائد جوړیږي باید چې دې صفاتو ته ډېر متوجه واوسي. اول دا چې خلوص النیة یې درلود. په هغه وخت کې په افغانستان کې ډېر اختلافات موجود و. حتی د همدې طالبانو او عالمانو په منځ کې یو د اختلافاتو ماحول و. ډیرو خلکو کوښښونه وکړل چې دغه اختلافات او تفرق ختم کړي خو نتیجه یې ورنکړه. خو هر چا ته معلومه ده چې دا د ملا صاحب د اخلاص النیة ثمره وه. بلکې د ملا صاحب د شخصیت د لوړوالي یوه لویه نښه او دلیل همدا دی چې څرنگه دومره خلک پسې روان شول. له مختلفو تنظیمونو او ډلو څخه خلک راووتل او ټول د ملا صاحب تر قیادت لاندې په متحد صف کې سره ملگري شول.

بله دا چې په ملا صاحب کې د قومیت پاللو ماده بالکل نه وه، یعني تر پایه په دې کې داسې شی احساس نه شو چې څوک ووایي چې ده قومیت پاللی وي او دا یو لوی درس دی د هر چا لپاره چې باید له دې څخه ځان وساتي.

بل دا و چې د ملگرو تر منځ یې فرق نه کاوه، هر ملگري ته په خپل ځای په قدر او اهمیت قائل و. ملا صاحب په ملگرو واکمني هم درلوده او ورسره یې بې تکلفه چلند

کاوه کله به یې له ملګرو سره ښه خوشطبعي هم کوله، خصوصاً ما به ورسره همیشه مخامخ یا په مخابره کې په ډېر خوشطبعۍ مجلس کاوه.

خو په ځینو اصولي مسائلو کې به که چا اعتراض یا انتقاد درلود ملا صاحب په پوره وضاحت اوریده. یو وخت کې زه په هرات کې وم. د سپین بولدک د خلکو څه شکایتونه را ته ورسیدل. بیا ما تونده او له اعتراضونو ډک خط ولیکه او د طیب اغا په لاس مې ملا صاحب ته ولیږه. بیا ملا صاحب ملا محمد یونس آخند پسې رالیږلی و چې ده ته ووایه دلته راشه. بیا چې زه ورغلم، هلته متوکل صاحب هم ناست و. ملا صاحب وویل هغه خط تا رالیږلی و. ما ورته وویل: هو. ده راته وویل په دې خط خو به له ما سره محکمې ته ځې. ما ورته وویل: سمه ده پروا نشته. چې محکمې ته لاړ شو هم همدا ټول شیان درته وایم چې دا پېښ شوي دي. بیا مې د انتقادونو په تفصیل شروع ورته وکړه او هر یو مې بیان کړ. ملا صاحب په ډېره حوصله او زغم سره زما انتقادونه واوریدل. او بیا یې وویل دا څه دې چې وویل دا رښتیا دي. خو دا چې ما دا ځیني کارونه نه دي کړې په هغه کې دا حکمت و. بیا یې خپل دلائل وویل. یو ځای د دوو ولسوالیو تر منځ ځمکه ویشل شوې وه خو په نقشه کار نه و شوی. ما چې دا خبره په تفصیل بیان کړه، ده ومنله او سمدستي یې قضایای امارت ته مکتوب ولیکه چې هلته نقشه عملي کړي. نو ملا صاحب دا مزاج درلود چې هر څومره تونده انتقاد یې هم زغملی شوای او چې کله به وضاحت ورته وشو بیا یې جدي اقدام کاوه او پخپله یې موضوع تعقیبوله.

## د رهبري شورى غړی او د دعوت او ارشاد کمیسیون مشر مولوي امیرخان متقي

دا یو واقعیت دی چې ستر شخصیتونه الله تعالی د خپل فضل او کرم له مخې د لوړ ظرفیت، عمده خویونو او د عزت، نصرت، کرامت او فتحې له اسبابو څخه برخمن کړي وي

مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله) سره چې زما څومره تعلق و او د هغه کړه وړه مې له نږدې لیدلي نو څو داسي ځانګړتیاوي مې په مرحوم ملا صاحب

کي ليدلي چي د راتلونکو نسلونو لپاره د مبارزې يوه ښه تګلاره تري جوړيداى شي د مثال په ډول:

۱ ــ ملا صاحب (رحمه الله) تر ډيرو خبرو ډېر عمل ته ترجيح ورکوله يعني قَوَّال نه بلکې فعال و، خبرې يې کمې مګر عمل يې زيات و.

۲ ــ د کار او عملي ميدان سړي يې خوښېدل او د کار سړي ته يې توجه کوله هغه که به هر څوک و او که به د کار ډېر سړي په يوه سيمه، ولايت، ولسوالي يا قوم کي په نظر ورغلل نو هم يې د مسئوليتونو په ور سپارلو کي دا پروا نه کوله چي بيا به د نورو سيمو خلک پري ګيله وکړي.

۳ ــ چي په چا کي به يې د باطني خبث او ظاهري خيانت نښي وليدې بيا يې هغه کس مخې ته نه دى پري ايښى که به هرڅومره لوړ او معتبرهم و.

۴ ــ له قوم پرستي نه يې سخته کرکه درلوده او چي چا بـه د قـوم پرستي مـزاج درلـود د کار اهل يې نه ګاڼه.

۵ ــ د خپل ځان د آسايش راحت طلبي، او د خپلوانو د واکمنولو فکر يې نه درلود.

۶ ــ په عملي کړو وړو او داسي خبرو چي الفاظ پراني نه بلکي د زړه له تله به يې کولې په ملګرو او پيروانو کي د تزکيې او پاک سياست او خدمت فکر پيدا کاوه.

۷ ــ د سختي او فشار په وخت کي تر رعب او ويرې لاندي نه راتـه، د هيڅ ډول زور، زر او تزوير په مقابل کې يې دريغ نه بدلاوه.

۸ ــ د مجاهدينو له حاله يې ځان با خبره ساته حتى د شپي به يې هم تر ناوختـه مخابره چالانه ساتله.

۹ ــ د پوخ يقين او ټينګ عزم څښتن و، فوق العاده توکل يې در لود، له وهم او تذبذب نه خلاص و.

۱۰ ـ له خپلو ملګرو او عامو مسئولینو سره یې داسې برخورد کاوه چې هریوه به داسې فکر کاوه چې زه ډېر ور نږدې یم خو په عین حال کې یې دا فکر هم در لود چې که غلط پل کیږدم نو حتما به توبیخ او تهدید شم.

## د رهبرۍ شورى غړى قاري دين محمد حنيف

وقتیکه تحریک اسلامي طالبان آغاز و مطبوعاتی گردید همزمان طلاب مدارس دینی، جوق در جوق به این کاروان پیوستند. هر یک از سنگر برمیگشت پیام مثبتی بر دیگران داشتند که باعث تشویق همگان شده و با سرعت تحریک اسلامی طالبان افغان شمول گردید.

در آن وقت، طلبای اکثر ولایات کشور تحت عنوان جمیعت طلبه اهل سنت والجماعة نظم و انسجام نیز داشت.

همان بود که در ماه حوت همان سال بعد از فتح ولایت خوست،مایان (طلباءبدخشان) باتشکیل ۱۱۷ نفری عازم ولایت مذکور شدیم که از جمله شش و یا هفت نفر آن به اساس فیصله شورای ولایت بصفت (وفد) وظیفه داشتیم با محترم ملا محمد عمر (مجاهد) و دیگر افراد کلیدی تحریک اسلامی دیدار نمائیم تا از اهداف این جریان با خبر باشیم.

در قندهار اول با حاجی ملا محمد حسن آخند که در ابتدأ والی قندهار بود، ملاقات داشتیم. مجلس با ایشان تفصیلی و اطمنان بخش بود و فردای آن روز در مقر ولایت به زیارت محترم جناب ملا محمد عمر (مجاهد) شرف یاب گردیدیم. جالب اینکه نه تفتیش و بازجوی و نه حاجب و دربان وجود داشت. وقتیکه داخل اطاق دفتر شدیم همه با شمول ملا صاحب خاموش نشسته، شبیه مراقبت های أهل تصوف را داشت. و این در حالی بود که دو روز قبل طالبان کنترول چارآسیاب و نواحی کابل را از دست داده بودند و اولین باری بود که عقب نشینی چند کلومتری را تجربه میکردند. بعد از مصافحه و تعارف ملاصاحب صحبت مختصر فرمود.

بهر صورت در طول مدت زمان تحریک و حاکمیت پنج ساله امارت اسلامی که اول بصفت وزیر پلان و بعدا وزیر تحصیلات عالی ایفای وظیفه نمودم ملاقاتهای و دیدار های متعدد که با محترم ملا صاحب داشتم، چندین صفات را در ایشان مشاهده نمودم که قرار ذیل است:

زندگی فقیرانه

یقینا در دنیای معاصر زعماء و رهبران سیاسی زندگی مرفه، پرهزینه و صفره رنگین دارند مگر صفره ملا محمد عمر (مجاهد) بحدی کمرنگ بود که اکثر اوقات سبزی، بامیه و یا کچالو با نوشابه دوغ دیده میشد. کسانیکه باایشان شناخت قبلی نمیداشت درمیان انبوه نفر برایش مشکل بود که از سر وضع ساده و عادی که داشت، آنرا از دیگران تفکیک و شناسای کند. این بود زندگی ساده و فقیرانه آن.

انتقاد پذیری هر گاه شکایت و یا انتقاد دلیل موجه میداشت ملا صاحب آنرا با جبین کشاده میپذیرفت. چنانچه در دو مورد جداگانه شکایت و انتقاداتیکه داشتیم یکی آنرا طور نمونه قابل ذکر میدانم که ازین قرار است. روز های اول فتح کابل کم کم بی نظمی و خودسری از اینجا و آنجا سر بلند کرد و نیز وجود بعض از چهره های مشکوک الحال در بعض از ادرات دولتی که چنین حالات با اهداف تحریک سازگاری نداشت و باعث دلسردی طلباء گردید. فیصله بر آن شد، شکایات و انتقادات اصلاحی را طور مستند جمع آوری نموده با محترم ملا صاحب از نزدیک شریک سازیم تا ادای مسئولیت کرده باشیم. همین بود که ۱۳ مورد شکایات تهیه و ترتیب دادیم. همین بودکه چند نفر باهم یکجا شده موضوعات جمع آوری شده را از نزدیک با ملا صاحب شریک ساختیم. در ابتدا مجلس ملاصاحب نسبتا لحن تند داشت مگر با ارائه دلیل لهجه اش تغیر کرده نرم شد. در نتیجه بعض ازین موارد را پذیرفت و وعده اجراأت را داد و در بعض دیگری ما را قناعت داد که مجلس با قناعت و رضایت طرفین پایان یافت.

جدیت در کار و مدیریت:

مسلما در شرائط جنگی تطبیق قانون بالای افراد زورمند، تأمین أمنیت و آوردن نظم، کار سهل نیست. گذشته را بیاد داریم که بعض از قوماندانان جنگی وابسته به تنظیم های جهادی سابق خودسری و بی بندوباریهای داشتند که عام مردم رابستوه آوردند. و سران تنظیم های جهادی نتوانستند و یا بنا بر مجبوریت جنگی و یا مصلحت های دیگری که داشتند نخواستند آنها را مهار کنند. همین بود که باعث نفرت و انزجار مردم گردیده، در نتیجه همه ازایشان فاصله گرفتند. در صف امارت اسلامی نیز گاه گاهی افرادی سر بلند میکرد که حرکت های آزار و اذیت کننده داشتند. مگر بر خلاف دیگران ملا محمد عمر (مجاهد) با قاطعیت که داشت بهمچو افراد زیاد وقت نمیداد، هر گاه شکایات مردم بالا میشد فی الحال دست بکار شده کلا و یا قسما آنها را مهار مینمود.

همچنان دقت و احتیاط در تصامیم، همت عالی و عزت النفس و سخاوت و جوانمردی از برجسته ترین صفات مرحوم ملا صاحب بود که بهمه آشکار است.

**د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال لوی درستیز ملا محمد فاضل مظلوم صاحب تأثرات**

کله چې طالبان په لومړیو کې راپورته شول، په مدارسو کې د امارت سره د طالبانو د یوځای کیدلو اړوند غونډې کیدلې، ما دغه وخت سبقونه ویل، خبر شوم چې د طالبانو تحریک راپورته شوی، هلته د حرکت انقلاب اسلامي تنظیم مدرسه وه، چې لویه غونډه په کې جوړه شوې وه، زیات طالبان راټول شوي وو موږ هم ورغلي وو، په هغه غونډه کې علماؤ تقریرونه وکړل او له تحریک سره د وصل کیدو خبرې یې وکړې.

موږ له هغې مدرسې څلورسوه طالبان راغلو بولدک ته د ماسپښین لمونځ مو په ویش کې وکړ، وروسته له هغه ځایه تخته پول او بیا کندهار ته راغلو. هغه مهال لار ټوله د هغه وخت د شر او فساد د ټوپکیانو تر لاس لاندې وه. کله چې د طالبانو تر واک لاندې سیمې ته راورسیدو، هلته یو کوچنی مسجد و په همدې مسجد کې مرحوم

امیرالمؤمنین، ملا بورجان اخند، ملا محمد اخند او یو څه نور ملګري راټول شوي وو، همدا مو له مرحوم امیرالمؤمنین سره لومړۍ لیدنه وه او له همدغه ځایه له دې سپیڅلي تحریک سره یو ځای شوم.

له مرحوم امیرالمؤمنین سره تر لومړۍ لیدنې وروسته په همدغه ځای کې ټولی ټولی طالبان راټول شول او له یو مشر سره به په ډلګۍ کې یوځای کیدل، مونږ څو طالبان هم د مرحوم امیرالمؤمنین د جهاد د وخت د ډلګۍ له ملګري قاري عبدالسلام صاحب سره چې د میوند ولسوالۍ د کشک نخود اوسېدونکی و یو ځای شوو. دغه مهال د د پاشمول په سیمه کې د صالح په نوم قومندان باندې جنګ شوی و، ښار د ګل اغا او ملا نقیب په لاس کې و. موږ به همدلته په مسجد کې وو. یوه ورځ ماسپښین مهال ملاصاحب راغی، طالبانو ته یې څه خبرې او نصیحت وکړ، له طالبانو یې غوښتنه وکړه چې ترپایه له تحریک سره یو ځای پاته شي ویې ویل چې: په نیمایي کې مو ملا راماته نکړئ او د نیمې لارې ملګرتیا راسره مه کوئ.

مرحوم ملاصاحب دغه مهال له ډلګیو یو شمیر طالبان راټولول، زمونږ په ډلګۍ کې ۳۰ تر ۳۵ پورې ملګري وو له هغو یې ۶ کسه انتخاب کړل چې زه او قاري عبدالسلام صاحب هم پکې وو.

هغه مهال به ملا صاحب په سپین بایفور موټر کې ګرځېده او له ملګرو سره یې ۲ ثقیلان هم وو چې د کندهار حاجي بشر ورکړي وو، زما له ثقیل سره ډیر شوق و او له ملاصاحب نه مې غوښتنه وکړه، ملا صاحب راته وویل : طالبه! چې پیدا یې کړم د یو پر ځای به دوه درکړم.

موږ ته پر دغه ځای ملاصاحب څه خبرې وکړې، داسې معلومیده لکه پر کوم ځای چې عملیات وي خو د جګړې یادونه یې ونکړه، البته مونږ یې له خبرو وفهموله چې څه اراده لري، خو تر هغه وروسته حاجی ملا محمد اخند په خپلو خبرو کې د پروګرام یادونه وکړه او څو سپارښتنې یې وکړې.

د پروګرام عمومي مشـر حـاجي مـلا محمـد اخنـد ټاکـل شـوی و، دوه لـوی مـوټر يـې راوستي وو، د يوې موټر مشـر ملا عبدالخالق اخند و او د بلې ملا محمد اخند و ، خـو د جګړې او پروګرام د ځای يادونه يې بيا هم ونکړه.

په دې لويو موټر کـې طالبـان سپاره شـول مـوټر لـه دغـه ځايـه روان شـول بولـدک تـه نارسيده مو د ماسپښين لمونځونه وکـړل او همدلتـه يـې راتـه ښکاره کـړه چـې مـونږ پـر بولدک حمله کوو.

د حملې لپاره د ملا عبدالخالق د موټر ملګرو ته د محکمې پرسيمه د اخترجان پـر اطـاق د حملې پلان ورکړل شو او زمونږ د موټر ملګرو ته د غلام محمد پر قرارګاه د بريد پـلان راکړل شو.د جګړې سيمې ته مازديګر مهال ورسيدلو ، د ملا عبـدالخالق دوی مـوټر پـر ځنځير ورته ودريدله او مونږ پر قرارګـاه جګـړه پيـل کـړه،لږ ساعت وروسـته مـو دغـه ځايونه له مهماتو او اسلحو سره ونيول.

يوه يادونه ضروري بولم هغه دا چې ملا صاحب مرحوم او حاجي ملا محمد اخند هغـه مهال نه غوښتل چې دغه ټوپکيان مړه کړي، يوازې يـې غوښـتل چـې سيمه تـرې پاکـه کړي. مونږ ته يې سپارښتنه کوله چې که په جګړه کې ورسره ښکيل شوئ نو په پښـو يـې ولئ.

دوهمه ورځ دغې سيمې ته ملا صاحب او ملا بورجان اخند هم راغلل، زه پرې تير شـوم يو کلاشينکوف او يو ثقيل راسره وو، ملا صاحب مرحوم رابانـدې غږ کـړ: طالبـه ثقيـل دې لکه چې پيدا کړی؟ ما ورته و ويل : هـو کـې!ثقيـل مې پيـدا کـړ.هغـه رانـه د پټـو پوښتنه وکړه، چونکې زما پټو د راتګ پر مهال له موټر ځخه لويـدلی وو مـا ورتـه وويـل چې هغه په لاره کې له موټره رانه ولويـده، بيـا يـې قـاري عبدالسلام صـاحب تـه پيسـې ورکړلې چې پټو ورته رانيسه، دا د ملا صاحب يو شـفقت و چـې د عـادي طالـب د پټـو غم يې هم پخپله کاوه، نور ملاصاحب او ملا بورجان اخند لاړل.

مونږ څو ورځې همدلته تيرې کړې،وروسته د کندهار جګړه پيښـه شـوه او کنـدهار ښـار مکمل فتحه شو. له هماغه وخته مو د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهـد تـر مشـرۍ

لاندې په اسلامي امارت کې خدمت پیل کړ، چې وروسته مختلف مسؤلیتونه راوسپارل شول.

د مرحوم ملا صاحب د وضعیت په اړه به دومره و وایم چې هغه لکه د رسول (صلی الله علیه وسلم ) د زماني غوندې هر مشر او کشر سره یې داسې اړیکه وه چې هر چا به دا ویل چې له ما زیات څوک نه دی پر گران، ملا صاحب د یو باتدبیره نظامي مسئول په څیر هره شیبه له مختلفو لارو د جگړې لیکې څارلې، د بریا او ملگرو د ساتنې پوره پوره هڅه به یې کوله.

همداراز د ملا صاحب په اړه به د یوې خاطرې په توگه و وایم چې یو مهال زه د جبل سراج پل متیک په سیمه کې وم، مشر ملا صاحب کابل ته راغلی و، دا مهال چا زما د مشکلاتو او زیات مصروفیت اړوند ورته ویلي و. زما په غالب گمان چې قومندان صاحب انور ډنگر ورته ویلي و. بیا ملا صاحب راغی د ستړیاوو او تکلیفونو په مناسبت یې پوښتنه وکړه ، او له هر مسئول سره یې جلا جلا ولیدل او د هر چا غږ یې واورېد او د مجاهدینو له مشکلاتو یې په خپله ځان خبر کړ.

مرحوم امیرالمؤمنین هر چا ته د هغه د وړتیا په مناسبت مسئولیت سپاره، هغه ته هیڅ رنگ واسطه یا نور کوم مناسبتونه ملحوظ نه ول، یوازې او یوازې د هغه کس وړتیا ته به یې کتل هغه که به بیا هر څوک و وظیفه به یې ورکوله.

یوه ورځ لویه شوری وه ، هغه رحمه الله وویل : زه به له یو مسلمان سره هم بې وفایي ونکړم، که پوه شم چې یو مسلمان په بل ملک کې دی خو هغه تر تاسو د شریعت زیات پابند وي، زه به تر تاسو له هغه سره زیات محبت ولرم او هغه ته به زیات اهمیت ورکړم، زمونږ او ستاسو تر مابین فقط اسلام ملحوظ دی. ملا صاحب ماده پرست او د قدرت جاه او مرتبې شوقي نه و.

د امارت د سقوط په وروستیو ورځو کې یوه ورځ کله چې د امریکا نړیوال تجارتي سنټر باندې برید شوی وو زه، ملا برادر اخند، ملاعبدالحق وثیق او یو شمیر ملگري ننگرهار ته لاړو بیا د مولوي جلال الدین حقاني صاحب لیدلو لپاره خوست ته ورغلو

چې شهيد نصيرالدين حقاني او غالبا سراج الدين حقاني صاحب مو هم وليدل او زموږ بې ډېر دروند استقبال وکړ، هلته مو له حقاني صاحب سره د راتلونکي جهاد اړوند ښې او ګټورې سلا مشورې وکړې. وروسته کندهار ته راوګرځيدو. په کندهار کې زه او ملا برادر اخند مشر ملا صاحب ته ورغلو، بيا يو ځای ته له هغه سره په موټر کې روان وو چې هغه مرحوم په لاره کې يوه پيشګويي وکړه ؛هغه وويل چې: ځينو خلکو د طالبانو د اسلامي نظام ناشکري وکړه خدای جل جلاله به يې ترې واخلي، خو يو څه مشکلات او تکليفونه به راځي البته بيا به د هغو تکاليفو به بدل کې الله جل جلاله اسلامي نظام راکوي او اسلامي نظام به را اعاده کيږي.

د مشر ملا صاحب په اړه به دومره وو وايم چې اکثر وخت د نظامي عملياتو لپاره پلان او تشکيل ملا صاحب ټاکلو او اکثر وخت به کامياب و، ډېر کم به داسې و چې بريا به مو نصيب نه شوه هغه هم د ساحې د نابلدتيا له امله به يې داسې پريکړه کړې وه.

همدا راز يوه ورځ مونږ له کابله کندهار ته راغلي وو د شمال د جګړې لپاره چې تشکيل هغه ورځ هم د ملا صاحب له لورې مونږ ته راکړل شو دوه تشکيله وو، يو د زاړه سرک له خوا دوهم د کوه صافي له لورې چې د کوه صافي له لوري ملا عبدالقيوم ذاکر صاحب مشر و او له دا دوهم لوري زه وم.

يوه يادونه بايد وکړم چې ملا صاحب کله داسې ټاکل کول چې يو کشر به يې په لوړو مسئولينو مشر ټاکلو خو چا به يې هم مخالفت نه کولو، لکه په همدغه جګړه کې د رئيس الوزراء معاون مولوي عبدالکبير صاحب د يوې قطعې د مسئول چې محترم ذاکر صاحب و تر امر لاندې راتلو خو هغه يې په تمامه معنی اطاعت کاوه.

هغه ډېر متقي انسان و، پر خلکو زړه سواندی، مشفق او رحم کوونکی انسان و، ماده پرست نه و او قوم پرست هم نه و. موږ ته به يې تل د ولس د حفاظت او له هغوی سره د ښې رويې امر کاوه او همدا به يې له موږ غوښتنه وه.

د هغه د وفادارۍ په اړه به دومره ووایم چې په خپل نظام کې یې تر بل هر څه زخمیانو او د شهیدانو کورنۍ ته زیاته توجه وه هغه مهال به که په یو عادي زخمي لکونه مصرف راتلو نو منع به یې نه کول او هغه به یې ضرور ورکول.

د مشر ملا صاحب د جګړې د کربښې له مخالفینو سره د ښه چلند او تعامل په اړه به زما د سترګو لیدلې کیسه درته وکړم، په وریښمین تنګۍ کې د مخالفینو یو زخمي طالبانو راخیستی و په هغه باندې ډیر زیات مصرف راغی خو بیا هم ملا صاحب هغه مصرف ورکړ او د یاد مخالف کس تداوي یې وکړه.

ملا صاحب عادي بې تکلفه ژوند درلود، هغه به کله له موږ سره په خپل پټو (څادر) ناست و کله په عادي کټ او کله به بیا په ځمکه په سپیرو خاورو راسره کښیناست. د هغه یو ساده دفتر و هغه داسې نه انګیرل کیدله چې یو مشر یا یو واکمن دی بلکې د عادي خلکو په څیر بلکې لا له هغوی یې هم عادي ژوند درلودلو.

هغه ویل کفار ماته هر څه راکوي که زه د دوی په خوښه ژوند وکړم او مادیاتو ته وګورم زموږ دغه نظام به هم وي واک او قدرت به مو هم وي خو اخرت کې به مو بیا دا شیان په ګټه نه وي. زه پوهیږم چې زموږ نظام به ړنګیږي خو د اسلام ښکته والی نشم منلی موږ باید دین ته وفادار اوسو.

ډیر کله به چې د نظامیانو له لوړي کوم مسئول یا طالب خپه شو هغه به ملا صاحب خپله خوشاله کاوه هغه نه سمتي، نه ژبني، او نه قومي توپیر کولو، هغه ته تر ښې مسلماني او تقوا پرته بل هیڅ نه شی مهم او مطرح نه و. الله تعالی دې رحم پر وکړي.

## د رهبرۍ شورى غړي ملا عبدالقیوم ذاکر صاحب

مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په اصولي موضوعات کې ټینګ خو په نورو چارو کې د نرم دریځ خاوند و، کله کله هغه څوک چې امیرالمؤمنین یې سم نه وي پیژندلی، وایي چې هغه سخت دریځه وو، او پر خپله خبره به په هر حالت کې ټینګ ولاړ و. خو خبره داسې نه وه، بلکه امیرالمؤمنین په دیني، اسلامي اومذهبي چارو کې (لکه د شیخ اسامه موضوع)، پر دریځ ټینګ او ترخبره نه تیریده، په نورو خبرو

کې ډېر نرم متواضع، قانع، او هر ډول خبره او عذر منونکی و. یو وخت د تخار پر خواجه غار باندې جګړه وه، زه ور روان وم، پر لاره مې موټر په ماین کې وخوت، یوه پښه مې ماته شوه، کابل ته یې را انتقال او په ۴۰۰ بستریز روغتون کې تر درملنې لاندې وم، د اسلامي امارت دفاع وزیر حاجي ملا عبیدالله آخند راغی او راته ویې ویل چې امیرالمؤمنین وایي چې په کندز کې قول اردو جوړوو، ته به د هغې د جوړیدو چارې سمبال او مصارف به یې چې لوی مقدار پیسې کیدلې ورکوې او ستا پر لاس به دا کار کیږي، ما ورته وویل چې زه دا کار نه شم کولای، او همداراز مې د قول اردو له جوړولو سره مخالفت وکړ، حاجي ملا عبیدالله آخند امیرالمؤمنین ته دا خبره کړې او هغه ورسره قناعت کړی و. بیا هغه قول اردو جوړه نه شوه. همداراز یې څو ځله د لویو منصبونو د مسؤلیت منلو لپاره پر ما باندې ټینګار کړی، ما ورسره نه دی منلی، قناعت مې ورکړی او هغه زما خبره راسره منلې ده. امیرالمؤمنین د لوړو اخلاقو، عزت او شرافت څښتن و، ډېر دروند شخصیت یې و، اسلامي امارت او افغانستان یې داسې رهبري کړ چې د هغه ساری نه و، او نه به وروسته راشي. پر عالیقدر امیرالمؤمنین رحمة الله علیه باندې داسلامي امارت مسؤلین دومره ګران وو او دومره محبت یې ورسره درلود لکه خپل ګران پلار چې له خپلو ګرانو اولادونو سره مینه لري. لوی الله دې له امیرالمؤمنین څخه راضي اوهغه ته دې اعلی جنت ورکړي. آمین

## په سعودي کې داسلامي امارت پخوانی سفیر شیخ الحدیث مولوي شهاب الدین دلاور صاحب

د طالبانو اسلامي تحریک له شروع نه مخکې ما په پیښور کې مدرسه درلوده، اته سوه شاوخوا طالبان راسره وو. کله چې د مرحوم ملا صاحب لخوا تحریک شروع شو او موږ ته یې حقیقت معلوم شو چې دا واقعا اسلامي تحریک دی او فساد له منځه وړي نو موږ یې کلک ملاتړ وکړ. اولنی مدرسه په پیښور کې زما وه چې بنده شوه. ټول طالبان په تحریک کې د شمولیت لپاره کندهار ته لاړل. زما په هغو شاګردانو کې ډیرو یې وروسته په اسلامي امارت کې لوی لوی خدمتونه وکړل. لکه شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور صاحب، د هلمند والي شهید ملا عبدالمنان صاحب او داسې

نور مشران مسؤلین. کله چې تحریک پیل شو نو موږ د مدارسو علماوو هلته لویه جلسه وکړه له اسلامي تحریک څخه مو ملاتړ اعلان کړ او بیا موږ د علماء کرامو څو کسیز هیئت کندهار ته لاړو. هلته مو د اول ځل لپاره د اسلامي امارت مؤسس ملا محمد عمر مجاهد ولید. په لومړني ملاقات کې موږ ته معلومه شوه. موږ چې د نوموړي د تواضع او فقیرۍ کوم تصور کړی و تر هغه زیات متواضع او حلیم شخص و.

د ده له ټول وضعیت څخه معلومیده چې د دین درد ورسره دی او صرف د الله تعالی د رضا او دین د لوړتیا لپاره راپورته شوی دی. ملا صاحب د پاټکونو او ګډوډۍ د وخت کیسه وکړه. چې څرنګه او ولې یې دا قیام وکړ او د طالبانو دا تحریک څنګه تر دې ځایه راورسېد؟ ده وویل: موږ قصد کړی که یوه لویشت ځمکه هم نیسو په هغه به د الله تعالی نظام حاکموو او شریعت به نافذوو. په هماغه لومړني ملاقات کې چې ده کومه خبره کړې و د مرګ تر وخته په هغه قائم پاته شو. ملا صاحب ډېرې خبرې نه کولې، مختصر بیان یې وکړ. بیا نورو علماء کرامو خبرې وکړې. ملا صاحب ته یې توصیې وکړې چې د پخوانیو رهبرانو او پروفیسرانو له برخلیک څخه باید عبرت واخیستل شي. ځکه اوس د ملت سترګې ستاسو خوا ته دي.

په دې ډول موږ د دې کاروان ملګري شوو او بیا مو په اسلامي امارت کې مختلف خدمتونه وکړل، په اولو کلونو کې درې نیم کاله زه په کندهار کې په تمیز ریاست کې وم. ورسره مې په جهادي مدرسه کې تدریس هم کاوه. هلته مو له ملا صاحب سره تګ راتګ او لیدل ډېر و.

د ملاصاحب دروازه د هر مظلوم پرمخ خلاصه وه، د ملاصاحب مرحوم پیغام او نصیحت به همیشه په مختصرو ټکو کې و، دا به یې ویل چې تاسو به همیشه د اسلام او دې مظلوم ملت لپاره کار کوئ، دین او مسلمان ملت په تاسو حق لري. له دنیوي اغراضو به ځانونه پاک ساتئ. ده به علماء کرامو ته دا خبره هم کوله چې تاسو علماء یاست او زه طالب یم، زما رهنمایي به کوئ. د قیامت په ورځ به زما لاس او ستاسو ګریوان وي.

ملا صاحب ډېر صفتونه درلودل، هغه په یوه دینداره او د عالمانو کورنۍ کې پیدا شوی و. نو طبعا دینداره و. خو زما لپاره یې یو صفت چې ډېر جالب و هغه دا چې دی یتیم پاته شوی و او ټول عمر یې د غربت زندگي کړې وه. دا قسم خلک طبعا په مالي امورو کې سخت وي. خو ملا صاحب یو عجیب سخاوت درلود. زه به یو مثال درته ووایم. کله چې زه به اسلام اباد کې سفیر وم نو هلته یو زخمي مجاهد راغلی و د روزگان ولایت و نوم یې ولي جان اغا و. د ده په سینه کې مرمۍ بنده و او ایستل یې دلته ممکن نه و. خو په خارج کې یې د علاج امکان و. نو موږ د جرمني له سفارت سره ولیدل، تر څو که ممکنه وي په جرمني کې یې علاج وشي. د جرمني سفارت د ده معاینات او ریپوټ جرمني ته ولیږه او دوه هفتې بعد ځواب راغی چې هلته په کوم روغتون کې یې علاج ممکن دی خو اول به پنځوس زره ډالر د روغتون په اکاونټ کې جمع کوئ. نو دا پنځوس زره ډالر هغه وخت ډېر شی و او امارت ډېر مالي مشکلات هم درلودل.

نو ما ملا صاحب ته ټیلفون وکړ چې دلته یو زخمي طالب راغلی دی او په سینه کې یې مرمۍ بنده ده چې علاج یې په جرمني کې ممکن دی. خو شرط یې دا دی چې تر مخ پنځوس زره ډالر غواړي. ملا صاحب بې له تأمل څخه راته وویل چې له تاسره د سفارت په خزانه کې پنځوس زره ډالر شته؟ ما ورته وویل هو شته راسره. ده وویل بس هسې یې ورکړه چې د دې مجاهد علاج وشي.

نو بیا هغه طالب جرمني ته لاړ، هغه عملیات یې کامیاب شول، بیا مې په کندهار کې ولید چې روغ جوړ شوی و او ډېر چاغ شوی و نو دا د ملا صاحب د ترحم او سخاوت یوه بیلگه وه چې په لاس کې به یې یو شی و له چا څخه یې نه دریغ کاوه.

## د رهبري شورى غړی ملا نور الله نوري صاحب

ملا صاحب څو صفتونه زما لپاره ډېر جالب و چې غواړم دلته یې یادونه وکړم

- ملا صاحب له هر چا سره ډېر اخلاص درلود. یو طالب یا مجاهد به د افغانستان د ډېرې لرې سیمې و، په ټول عمر به یې لیدلی نه و، په ژبه، قوم او هیڅ به ورگډ نه و. خو

ملا صاحب به د مسلماني په خاطر داسې اخلاص ورسره درلود لکه تر ټولو نږدې ملګری.

ـ دوهم د ملا صاحب شفقت و. په هر چا خصوصا په مجاهدینو یې ډېر زیات شفقت درلود. زه یوه واقعه به درته ذکر کړم. موږ په لغمان کې و نو زموږ یو ملګری و چې په جهاد کې معیوب شوی و. د حج ورځې وې دې ملګري ماته وویل چې ته ملا صاحب ته پیشنهاد وکړه چې یو معیوب ملګری د حج خواهش لري ګوندې د حج امر راکړي. ما ملا صاحب ته په مخابره کې دا خبره وکړه. ملا صاحب هم دستي راسره ومنله چې راویې لیږه. دلته یو بل مجاهد چې د پخواني جهاد په وخت کې یې پښه پرې شوې وه، د هغه هم شوق پیدا شو او په ډېر اصرار یې وویل چې زما عریضه هم ورته وکړه. زه اول زړه نا زړه وم چې ملا صاحب به وایي چې که ستا ټولو ملګرو د حج غوښتنه کوله زه به ټول لیږم. خو بیا مې زړه وکړ او ملا صاحب ته مې بیا مخابره وکړه د دې دوهم ملګري خواهش مې ورته بیان کړي. ملا صاحب پرته له ځنډه وویل: بس راویې لیږه او په دې سره د دواړه مجاهدینو د حج ارمان پوره شو.

دغه رقم یې په زخمیانو او معیوبینو سخت ډېر شفقت درلود، که ووایم نیم امارت یې پرې مصرفاوه، زما دوه ملګري ټپیان شوي وو، په افغانستان او پاکستان کې یې علاج ونه شو، بیا ملا صاحب د امارت په هغه غریب حال کې جرمني ته د علاج لپاره واستول. تر څو که علاج یې وشي او الله تعالی شفاء ورکړي.

ـ ملا صاحب عامو مسلمانانو، غریبانو او په خاص ډول علماء کرامو ته ډېر درناوی درلود. د عامو خلکو د شکایت اوریدلو لپاره یې با صلاحیته هیئت ټاکلی و چې په ولایاتو به ګرځیده او د خلکو شکایتونه به یې اوریدل. دیني علماوو ته یې دومره احترام درلود. یو وخت زموږ د ځای یو عالم چې په پاکستان کې مهاجر و هلته وفات شوی و. کله یې چې جنازه کندهار ته راوړه، د ملا صاحب په امر یې له کندهاره د زابل شاجوی ته په څرخکه کې انتقال کړه. مطلب دا چې د خپل توان تر حده یې خلکو ته سهولت برابراوه.

ـ وفاداري يې درلوده، کوم ډلگی مشر به چې شهید شو. ملا صاحب به يې په انډيوالانو او قريبانو خاصه توجه ساتله. د هغوی سره به يې مرسته کوله تر څو يې ډلگۍ په خپل حال پاته شي. د هغوی نوي مشر ته به يې د شفقت غيره خلاصه کړه، ډېر پام به يې ورباندې ساته تر څو مايوسه نه شي او د کمتری احساس ونه کړي.

ـ تقوی يې درلوده له الله تعالی څخه وېريده. شمال چې دوهم وار فتحه شو، نو هلته د دښمن ډېر بنديان نيول شوي وو. په پلخمري او شبرغان کې ډېر بنديان وو. ملا صاحب دا نه خوښول چې څوک په بند کې وساتي. دغه بنديان ټول د ده په اجازه آزاد شول.

ـ ملگرو ته به يې تل د خير توصيه او نصيحت کاوه، موږ ته به يې تل په خپلمنځي ښه گذارې امر کاوه چې گورئ په خپل مابين کې ښه اوسيږئ په خپل مابين کې شفقت کوئ يو د بل احترام کوئ. دا به يې ويل چې پر خپلو ځانو پيره داران اوسئ يعنی خپلو اعمال ته متوجه سئ چې اعمال مو خراب نه سي چې تقوا در څخه پاته نه سي.

څکه يوه ورځ عادي سړی وي بله ورځ وزير وي يوه ورځ عادي سړی وي بله ورځ والي وي نو حتما فرق پکښې راځي. يو وخت کې يي ملگرو ته توصيه کوله يعنی د تقوا په رابطه يي خبر ورته کوله هغه ورته ويل ملاصاحب ته له موږ څخه ملائکي جوړوي؟

ده په جواب کې ورته وويل والله دغسي مکلف يو تر دغه هم زيات مکلف يو، بايد به ځان کې اصلاح راولو.

## د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د استخباراتو د عمومي رياست مرستيال ملا عبدالحق وثيق صاحب

په ملا صاحب مرحوم دې الله تعالی رحم وکړي، ښه ښه صفات يې درلودل خو يو صفت چې ډېر بارز و هغه عدالت و چې په کمزوري او قدرتمند، طالب او عام سړي يې بلاتوپيره جاري کاوه. د دې مثال زه درته وايم. په اول وخت د امارت کې ما د کندهار ولايت په امنيه قومندانۍ کې وظيفه اجراء کوله. هغه وخت په هرات کې ځيني

مجاهدین یا امارت ته منسوب کسان چې د ځینو ځواکمنو ډلګۍ مشـرانو ملګري هم په کې وو په ځینو جرمونو ګرفتار شوي وو. هغه وخت معمول دا و چې د نـورو ولایـاتو مهمې قضیې به هم کندهار ته محول کیدلې. نو دغه نظامي کسان راوړل شول او له مور سره دکندهار په توقیف خانه کې بندیان وو. چې کله یـې قضـیې محکمـې تـه وړانـدې شوې، نو محکمې وړاندې کومه فیصله ونـه کـړه. دلیـل یـې دا وایـه چـې د دې کسـانو جرم او دعوی مکمله نه ده واضحه، نو تر څو چې مکمـل وضـاحت نـه وي فیصـله نـه وړاندې کیږي.

یوه ورځ چې مې د ملا صاحب سره ملاقات و مـلا صـاحب د همـدې نظـامي کسانو د قضیې پوښتنه وکړه، ما ورته وویـل چـې محکمـه وړانـدې حکـم نـه کـوي. شـاید مـلا صاحب داسې برداشت اخیستی وي چې محکمه ترې ویریږي ځکه هغه نظامي کسـان وو او قوي ملګري یې هم لرل. نو ملا صاحب ډېر خواشینی شو، غوسه ورغلـه او کاتـب ملا عبدالسلام آخند ته یې وویل چې محکمې تـه ولیکـه چـې ضرور بـه پـه دې خلکو شـریعت جاري کیږي او محکمې ته ولیکه چې تر هغو دې نورې قضـیې معطلې کـړي اول دې ددې کسانو قضیه وڅیړي تر څو شـریعت وړاندې جاري شي.

وروسته ملا صاحب ماته وویل زما نوم څه دی؟

ما ورته وویل: عمر

ملا صاحب وویل: له خپل نوم څخه حیاء راځي . کـه طالـب وي، مجاهـد وي کـه هر څوک وي چې ظلم یې کړی وي والله که یې پریـږدم. دا بـه کـوم عـدل او انصـاف وي چې پر طالب به اسلامي الهي احکام نه جاري کیږي او په عامو خلکو به جاري کیږي. څومره طالبان او علماء چې شهیدان شول ټـول د دې ارمـان لپـاره چـې اسـلامي احکام باید بدون تفاوت په هر چا نافذ شي. نو محکمه به تر هغو پورې په دې قضیه کار کوي ترڅو په دې خلکو یو حکم وکړي.

خلاصه دا چې ملا صاحب محکمې ته قاطعانه امـر ولیکـه، خـط مـې تـرې راواخیست چې راوتلم، غږ یې پسې راوکړ، بیرته وروګرځېدم او راته ویې ویل: زه ګوره پر چا ظلم

نه کوم، که دا خلک چېرې واقعا بې ګناه وي او جرم يې نه وي کړی نو محکمه دې دا اوس خلاص کړي او که نه وي بايد حکم ورباندې وشي، مطلب دا چې قضيه يې بايد سمه وڅېړل شي.

همداسې د ملا صاحب بل خصوصيت دا و چې د مظلوم فرياد يا شکايت به ورته ورسيده نو پر ځمکه يې نه غورځاوه، خامخا به يې يو اقدام کاوه. يو وخت کې چې ما په کابل کې د استخباراتو لوی رياست کې خدمت کاوه، کندهار ته راغلی وم. د کندهار د سرپوزې محبس ځيني بنديان يې د علاج لپاره روغتون ته راوړي وو او زه پوښتنې ته ورغلم. هلته يو بندي ډېر شکايت راته وکړ. ويل يې د قيامت په ورځ به زما لاس او ستاسو ګريوان وي. زه بې جرمه بندي شوی يم، په دروغو شاهدي راباندې ويل شوي ده. ما ته يې وويل چې زما فرياد ملا صاحب ته ورسوئ. د ملا صاحب لپاره يې يو مسواک تحفه هم راکړ. ما د هغه بندي فرياد ملا صاحب ته په ډېر ښه شکل سره ورساوه او دا مې هم ورته وويل چې که خدای مکړه څوک بې ګناه بنديان شوي وي نو د قيامت په ورځ به موږ او تاسو مسؤل يو. ملاصاحب ډېر په فکر کې شو. بيا يې وويل چې په دې سرپوزه کې شاوخوا دوه زره بنديان دي، نو چې دا يو وايي چې زه ناحقه بندي يم. کيدای شي نور به هم وي. نو بيا يې ماته وويل چې ته به يو څه وخت له کابل څخه راپاتې شې. دلته به د دې ټولو بنديانو ښه تحقيق وکړو. که څوک بې ګناه وو هغه به ازاد کړو او واقعي مجرمين به پاته شي.

بله دا چې د ملا صاحب په حقانيت او ښه مسلمانۍ باندې امريکايانو هم اعتراف درلود. د امريکا د حملې په اولو کلونو کې دا کار ډېر مشهور و چې ځينو جاسوسانو به د شخصي حسد او يا پيسو موندلو لپاره په يو چا نوم پورې کړ او امريکايانو ته به يې د مهم طالب چارواکي په نوم په لاس ورکړ. په کندهار کې د ګلالي په نوم په اولو کلونو کې د استخباراتو رئيس و. هغه يو څوک د شخصي دښمنۍ يا بل څه په اساس نيولی و او بيا يې امريکايانو ته په دې عنوان سپارلی و چې د ملا محمد عمر مجاهد ډريور او مهم انډيوال يې ګير کړی دی. امريکايانو هم دغه کس باګرام ته راوستی و او ډيره تمه به يې شايد وه چې د ملا صاحب معلومات به ترې حاصل کړي.

نو دا کس په باګرام کې د ملا صاحب په ډرایور باندې شهرت درلود. حالانکه چې په حقیقت کې یو عام کس و، بلکې د طالبانو سره یې هیڅ تړاو نه درلود. خو څه وخت بعد دغه کس ناڅاپه آزاد شو. له موږ سره په ګوانتانامو کې یو ملګری و، د عبدالظاهر په نوم، هغه ویل چې زه امریکایانو د تحقیق لپاره بوتلم. نو ما ورته وویل چې تاسو په اصلي طالبانو کار نه لرئ او موږ بیچاره عام خلک مو دلته بندیان کړي یو. هغه پلانی کس چې د طالبانو د مشر ملګری او ډرایور و، تاسو ازاد کړ خو موږ ته آزادي نه راکوئ.

امریکایي په ځواب کې راته وویل چې هغه کس د ملا صاحب ملګری یا ډریور نه و. موږ ته په دروغو معرفي شوی و. ځکه موږ په هغه باندې تجربه وکړه چې آیا دی د ملا صاحب ملګری یا ډریور کیدای شي او کنه؟ موږ چې معلومات لرو ملا محمد عمر مجاهد یو واقعي مسلمان او ډېر متدین، له فساد او ناروا افعالو لرې سړی دی او د ده په شاوخوا کې هم بې دینه خلک ګذاره نه شي کولای. موږ چې په دې سړي تجربې وکړې. ده د مسلمانانو په دین کې ناروا کارونو لکه فحشاء ته میلان درلود او موږ پوه شوو چې دا سړی د ملا محمد عمر ډریور نه شي کیدلای نو ځکه مو آزاد کړ.

نو بناء د ملا صاحب مسلماني او دینداري د لمر غوندې روښانه و چې حتی دښمن هم ترې انکار نه شي کولای. الله تعالی دې وربانـدې رحم وکړي او الله تعالی دې ټول خدمتونه ورته قبول کړي.

**د رهبري شورى غړى شيخ الحديث مولوي محمد قاسم صاحب**

شخصیت، غیرت، مردانگی، سیرت و طرز زندگی مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله (که از تذکر آن یاد عمر فاروق رضی الله عنه می آید)نه تنها در بین ملت افغانستان بلکه در سطح جهان معلوم و عیان است. ولی باز هم در اینجا فرصت را غنیمت دانسته، قصد نمودم از جمله افتخارات ایشان چند کلمه را همراه قارِیین کرام شریک سازم.

اولین افتخاریکه برای امت مسلمه بخصوص برای ملت متدین افغانستان به میراث گذاشتند تفکر و ابتکار ساخت یک نظام اسلامی مبتنی بر اساسات اسلام، و احیاء سنتی که از قرنها بدینسو فراموش این ملت مظلوم و ستمدیده شده بود[ بنام امارت اسلامی ] میباشد. و دومین افتخار مرحوم امیر المؤمنین عزم راسخ و مقاومت آهنین ایشان در برابر کفر و الحاد و تعهد محکم ایشان بر حفظ نوامیس اسلامی میباشد. مثال بارز آن گذشتن از تمام داشته ایشان و آنهم صرف بخاطر حفاظت جان یک مسلمان ( اسامه بن لادن رحمه الله ) و بالمقابل بی پروایی ایشان در مقابل تمام تهدید های قوت های کفری که در رأس آن امریکای متجاوز قرار داشته بود.

و سومین افتخار ایشان عدم تمایل و عدم التفات به دنیا و اهلش به اندازه که یادآورنده قول معاویه رضی الله عنه در حق حضرت عمر رضی الله عنه میباشد. که میفرمایند: اما ابوبکر فلم یرد الدنیا و لم ترده و اما عمر فارادته فلم یردها و اما نحن فتمرغنا فیه ظهر البطن ) و نیز صاحب استقامت و صابر در برابر تکالیف و مصایب گوناگون بودند که دلیلش در واقعات وفات ایشان معلوم و هویدا میباشد.

**د رهبري شورى غړى الحاج شير محمد عباس ستانكزى**

خوشال يم چې د افغانستان د اسلامي امارت د مؤسس جناب عاليقدر امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد د تاريخ په رابطه ليكل شوى كتاب چاپ ته تيار شوى دى. مرحوم امير المؤمنين ډېر صفات درلودل خو غواړم دلته د هغه د دوو صفتونو په اړه خپل تأثرات ذكر كړم.

يو دا چې امير المؤمنين ډېر شجاع او غيرتي سړى و، الله پاک خپل غيرتي بندګان هميشه خوښوي او دا چې الله پاک ډېر غيرتي دى او د هغه رسول صلى الله عليه وسلم غيرتي و نو په امت كې چې هر څوک غيرتي وي هغه الله پاک او د هغه رسول صلى الله عليه وسلم ته ډېر نږدې وي. مشر ملا صاحب د ځوانى د ژوند ابتداء په غيرت كړې وه، د روسانو او كمونيستانو په مقابل كې يې په ميړانه جهاد كړى و. د جهاد له بريا وروسته چې مختلفې ډلې ټپلې د قدرت او څوكۍ پر سر په جنګونو اخته شوې، ناخوالې شروع شوې، د خلكو جايدادونه او مالونه چور شول. د خلكو په سرونو كې

میخونه ټک وهل شول او د خلکو د ناموسونو سره لوبې وشوې، ټول ملت له دې مشکلاتو څخه کړېده. مگر په دې ټول ملت کې یوازینی کس چې د اول ځل لپاره راپورته شو هغه عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد و، چې دی راجگ شو او ټول ملت ورته لبیک وویل او تر شا یې ودریدل. هغه که ملا و، که امي و، که عالم و که طالب و که انجنیر و که معلم او که د نورو مسلکونو خلک.

بیا چې د افغانستان په پنځه نوي فیصده خاوره کې امن او شرعي نظام قائم شو. نو له دې نظام سره مخالفتونه شروع شول. هغه وخت ایران د افغانستان په مقابل کې یو قوي گواښ و، خو امیر المؤمنین یې په وړاندې ودرید او د ایران گواښونه له شکست سره مواجه شول.

وروسته امریکایانو چې نه یې غوښتل چې په دې خطه او منطقه کې یو اسلامي او شرعي نظام قائم شي تر څو هغه نورو ملکونو ته نمونه او مثال وي، نو گواښونه یې پیل کړل. په مختلفو بهانو یې افغانستان ته اخطارونه ورکول. خو د ملا صاحب په قیادت کې امارت اسلامي د امریکا گواښونو ته په ډېر میړانه ځواب ووایه او د دوی یو خواهش یې هم ونه مانه. ملا صاحب د امریکا په مقابل کې د غر غوندې ودرید په داسې حال کې چې د دنیا خلک دېته حیران و چې څرنگه د افغانستان غوندې یو وړوکی ملک د امریکا په مقابل کې دریږي او امریکا ته نه وایي. هماغه و چې ټوله کفري نړی له امریکا سره یو ځای شوه، په افغانستان یې یرغل وکړ، د ملا صاحب په قیادت جهاد پیل شو او تاسو نن وینئ چې الله الحمد د اته څلویښتو ملکونو د پوځونو په شمول امریکا په افغانستان کې په گونډو شوه.

بل صفت د ملا صاحب دا و، څنگه چې هغه یو متوسط او غریب سړی و له غریبې کورنۍ سره یې تعلق درلود، دغسې یې ساده ژوند وکړ او همداسې له دنیا څخه لاړ. د ملا صاحب څخه نه په جریبونو ځمکې، نه د بانک اکاونټونه، نه بلډینگونه او نه نور شیان پاته شول. د خدای په لار کې ببرته لاړ او په دنیا کې هیڅ شی ترې پاته نه شول. د ملا صاحب مثال په دې اوس نړۍ چې یوویشتمه پیړۍ ده بې نظیره دی. الله پاک دې د

ده په زامنو او د ده په پیروانو برکت کیږدي او الله پاک دې په افغانستان کې شرعي نظام، سوله اوامنیت راولي. آمین

**د رهبري شورى غړى ملا عبداللطيف منصور**

په افغانستان کې د شرعي نظام بنیانگذار د اسلامي امارت مؤسس جناب مرحوم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د الله تعالی له هغو خاصو بندګانو څخه یو و، چې الله تعالی ده ته د ورکړل شویو استعدادونو څخه د دین عظیم کار واخیست، چې هغه د مسلمانانو متاع ګمشده (شرعي نظام قائم کیدل) و چې مسلمانانو ته د څو پیړیو راهیسې په لاس نه و ورغلی. هغه الله تعالی د ده په واسطه مسلمانانو ته ورنصیب کړ.

د ده شخصیت له رب تعالی سره په ټولو کارونو کې مخلص او له دیانته ډک و، د ټولو علماء کرامو، طالبانو او متدینو مؤمنانو په دې راټولیدل هم یو کرامتي او حیرانوونکي کار و. بله دا چې په عربو او عجمو کې یې محبوبیت درلود او په اسلامي تاریخ کې یې یو ځل بیا د شرعي امارت باب را ژوندی کړ.

زما په شخصي اند هغه د الله تعالی له مخلصو بندګانو څخه و او له خپلې داعیې سره چې د شریعت نافذول دي ډېر صادق و. مشفق رهبر و، په خپل رعیت مهربانه او د یوې اصلاحي او شرعي ټولنې جوړیدلو ته حریص او متمني و. الله تعالی د مصائبو او امتحاناتو د ګاللو لوی استعداد ورکړی و او د شریعت په مقابل کې یې د چا پروا نه کوله.

**د رهبري شورى غړى او د اقتصادي کمیسیون مسؤل الحاج ملا ګل اغا بدري**

د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په اړه غواړم څو خاطرې او تأثرات درسره شریک کړم.

ـ ملا صاحب له قوم پرستی او قومي تعصب څخه ډېر بد وړل، نه یې خپله قوم پرستي کوله او نه یې د ملګرو لپاره خوښوله. د اسلامي امارت له پیل مخکې زه څلور کاله له نوموړي سره په مدرسه کې پاته شوی وم، خو ما ته د ده قوم نه و رامعلوم. کله چې اسلامي امارت پیل شو، بیا د خلکو له خبرو د ملا صاحب قوم را معلوم شو.

ـ ملا صاحب هغه وخت چې اسلامي امارت لا نه و تأسیس شوی او د ژړی ولسوالی په سنگ حصار کې یې امامت درلود، له غربت سره سره یې ډېر سخاوت درلود. که به کوم مسافر طالب په مدرسه کې بستره نه درلوده، ملا صاحب به له کوره ورته راوړه، که به یې پیسو ته ضرورت و، ملا صاحب به له نیستي سره سره چې څه پیسې به ورسره وې هغه به یې فقیرو طالبانو ته ورکولې تر څو خپل د ضرورت شیان ورباندې رانیسي.

وروسته د امارت په وخت کې چې زه د امارت د مقام مالي وم، هم ملا صاحب هماغه د سخاوت صفت ساتلی و. دغه وخت به له ماسره درې قسمه پیسې وې.

ـ یو هغه چې د امارت د خزانې مربوط پیسې وې او بیت المال بلل کیدلې.

ـ دوهم هغه پیسې چې ځینو مالداره خلکو بـه مـلا صـاحب تـه د عامـه مرستو لپاره ورکړې وې.

ـ دریم هغه پیسې چې مالداره خلکو به ملا صاحب ته د خپل کور د شخصي ـ مصرف لپاره ورکړې وې.

ملا صاحب ماته ویلي و چې کله مجاهدین ملگري ملاقات ته راشي او کور ته ځي نو ماته یې را په یادوه. نو بیا به چې د امـارت ملگـري راغلـل نـو اکـثرا بـه یـې لـه هماغو شخصي پیسو ورسره مرسته کوله تر څو خالي لاس کور ته لاړ نه شي.

ـ ملا صاحب مرحوم زیات زغم او حوصله درلوده. حتی کله به کشـرانو ملگـرو د مـلا صاحب په مخکې ډېرې تیزې خبرې وکړې، انتقادونه به یې وکـړل خـو مـلا صـاحب د انتقاد د اوریدو زغم درلود. یـو وخـت د مـلا صـاحب پـه حضـور کـې د امـارت د دوو مشـرانو ملگرو ترمنځ خبره واوښته او شخړه رامنځته شوه. خـو مـلا صـاحب پـه ځـای د دې چې هغوی تهدید یا توبیخ کړې په ډېر زغم سره یې د هغـوی لانجـه هـواره کـړه او په همدې مجلس کې یې بیرته سره پخلا او خوشاله کړل.

**د اسلامي امارت د واکمنۍ پر مهال د پکتیا والي مولوي شمس الدین پهلوان**

له امیرالمؤمنین رحمه الله سره زما لومړی ملاقات هغه مهال ترسره شو چې زه کابل کې د چهار اسیاب ولسوالۍ ولسوال وم، له ولسوال کېدلو یو کال وروسته چې په سیمه کې څه اداري مشکلات راته پېښ شول نو د ملا صاحب رحمه الله د ملاقات اراده مې وکړه، هغه مهال زموږ یوه بله دلګۍ د ملاصاحب رحمه الله د محافظت دنده پر مخ وړله په نساجي کې چې د ملاصاحب کور هم په همدغه سیمه کې و.

نو لومړی لیدنه مې د هغه رحمه الله په کور کې ورسره وشوه، څرنګه چې ما فکر کړی و له توقع خلاف مې ملا صاحب رحمه الله ډېر رحمدله او ډېر مینه ناک ومونډ، د ملا صاحب رحمه الله برخورد له ماسره بالکل د مدرسې د یوه انډیوال برخورد و.

کوم اداري مشکلات چې ما ځان سره رواړي وو ټول یې په سړه سینه واورېدل او ټول یې ډېر اسانه راته حل کړل، همدا راز څرنګه چې زموږ د مسؤلیت ساحه چهار اسیاب د جنګ لومړی کرښه وه نو هلته یو شمیر مسافرین په لارو کې بند پاته وو چې هغوی د لارې په پیدا کولو کې مو له ملګرو سره عمده مشکل درلود چې د ملاصاحب په ملاقات کې مې دا خبره ورته وړاندې کړه نو د ملت د خوندیتوب له امله یې څنګه چې ما غوښتل مسافرینو ته د هغې لارې د خلاصولو امر هم وکړ، چې وروسته همداسې وشول او ټولو مسافرو ملاصاحب رحمه الله ته ډېرې دعاګانې هم کولې.

زه هغه مهال د ملاصاحب له برخورد څخه ډېر متأثر شوم او هغه مهال ما ته نه معلومېدله چې ملا صاحب رحمه الله ولې زه دومره تشویق کړم؟ او ولې یې زما دومره ډېر پیشنهادونه ومنل، وروسته زه پوه شوم چې ملا صاحب کوښښ کاوه ترڅو ټولو قومونو ته په یوه نظر وګوري او ټولو ته یوه درجه ورکړي، ملا صاحب رحمه الله کوښښ کاوه چې د ټولو قومونود افرادو خبرې یو ډول واورې.

دا مې له ملا صاحب رحمه الله سره لومړی ملاقات و کله چې زه بیرته چهار آسیاب ته ستون شوم د شمالي ولایتونو له علماؤ او طالبانو مې یو هیئت تیار کړ چونکه ما جرئت پیدا کړی و او له ملاصاحب رحمه الله سره لیدنه راته کومه عادي خبره ښکاره شوه نو د کاپیسا، پروان، فاریاب، کندوز، تخار، مزار او بدخشان له ولایتونو څخه مې ۱۶ کسیز

وفد تیار کړ بیرته د ملاصاحب رحمه الله ملاقات ته ولاړو، هغه مهال مو ځیني داسي غوښتني لرلې چې یواځي په جذباتو بنا وي، په ټول تحریک کې مو ځیني ملاحظې درلودلې د مثال په توګه زما یوه غوښتنه داوه چې ولي په امارت کې ډیر خرپیلي شته دا څنګه د طالبانو تحریک دی؟ خو ځیني غوښتنې او نیوکې مو تر یوه حده پرځای وې لکه په ځینو ځایونو کې د پښتو او فارسي تر منځ سمتي توپیرونه چې مخ په زیاتېدو وو، خو د ملاصاحب رحمه الله ځواب دا وو چې زه هغه وخت ډاډه کېدای شم چې له بدخشان څخه یو کس په هرات ولایت کې والي وي او د هرات یو کس په کندهار کې والي شي، او موږ ته یې وویل چې تاسي په اطمینان خپل کار ته ادامه ورکړئ دې توپیرونو ته زه متوجه یم او په ټینګه به یې مخنیوی کوم او مثال یې داسي راته پیش کړ چې دا یو مرض دی او موږ اوس په جنګي حالت کې یو نو دا ډول یو خپرېدونکی مرض ژر تر ژره نه کنټرولیږي، موږ بوخت یو ترڅو په تدریج سره دې ستونزي ته د پای ټکی کېږدو.

زموږ یو اعتراض داوو چې بندیان ولي وژل کیږي ؟ د ملاصاحب ځواب دا وو چې که ته له علمي اړخه کومه نیوکه لري نو زه مفتي نه یم چې تاته مسئله روښانه کړم له مولوي عبدالعلي دیوبندي صاحب او نورو علماؤ سره وغږېږه ترڅو یو بل ته قناعت سره ورکړئ او هره پرېکړه چې مو په ګډه وکړه هغه به زه درته عملي کوم.

له دې ملاقات وروسته موږ ټول ملګري ډېر خوشحاله له ملاصاحب څخه رخصت شولو او زه بیرته چهار أسیاب ته ولاړم.

دریم ملاقات مي له ملاصاحب رحمه الله سره د کابل له فتحې وروسته وشو چې کله چې زه د پکتیا د والي په توګه مقرر شوم د بغلان، بدخشان او تخار غالباً له دغو درو ولایتونو څخه بیا یو هیئت زما په ګډون تیار شو چې داخل یې بیا ځیني ملاحظې له ځان سره درلودلې چې یوه ملاحظه بیا هم هغه د قومي او سمتي ستونزي د پراخېدو وه، بنایي هغه مهال به موږ له حالاتو سم برداشت نه وي کړی دا قومي او سمتي تعصبونو ته لمن وهل د ځینو افرادو له خوا وو، خو موږ به د افرادو د کړنې په توګه نه ورته کتل

موږ ته به داسي معلومېده لکه د تحریک له لوري چې دا ستونزه پراخېږي او داسي هیڅکله نه وه.

نو کله مو چې ملا صاحب ته دا ستونزه یاده کړه هغه له ما څخه سوال وکړ راته ویې ویل ته دې تحریک ته څنګه راغلې؟ آیا څوک درغلل دعوت یې درکړ؟ ما تاته خط در ولېږی او ته مي راوغوښتلې ؟ او دې تحریک ته د راتګ علت دي څه وو چې خپل سبقان دي پرېښودل او تحریک ته راغلې ؟

هغه مهال چې ما ځواب ورکړ دا و چې په افغانستان کې فساد و د خلګو سر او مال خوندي نه وو پاټکونه وو او هر چا خپله پاچاهي چلوله او د مثال په توګه مي یوه خاطره ورته پیش کړه چې زه په ۱۹۹۲ کال کې له بدخشان څخه روان وم پېښور ته مدرسې تلم پیښورته چې ورسېدم فقط یو څو روپۍ راسره پاته وې نور ټول شته مي په لاره چور شول، حتی د لاس ساعت مي په لاره پاټکیانو راڅخه واخیست نو د همدې فساد په ضد یو پاڅون پیل شو چې زه هم ورسره ملګری شوم.

ملاصاحب رحمه الله ځواب راکړ ویل ته تحریک ته د فساد د مخنیوي په موخه راغلې یې کوم شیان چې تا ذکر کړل ټول فساد دي اوس ته د فساد د ورکولو مقابله کوې او که تېښته غوره کوې او له دې مقابلې تښتې؟ که ته له دې مقابلې شاته کېږې نو دا ستا ځای به هم یو مفسد ته په لاس ورشي او فساد به نور هم پسي-زیات شي. ملاصاحب رحمه الله پسي زیاته کړه چې زه به هلته تا ومنم چې ته په تحریک کې چیري فساد ووینې او مقابله یې شروع کړې تر دې چې زخمي شې پکې شهید شي او سر دي پکې ولاړ شي نو بیا ته د فساد په ضد له موږ سره یوځای شوی یې او که ته د فساد په ضد مقابله کې وې او ما دي ملاتړ ونه کړ او ما ستا د فساد ضد موقف څخه دفاع ونه کړه بیا ته حق لرې چې په تحریک نیوکه وکړې او موږ ته د فساد خورونکو په سترګه وګورې، موږ چې له ځان سره کومي ملاحظې راوړي وې تقریباً ۱۹ دانې وي او هره یوه به ما ویله بیا به مو بحث پرې کاوه بالاخره د مجلس په اخیر کې ما ورته وویل چې یو کس چې کله مریض شي نو بیا د خپل بدن غړي نه غوڅوي ډاکټر ته ځي ترڅو هغه یو علاج ورته په ګوته کړي نو موږ د مریضانو او ته موږ ته د ډاکټر حیثیت لرې

ملاصاحب رحمه الله په خپله ځانګړې لهجه راته وویل چې ډاکټر په سلو مریضانو څه کولای شي ؟ مطلب یې داوو چې سل نور مریضان راځي راته زه خپله ټول ځنګه سره وچلوم تاسي هم خپله پوهان یاست مبارزه وکوئ فساد له منځه یوسئ زه مو همکار یم او هرڅه همکاري درسره کوم.

له ماسره په دغه راغلو کسانو کې ځیني داسي کسان هم وو چې ملاصاحب ته تر راتګ وړاندي یې ویل چې دا مو له ملاصاحب سره اخیرنی ملاقات دی که زموږ غوښتني ونه منل شوې نو بیا له موږ افغانستان پاته دی، خو له مجلس وروسته چې کله مو د ملاصاحب رحمه الله برخورد ولید او دهغه رحمه الله ځوابونه مو واورېدل د ټولو ملګرو زړونو ته یې لار وکړه او دا یې ثابته کړه چې ملاصاحب په پوره اخلاص او ټول توان د فساد په ضد درېدلی او ټول ډېر خوشحاله بیرته خپلو سیمو ته ستانه شولو ټولو ژمنه وکړه چې مقاومت به کوو او خپلو کارونو ته به ادامه ورکوو.

څلورم ملاقات مي له ملاصاحب رحمه الله هغه مهال وشو چې له پکتیا څخه د ځینو سمیزو ستونزو د حل په موخه ورغلم هلته د حزب اسلامي یو قومندان د انجنیر فیض محمد په نوم یو حرکت په لاره اچولی و، دغه راز د ځینو دولتي ځمکو د غصب موضوع وه او ځرنګه چې په پکتیا کې عنعنه او رواج ډېر غالب و چې له یو شمیر شرعي احکامو سره مخالف و، که هلته ما اقدام کړی وای شایي له خلګو سره به په ټکر کې راغلي وای نو مي لازمه وګڼله چې په دې هکله له ملاصاحب رحمه الله څخه مشوره واخلم نو دغه موضوعات لامل شول چې زه له ملاصاحب سره ووینم او مشوره یې ترلاسه کړم.

له ملاقات وروسته یې ګڼې مفیدي لارښووني راته وکړې او د حزبیانو د کودتاه په هکله یې راته زیاته کړه چې په سیمه کې د قومي مخورو، ملکانو او علماؤ یو وفد تیار کړه، ما هم له رسېدو سره سم تقریباً سل کسه برابر کړل چې د سیمي مخور قومي مشران او علماء پکې وو او په ډېر لنډ وخت کې مو د حزبیانو ټول پلانونه خنثی کړل، په دې کار سره هم ولس خوشحال شو او موږ نه یواځي دا چې د حزبیانو شوم پلانونه

مو شنډ کړل بلکه ګڼ نور مقاصد مو هم ترسره شول او په سیمه کې د ډاډ او امن فضاء واکمنه شوه.

له ملاصاحب رحمه الله سره په دې ملاقات کې د پکتیا د قول اردو د فعالېدو پرېکړه هم وشوه چې سرپرستي یې لومړی زما په غاړه وه وروسته یې له جلال آباد څخه بل ملګری ورته راولیږه.

ملاصاحب رحمه الله زما هغه پیشنهادونه چې د درست امارت په سطحه وو یا هم د منطقې په سطحه وو د وخت له شرائطو سره یې منل او ډېري مفیدي لارښووني یې راته کولې.

وروسته مي له ملاصاحب رحمه الله سره د مخابرې له لاري هم رابطې کولې په ټوله کې د ملاصاحب هر فرمان او هره لارښوونه دومره مفیده او ګټوره تمامېدله چې بالکل عقل یې ادراک نشوای کولی، کاشکې هغه مهال ما د ملاصاحب رحمه الله د هغو مشورو او لارښونو په ګټو باندې څه لیکلي وای نو د لارښونو اثر به یې اوس ښه معلوم وو.

په پکتیا چې ما دوه کاله تېر کړل تقریباً څلور ځله مې له ملاصاحب رحمه الله سره ملاقاتونه وکړل، د ملاصاحب رحمه الله ټولي خبري په ظاهره ډېري ساده او عام فهمه وې خو په اصل کې په اصطلاح د کاڼي کرښې وې چې هر څوک یې د خبري تل ته نشوای رسېدلی او د وخت په تېرېدو سره یې د خبرو پوخوالی ثابتېده.

ملاصاحب رحمه الله ډېر خوش اخلاقه او خوشطبعه کس وو یوځل له یوه ملاقات وروسته زه ترې ولاړېدم پوښتنه یې وکړه چې داخلګ تاته پهلوان وایې ته څرنګه پهلوان یې؟ غېږ باز یې ؟

ماورته وویل چې زموږ په منطقه کې پهلوان خپله معنی لري خو غېږ نیول مې هم زده دي ملاصاحب راته وویل نو غېږ راسره باسې؟

ماورته وویل یو شرط لرم هغه دا چې آمریت او ماموریت به یو طرف ته کوو بیا به غېږ باسو. لکه مدرسه کې دوه طالبان. یو کندهاری ملا ته یې زه یو بدخشانی ملا یم، غېږ به سره باسو. ملاصاحب رحمه الله قهقهه خندا نه کوله موسک شو، کله چې زه ور ولاړ

شوم خدای پاماني مي کوله لاسونه مې ورکړل، لاسونه یې ټینګ کړل شاوخوا یې ملګرو ته وکتل غالباً طیب آغا او څو نور ملګري وو. ویې ویل: والله لاسونه خو یې ډېر کلک دي، موږ خدای پاماني کوله چې د ډوډۍ وخت شو او ډوډۍ راغله، ملاصاحب وویل دا ده ډوډۍ راغله ته ډوډۍ وخوره بیا به ولاړ شې، ډوډۍ له کچالو پرته نور څه نه وو ماورته وویل دا څو ورځې زه دلته راغلی یم له کچالو پرته مې نور څه نه دي خوړلي اوس زه کچالو نه خورم ملا صاحب ځواب راکړ ،زموږ خوراک کچالو دی که یې خورې ویې خوره که نه وي ځه ولاړ شه هوټلونو ته روشونه وخوره.

له ملاصاحب رحمه الله سره به ما لږ ترلږه شل ملاقاته کړي وي له دې ټولو ملاقاتونو هیڅ ترخه خاطره نلرم، هیڅ مي نه یادیږي چې ملاصاحب دي له ماسره داسې برخورد کړی وي چې په ما بوج شي او د وخت لپاره په ذهن کې راسره وي بالعکس مي په هر ملاقات کې ډېر څه ترې زده کړي او ډېر خوشحاله ترې ستون شوی یم.

یوه بله مهمه خاطره چې اوس رایاده شوه، هغه داوه چې یو مهال زه د عوت او ارشاد د یوه مسؤل په حیث شمال کې وم چې له لوی درستیز ملا فاضل اخند سره مي په ځینو موضوعاتو بحث د جنجال ترحده ورسېد بالاخره پرېکړه مي وکړه چې کندهار ته ولاړ شم او ملاصاحب ته خپله عریضه پیش کړم، زه چې کندهار ته راتلم نو ملافاضل اخند هم د الوتکي له لاري کندهار ته ځان رسولی وو، زه له ملافاضل اخند سره په جنجال سخت خسته شوی وم او د ډېري مایوسۍ په حالت کې وم نو مې له ځان سره پرېکړه وکړه چې ځیني داسي سخت نه منل کېدونکي پیشنهادونه ملاصاحب ته وکړم کله چې و نه منل شي نو زه به ځان خلاص کړم کرار به کور کښېنم، خو کله چې مي ملاصاحب ولید خپل هغه سخت پیشنهادونه مي وکړل ټول یې راسره ومنل او اجازه یې رانکړه چې زه خپل مسؤلیت پرېږدم، ما څو ځله وړاندي هم ملاصاحب ته دحج کولو ویلي وو چې زه حج ته ځم اجازه یې نه راکوله دا ځل چې مي ورته وویل دستي یې اجازه راکړه.

له ملاصاحب رحمه الله سره مي وروستی ملاقات د حاجي معاون صاحب د فاتحې په مهال وو چې وروسته بیا ماته د ملاصاحب د ملاقات زمینه مساعده نشوه، او یواځې د مخابرې له لارې مي کله کله خبره ورسره کوله.

**د اسلامي امارت د کابینې غړی مولوي مخدوم عبدالسلام سعادت**

الحمد لله رب العلمین والصلوة والسلام علی سید المرسلین وعلی اله وصحبه وسلم.

جهاد ومبارزات برحق ملت مسلمان افغانستان درمقابل کمونیستهای بی عقیده و دین فروش یک حقیقت انکار ناپذیر است. جهاد وشهادت ها وهجرت ها وبرداشت بزرگترین مصیبتهای طاقت فرسا برای یک هدف خاص (قیام حکومت اسلامی) صورت گرفته بود متاسفانه قدرت طلبان وامتیاز جویان جهادی تحت شعاع دسایس مکارانه دشمنان اسلام وافغانستان قرارگرفتند و بالنتیجه به جای اینکه حکومت اسلامی ونظام عدل الهی حاکم شود نظام بدبختی عیاشی، فحاشی، قتل، غارت، شر و فساد به میان آمد.عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد با آن تقوی و ایمان داری و دلسوزی که به اسلام و ملت مظلوم داشت قیام برحق تحریک اسلامی طالبان شروع و مدبرانه، شجاعانه برای آوردن نظام اسلام و نجات ملت مسلمان قد علم گذاشت.

واقعا برداشت ما از شخصیت امیرالمومنین این هست که جناب شان الگوی صداقت وفا و شجاعت بودند من بیست مرتبه باجناب ملاقات کردم و همیشه به جناب شان ملنگساری شجاعت؛ سخاوت؛ غیرمتعصب بودن را دریافت کردم و جناب شان را قائد امت اسلامی، رهبر جهاد و مبارزات آزادیخواهی علیه همه استکبار جهان میدانم.

**مولوی عبدالفتاح بدخشی صاحب از منسوبین عالی رتبه امارت اسلامي افغانستان**

الله پاک فرمودند که عزت وذلت از جانب الله است

شاعر چه خوب فرمودند:

این سعادت به زور بازو نیست

تا نبخشد خدای بخشنده

خواستم در باره محترم امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد رحمة الله علیه چیزی مختصر بنویسم .

محترم امیر المؤمنین صاحب مرد شجاع، بهادر، با تصمیم با توکل و با دیانت بودند. از جمله عادات شان پابند بودن با وعده خود بود. هر گز خلاف وعده خود کار انجام نمی دادند (باید امیر المومنین دارای چنین صفات عالی باشند) از ایشان خیلی خاطره های فراموش ناشدنی دارم اما بطور مثال یکی از آنها را با شما شریک می‌سازم .

من در قندهار در نساجی اتاق داشتم، در نزد خانه امیر المؤمنین، یک روز ایشان بطرف خانه شان می‌رفتند من در راه با ایشان هم کلام شدم، بعضی از مشکلات مجاهدین بدخشان را با ایشان تذکره نمودم. (چون من نماینده مجاهدین بدخشان بودم) ایشان از من خواستند تا صبح در دفتر شان حاضر شوم. صبح وقت در دفتر شان رفتم با کسی ملاقات داشتند (یا مصروف با کدام مهمان خارجی بودند) من لازم ندانستم تا مزاحم شان شوم. از آنجا برگشتم. وقتي از کار فارغ شدند از کسی در باره من پرسیدند که فلانی کجاست؟ من با او وعده دیدن را کرده بودم. حتی باوجود مصروفیت های شان پشت من به قول اردو نفر روان کردند من را آنجا پیدا نکردند. من صباح نزد شان رفتم به فارسی برایم گفتند (برادر دیروز کجا بودی کارهایت ماند) بعدا مشکلات مجاهدین بدخشان را از من دریافت کرده، خیلی زود آنها را حل نمودند.

خلاصه درباره زندگی شخصی ایشان باید بگویم که خیلی زندگی ساده و فقیرانه داشتند.

از جمله عادات شان این بود که با مجاهدین مسافر خیلی مهربان بودند حتی به مسؤلین را تاکید می‌کردند تا مواظب مجاهدین مسافر (که از ولایات دیگر مثل بدخشان و تخار آمده بودند) باشند.

ایشان از نژاد پرستی و قوم پرستی خیلی متنفر بودند.خیلی انسان بردبار و با حوصله بودند. ایشان یک امیر فراموش ناشدنی هستند. من شخصا ایشان را هیچ وقت فراموش نمی کنم و برای شان همیش دعا گوه هستم. والسلام

**د بدخشان ولایت د مجاهدینو یو تن مشر مخدوم عبدالحق صاحب**

زمانی که مایان طلباء ولایت بدخشان بتعداد ۷۰ نفردر صف تحریک اسلامی طالبان پیوستیم، چند روز را در ولسوالی سپین بولدک ولایت قندهار تیر کردیم. بعدا تشکیل شدیم. به شهر قندهار رفتیم، قرار بود بخط اول جبهه برویم. بنا بر مصلحت بزرگان (مولوی شمس الدین مشهور به حاجی پهلوان) به تعداد ۳۰ نفر تشکیل بخط اول جبهه غزنی اعزام شدند، باقی مایان ۴۰ نفردر قندهار در کماندو یک شب را سپری کردیم بعدا در تشکیلات امنیتي دروازه ورودی قندهار مؤظف شدیم.

البته آن ماه حوت بود بعد از سپری شدن چند ماه یک روز محترم امیرالمومنین آمد، نماز دیگر را اداء نمود، به طلباء امر کردم، انار آوردند، وقتیکه انار خورده شد. مرا گفت ماو تو به نساجی میرویم، وقتیکه رفتیم منطقه را معاینه کرد. برایم گفت اگر به آنجا ( منطقه نساجی ) میایید من فامیل خود را از منطقه سنگ حصار به اینجا انتقال میکنم، چراکه من میخواهم شمایان نزد ما باشید. من گفتم بالراس والعین.

امیر المؤمنین صاحب به ملا گل آغا آخند هدایت داد، که فورا در و کلکین یک خانه را درست کن، شیشه نصب کن، بعد از آماده شدن خانه ملا صاحب فامیل خودا را به انجا انتقال داد و ما چند سال در آنجا همرای مرحوم ملا صاحب بودیم و مسؤلیت امنیت اورا بعهده داشتیم.

در آن وقت دفتر کاری امیر المؤمنین در تعمیر ولایت بود. من چونکه از طرف یک تعداد مردم به حیث نماینده صفحات شمال کشور معرفی شده بودم، اکثر اوقات نزد امیرالمومنین صاحب تشریف میبردم، ملا صاحب به مؤظفین دروازه هدایت داده بود، هر وقتیکه مخدوم صاحب میاید برایش مانع نشوید، بلا توقف داخل شود. هر وقتیکه میرفتم مرا منتظر میساخت تا نان چاشت در دفترش صرف کنم، آخر وقت امر میکرد حالا پیشنهاد خود را بیاورید! بعد از ختم کار همانجا در دفتر امیر المؤمنین بعد از صرف طعام چاشت نماز ظهر به امامت امیرالمومنین صاحب اداء میکردیم و بعد مرا اجازه میداد به طرف اطاق خود می آمدم. کدام روز که کار میداشتم اجازه میخواستم خنده میکرد میگفت من دانستم ته چرا میروی. من استبصار نمودم ملا صاحب وجه

خنده تان را بگویید! گفت: طعام ما ضعیف است تو خود را به هوتل میرسانید، طعام روز مره جناب شان بامیه ،دوغ ،کدام روز کچالو،گاهی گاهی شوربا که برای فی نفر به اندازه بسیار کم گوشت می رسید. من که اکثر اوقات از طرف چاشت همرای جناب بودم از آن بهتر دیگر چیز را نه دیدم .

یک واقعه به یادم می آید فکر میکنم که دیروز تیر شده باشد، در یکی از روز ها بعد ظهر رفتم، یک تعداد مردم دیگر هم در آنجامنتظر بودند از قبیل دلگی مشران زابل، قندهار، ارزگان و هلمند تعداد شان تقریبا ده ۱۰ الی سیزده۱۳ نفر میرسید. نماز عصر را به امامت امیرالمومنین صاحب ادا نمودیم بعداً یک چپرکت در ما بین تعمیر گذاشته شد. مر حوم ملا صاحب همراه با رئیس دفتر اش وکیل احمد آخندزاده صاحب نشستند برای آخندزاده صاحب گفت اول مخدوم صاحب رارخصت کنید (بمن اشاره کرد) کارهای من اجرا شد، بیرون شدم، دیدم که در پشت دروازه قاری محمد طیب صاحب منتظر است، برایم گفت من یک عریضه دارم. عریضه اش گرفتم، از یک زاویه آمدم، مرحوم ملا صاحب خشمگین بود دقیقه ای مکث کردم. برای دلگی مشران میگوید به دروازه هر یک از شما رفته دقّ الباب کردم به محنت و زاری شما را از خانه های تان بیرون کردم، این آدم را میشناسید از بدخشان هم مرز با چین با عشق و علاقه ای که با جهاد داشت به جذبه ایمانی خود بدون آنکه از طرف کسی دعوت شده باشد،خود اینجا حاضر شده. آیا حق اولیت از و است یا از شما؟ خود قضاوت بکنید من از پشت سر آمده به وکیل احمد اخندزاده صاحب عریضه ای قاری صاحب تقدیم نمودم، و بعد از اجراء خارج شدم.

در یکی از روزها از طرف سنگ حصار به سرعت می آمد، یک زن دستِ یک طفل در دستش، از کوچه پهلو ناگهان در سرک برآمدند، ملا صاحب موتر خود را کات کرد، موتر افتید، بعد از چند ملاق باز سر تیرها ایستاد، شیشه های موتر شکسته موتر کپ کوپ شد و زن همرای طفلش سالم ماند. وقتیکه به جایش رسید بعض ها گفتند ملا صاحب چرا این کار کردی خود را به کام مرگ برابر کردی در جواب گفت :من

نخواستم قاتل شوم، چون بر سیاه سر وطفلش رحم کردم خداوند قدوس به من رحم کرد مرا حفاظت کرد، زن و من هر دو سر به سلامت بردیم.

زمانیکه یک نفر طالب زخمی میشد از سنگر برداشته میشد بلاتوقف به شفاخانه رانده میشد بدون آنکه گفته شود تو کی استی از کجا هستی ازکدام نژاد و زبان. بدون انکه شناخته شود زخمی های مجاهدین برای معالجه تا جرمنی حتی دیگر ملک ها برده میشد.

برای معیوبین ومعذورین موتر، یک دربند دوکان یا پول تجارت می داد تا ما یحتاج خود را پوره کرده به کسی محتاج نه شود.

اگر به تاریخ افانستان نظر بیندازیم هیچ یک از زعمای افغانستان این کار را نکرده، یگانه شخصی که به مردم خود دلسوز و مشفق بوده باشد او ملا محمد عمر مجاهد( رَحِمَه الله ) بود.

لله الحمد مرحوم ملا صاحب در مقابله ابر قدرتهای کفری همچو امریکا و دیگران تاریخ زرین را پشت سر گذاشت ان شاء الله نسل آینده بر کارنامه هایش افتخار خواهد کرد.

## حاجي خليل الرحمن حقاني

د طالبانو د اسلامي تحریک له پیل وړاندې د لویې پکتیا اکثر ساحات د مولوي جلال الدین حقاني صاحب د جبهاتو تر تسلط لاندې و، کله چې د ملا محمد عمر مجاهد په مشرۍ اسلامي تحریک پیل شو او موږ ته معلومه شوه چې دا واقعا یو دیني او اصلاحي خوځښت دی نو له پیله مو ورسره خپل ملاتړ اعلان کړ. لومړی مو د منبع الجهاد او د خوست له مدارسو پنځوس تنه طالبان له څو موټرو وسلو او نظامي لباس سره د تحریک مرستې ته واستول. وروسته جناب حقاني صاحب خپل ټول مجاهدین، جهادي جبهات او جهادي وسائل او امکانات اسلامي امارت ته وقف کړل او له ملا محمد عمر مجاهد سره یې بیعت اعلان کړ. الحاج حقاني صاحب ویل چې: د کوم مقصد لپاره چې موږ جهاد پیل کړی و، قرباني مو ورکړې، خلگ مو هجرتونو ته اړ

شول د همدغه مقصد د ترلاسه کولو لپاره د امارت ملاتړ کوم او هغه مقصد ته د رسېدلو يوازنۍ لار همدا ده. حقاني صاحب تر پايه له ملا صاحب سره په کړې بيعت قائم پاته و او د امريکا ضد جهاد کې يې تر همدې قيادت لاندې جهاد ته ادامه وکړه.

د مرحوم ملاصاحب رحمه الله له ګڼو خصوصيتونو څخه دا هم يو نادر خصوصيت و، چې د جګړې له ډګرونو سره به په رابطه کوو، سره له دې چې جګړه به څو ځايه روانه وه خو ده به يې خپله حال اخيست او لازم هدايات به يې کول که به چا څه ناغيړي کوله او خپل کار ته به متوجه نه و، نو ملاصاحب به پخپله غبرګون ورښوده او د کار تر خلاصولو پورې به يې ياد کس تعقيب کاوه.

د اميرالمؤمنين رحمه الله ناسته ولاړه تګ راتګ او له کسانو سره په ليدو کتو کې ډېره عاجزي موجوده وه نوموړی انتهايي تواضع کوونکی او لله فی الله شخص و. څومره چې زموږ شناخت ورسره وو د کبر او غرور يوه ذره هم موږ پکې ونه ليدله بالکل خاکساره او د ځانګړی اثر څښتن و.

ډېرې کمې خبرې يې کولې، خو خبرې يې سره له دې چې په ډېرو ساده الفاظو وې د محتوا له لحاظه به بالکل پخې او په تول درنې خبرې وې، موږ چې کله وليد په دې ډېر خوښ شو چې الحمد لله يو طالب دی د نظر خاوند دی او له تکبر څخه ډېر ليري شخصيت دی موږ ډېر ترې متأثر شولو ، نو له نوموړي سره مو خپل بيعت د ځان لپاره د فخر وړ خبره وګڼله او په اتفاق سره مو د نوموړي قيادت ومانه.

## د رهبري شورى غړی شيخ الحديث مولوي عبدالرشيد صاحب

له هر څه نه مخکې دا وايم چې ( لا ازکي على الله احد) خو هغه څه چې واقعيت دي د مرحوم اميرالمؤمنين صاحب په اړه زما تأثرات دا دي چې نوموړي څو صفات درلودل.

الله ورته محکمه عقيده او کامل ايمان نصيب کړی و، د مخلوق د خوشالۍ لپاره يې د الله پاک حکم تر پښو نه لاندې کاوه، الله تعالی محکم توکل ورکړی و، د ملل متحد او يا د دنيا د کافرانو د رسميت پيژندلو يا نه پيژندلو پروا يې نه ساتله. الله تعالی شجاعت او رعب ورنصيب کړی و. د زهد يې دا حال و چې په پنځه کاله محکم امارت کې يې نه

کومه شخصي مانۍ واخيسته او نه يې په خارجي يا داخلي بانکونو کې پيسې جمع کړې.

بل لوی صفت يې دا و چې هر کار يې د علماء کرامو په مشوره او فتوی ترسره کاوه او آخري خبره دا کوم چې د اولياء کرامو دا صفت په کې و، چې له اسبابو مخکې به يې اول مسبب (الله تعالی) ته رجوع کوله.

## درهبري شورى غړی او د نظامي کميسيون د جنوب لويديځې حوزې مسؤل ملا محمد ابراهيم صدر صاحب

د امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد مناقب او خاطرات خورا ډېر دي، که يې ليکم شايد د کتاب تطويل وربانديې راشي. مختصرا به ووايو چې امير المؤمنين ملا محمد عمر مجاهد يوازې د افغانستان د جهاد مؤسس نه و، بلکې د دنيا په سطحه د معاصر جهاد مؤسس و. ځکه دشورويانو له شکست وروسته چې کله د افغانستان تنظيمونه په خپل منځ کې په جګړو اخته شول، نو کفارو او د هغوی لاسپوڅو مجاهدين داسې بدنام کړل چې خلک د مجاهد په نوم شرميدل. خو الله تعالی د ملا محمد عمر مجاهد د جهاد په برکت يو ځل بيا مجاهدينو او ټولو مسلمانانو ته عزت ور په برخه کړ. چې اوس مسلمانان د مجاهد په نوم فخر کوي او د دنيا مسلمانان همدې مجاهدينو ته د اميد سترګې پر لاره دي چې ملا صاحب مبارک روزلي او تر شا پرې ايښي دي.

د امير المؤمنين رحمه الله بل خصوصيت دا و چې د دنيا او افغانستان نيک مسلمانان او مجاهدين که يې ملا صاحب ليدلی و يا نه، خو پر ده يې اتفاق درلود. هغه که علماء وو يا هم مجاهدين او عام مسلمانان. او په مجاهدينو کې هر چا دا فکر کاوه چې له ماسره ډېر محبت لري.

## د رهبري شورى غړی الحاج ملا امير خان حقاني صاحب

د طالبانو د اسلامي تحريک د پيل په وخت کې چې کندهار ښار تازه فتحه شوی و. زما په شمول زموږ د جبهې ملګري له ملا صاحب سره د ملاقات لپاره کندهار ته لاړو. د کندهار ښار په والي کوټې کې مو له عاليقدر امير المؤمنين رحمه الله سره اولنی

ملاقات وشو. تر دې پخوا مې ملا صاحب نه و لیدلی او تعارف مو سره نه و. ملا صاحب یو ډېر خاکسار، خاموش مزاجه، مهربانه او نوراني شخص و. په لومړني ملاقات کې یې زما او ټولو ملګرو په زړه کې ځای وموند. نو بلاتاخیره مو ورسره بیعت وکړ. له هغه وخت څخه بیا تر اوسه د فساد او اشغال پر خلاف د جهاد په اوږده مرحله کې لله الحمد په هماغه بیعت وفادار پاته شوي یو.

له مرحوم امیر المؤمنین صاحب سره زموږ دوه وروستي ملاقاتونه لومړی په کندهار کې هغه وخت و چې امریکایانو د افغانستان اکثر ښارونه نیولي وو او مجاهدین له کندهار ښاره هم د عقب نشینۍ په حال کې و او ملا صاحب له ملګرو سره وروستی مجلس وکړ. له هغه وروسته مو بیا په زابل ولایت کې ورسره ولیدل. دا هغه وخت و چې د کندهار په شمول د افغانستان تقریبا ټول ښارونه او اکثر سیمې د امریکایانو او د هغوی د اجیرانو لاسته ورغلې وې. د دې دوو ملاقاتونو ځینې خبرې غواړم دلته شریکې کړم.

ملا صاحب په وروستي ملاقات کې دا وینا کوله چې دا افغانستان ډېر ځله د کفارو لخوا نیول شوی دی خو بیا وروسته د کفارو لپاره مقبره ګرځیدلی دی. ملا صاحب په هغه سخت حالت کې چې ټول ښارونه امریکایانو نیولي وو، هم پوره مطمئن و په ارامۍ، دلاورۍ او قاطعانه ډول یې خبرې کولې. هغه وخت چې ځمکه او فضاء ټوله اشغالګرو نیولې وه. ملا صاحب وویل چې د افغانستان نیول آسان خو ساتل یې ګران دي دا کفار به ضرور شکست خوري. موږ ته هغه وخت عجیبه ښکارېده. خو ملا صاحب په پوره یقین او اطمینان سره دا خبره کوله.

ملا صاحب نه یوازې زموږ او افغانستان لپاره سرمایه وه، بلکې د ټول امت مسلمه لپاره یو غمخور او سد سکندر و. رحمه الله تعالی و نور الله مرقده

**د رهبري شورى غړی ملا تاجمیر جواد**

څوک چې الله تعالی ته محبوب شي الله جل جلاله په خپله لار کې ترې ستر خدمتونه اخلي. عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله، الله تعالی ته محبوب و، ځکه یې د افغانستان د جهاد د ثمراتو د احیاء، د شر او فساد د له منځه وړلو، د ګران

هیواد د تجزیې د مخنیوي او د رښتیني اسلامي نظام د حاکمیت په خاطر یې د مسؤلیت د درک او عملي حرکت د پیل توفیق ورکړ او سبقت یې ور په برخه کړ. دا د الله تعالی په نزد د قبولیت وجه وه، ور نه ډېرو لوړو دیني، عصري تعلیمي مؤسسو څخه سند په لاس اشخاص چې د افغانانود جهاد په رهبرۍ کې یې قرار درلود، څوک په دې ستر امتحان کې واقع او ناکام شول او څوک د غفلت په خوب ویده او یوازې د ځان، کورنۍ او ډلې په فکر کې شول.

د کابل له فتحې د مخه عالیقدر امیر المؤمنین رحمه الله لوګر ولایت ته د جګړې د لومړۍ کرښې له نظامي مسؤلینو او د شاوخوا ولایتونو له ملکي مسؤلینو سره یوې غونډې ته راغلی و. زه د نوموړي د امنیت ساتنې په برخه کې د ګزمې مسؤل وم. کله چې نوموړی د غونډې ځای ته نږدې په یو مسجد کې د لمانځه له اداء کولو څخه وروسته راووت، زه یې په ملاقات مشرف شوم. ما یو معنوي اغیز محسوس کړ او یو مخ د نوموړي شخصیت د درنښت، وقار او جلال مجموعه راته ښکاره شوه.

نوموړي رحمه الله د قیادت ډېرې ځانګړنې درلودې. لږ خبرې، بې کچې درنښت، زیات رعب، بې کچې صبر، د غره په څېر استقامت، د خواصو توکل، قاطعیت، سیاسي ژور درایت، په پریکړو کې د تاریخي او عیني حقائقو په پام کې نیول، نظامي نبوغ، له وعیدونو او تهدیدونو څخه نه ویریدل، دتطمیع په جال کې نه راګیریدل، امت ته وسیع غېږه او تر هر څه وړاندې د امت وحدت ته ارزښت ورکول د نوموړي د قیادي شخصیت له ځانګړنو څخه وې.

عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د دنیا د نورو واکمنانو په څېر د مادي او سیاسي امتیازاتو، استخباراتي میتودونو او نظامي زور په توسط په خپل لشکر او خپل ولس واکمني نه کوله. نوموړي د خپل لښکر او خپل ولس په زړونو واکمني کوله او د دوی په زړونو کې یې ځانګړی ځای درلود. د انډیوالۍ په څېر تعامل او د زړه د مینې ورکول، شخصي تقوی، اخلاص، تواضع، صداقت، په خپل لښکر او ولس اعتماد، عدالت او په زړونو کې یې له الله جل جلاله څخه د ویرې پیدا کول په خپل لښکر د ټینګ کنترول په برخه کې غوراوي وو.

د امیر المؤمنین رحمه الله په لاس تأسیس شوی د افغانستان اسلامي امارت د معاصرو اسلامي او جهادي خوځښتونو په ټولي کې ځانګړی مقام لري او په تاریخي لحاظ یې کم مثالونه موندل کیږي. د اسلامي امارت ځانګړنې په دې ډول یادولی شو.

ـ د زعامت د ټاکنې لپاره د اسلامي شورۍ د اصل احیاء کول او د زعامت د میراثي کولو دود ختمول.

ـ مسلمانانو تـه د اخوت غبرګ خلاصول، او د ربښتینو اسلامي او جهادي خوځښتونو اجماع رامنځته کول.

ـ د مبارزې او جهاد د سختیو له امله له افراط او تفریط څخه ډډه کول.

ـ له خپل ولس او ګرد اسلامي امت سره د ترحم او احترام چلند

ـ داسې تشکیلاتي جوړښت رامنځته کول چې د دښمن د نفوذ او د لیکو د تفرق مخه نیسي.

ـ له مالي پلوه په خپل ځان اتکاء

ـ د مسلح جهاد تر څنګ د نبوي شرعي سیاست تعقیب

ـ له پیړیو وروسته د اسلامي نظام د عملي تاریخي نمونې وړاندې کول.

ـ د اسلام په احکامو له سازش څخه ډډه او له مظلومو مسلمانانو څخه کلکه دفاع

په پای کې له لوی الله جل جلاله څخه امیر المؤمنین رحمه الله ته د مغفرت، د نوموړي درنې کورنۍ او ټول امت تـه د نعم البـدل او د ده د شخصیت، ژونـد او مبارزې پـه اړه کتاب لیکونکو ته د توفیق او اجر عظیم غوښتنه کوم. الله تعالی دې د ټولـو سعی قبولـه کړي او الله دې لویه فائده پرې مرتبه کړي. آمین یا رب العلمین.

**د امارت د مقام د مخابرې مسؤل نصرت حاجي لالا**

امیرالمؤمنین ربښتیا هم له هر مظلوم او بې وزله سره ډېر زیات زړه سوی درلود. حتی که دښمن به یې هم بندي یا ټپي شو د رحم معامله یې ورسره کوله. یـو وخـت زه خپلـه پـه

شمالي کې وم زموږ د مخالفو ځواکونو له قوماندانانو څخه یو لوړپوړی قوماندان چې د پیر نظر په نوم په زخمي حالت کې ونیول شو. امیرالمؤمنین فورا ماته حال راکړ چې مجاهدینو ته امر وکړه چې ژر تر ژره دغه زخمي شفاخانې ته ورسوي، ماهغوی ته وویل هغوی هم سمدستي د کابل ۴۰۰ بستریز روغتون ته ورساوه، هغه به تل ویل چې که کوم وخت د دښمن له افرادو څخه څوک ژوندی ونیول شو، چې ویې نه ځوروئ، او زخمي یې فورا روغتون یا کلینک ته رسوئ، دا یې په نظامي ډګر کې زړه سوی و.

اوپه عمومي ډول د وچکالی په کال د کندهار، هلمند او نیمروز ولایتونو د ریګونو او لرې پرتو سیمو کوچیان په ریګونو کې بند پاته وو، یوه اړخ ته وچکالي وه او بل لوري ته قدرتي آفات اومرضونه یې مالونو ته راغلي اوټول مالونه او څاروي یې مړه شوي وو.

مرحوم امیرالمؤمنین ته  د دې خلګو  په هکله خبر راورسید  هغه سمدستي خپلو هوایي قواوو ته امر وکړ چې هلیکوپټر ورته موظف کړي، په هلیکوپټرو کې ټول دغه خلک له ریګونو څخه راوړل شول او په ابادو وطنونو او اوبه خور ته نژدې سیمو کې ځای پرځای او لازمې مرستې یې هم ورسره وکړي.

بله خبره دا چې یو وخت زه خپله د کندهار د سرپوزې زندان ته ورغلم هلته مې زیات شمیر کشران زندانیان ولیدل چې ډیرې یې نه درلودې، هغوی په جګړو کې نیول شوي وو، طبعا په جګړوکې خلګ د خپل صف د غښتلي کولو لپاره خلګ ډیروي او لغړزني هم راکشوي تر څو د خپلو جنګیالیو تعداد زیات کړي، ما مسؤل چارواکي پیدا کړل او امیرالمؤمنین ته مي په مخابره کې حال ورکړ، مسؤل کس مي هم ورسره په تماس کې کړ، امیرالمؤمنین ورته وویل: ولي؟ هغه معذرت اوبخښنه غوښته او خپل دلائل یې ورته وویل: سبا یې دستي هیئت وټاکی او هغه زندان ته ورغلی، اکثر کمسنه بندیان یې په یوه وار خوشي کړل. دا د عالیقدر امیرالمؤمنین د بې کچې زړه سوي، مرحمت، مهرباني، شفقت، او د بې وزلانو سره د خواخوږی څو بیلګې وې. ټولې یې له شمیر نه زیاتې دي. الله تعالی دې وربادې رحم وکړي.

## د رهبري شورى غړى ملا شيرين آخند

د ملا صاحب له شخصيت څخه چې په اول ځل زه متأثر شوم، دا د شوروي اشغال او د ډاکټر نجيب د رژيم وروستي كلونه و. په دې وخت كې مجاهدينو لـه كنـدهار څخه د هلمند او هرات پر خوا تللې لاره د دښـمن پـر مـخ بنـده كـړې وه او د هغـوى قـواوو او اكمالاتو ته يې لار نـه وركولـه. دغـه وخـت داسـې اوازه و چـې يـو شـمير تـش پـه نام مجاهـدين لـه كمونيسـت حكومـت سره رابطـه لـري او غـواړي پـه دې لاره د دښمن اكمالاتي كتار ته د تيريدو زمينه برابره كړي.

يو وخت چې د مجاهدينو تر مابين مجلس دائر شوى و، همدا موضـوع يـاده شـوه. پـه دې وخت كې په سيمه كې يو ځواكمن قومندان د استاد عبدالعليم پـه نامـه و چـې هغـه وخت يې ډېر قوت درلود. يو چا په مجلـس كـې د كمونيسـتانو د كـاروان تېرولـو خبره ياده كړه، استاد عبدالعليم په ډيره بې پروايي وويل چې كـاروان زه تيـروم څـوک بـه څه راته ووايي؟ په دې خبره ټول غلي شول، سره له دې چې په مجلس كـې ډېـر مجاهـدين او مشـران ناست وو، خو د استاد عبد العليم د خبرې ځواب هيچا ورنكړ.

تر دې چې استاد عبدالعليم نـور هـم زړور شـو او يـو وار بيـا يـې پـه جـوش او خـروش همدغه خبر تكرار كړه، چې زه د حكومت كاروان ته لاره وركـوم او تيـروم يـې. پـه دې وخت كې ملا صاحب تازه د فيض الله اخند زاده له جبهې راجلا شوى و او يـوازې څو تنه ملگري ورسره و، چې كوم لويه جبهه يا قوت يې هم نه درلود. خـو مـلا صـاحب پـه ډېـر جـرأت د اسـتاد عبـدالعليم تـه وويـل: تـه څرنگـه دا وايـي چـې زه د كمونيسـتانو د حكومت كاروان تيروم. په دې لاره روسانو كاروان نه دى تير كړى اوس يې تـه تيـروې. ته را ميدان ته شه چې سره معلومه يې كړو چې ته يې تيرولى شي او كنه؟

د ملا صاحب له جرأت او غيرت څخه ډک ځواب عبدالعليم هم وويـراوه او بيـا لـه دې خبرې څخه منصرف شو. له دې څخه ماته معلومـه شـوه چـې مـلا صـاحب حق گويـه شخص و. هغه د حق په مقابل كې د هيچا پروا نه ساتله او نه هم له چا څخـه ويرېـده. دا د هغه وخت كيسه ده چې استاد عبدالعليم پـه كنـدهار كـې ډېـر قـوت درلـود او چا پـه آسانه ځواب نه شواى وركولاى.

د ملا صاحب یو بل ښه صفت دا و چې د خپل جهادي خدمت او کارنامو هیڅ یادونه به یې نه کوله او نه به یې هم اثر وربانديې معلومېده. که به یې په جهاد کې هر څومره لوی کار او مهمه کارنامه ترسره کړې وه خو له وضعیت څخه به یې چا ته دا نه معلومېده چې دا کار دې ده کړی وي یا دې په هغه لویه کارنامه کې دی شریک وي.

د کمونیزم ضدجهاد په وخت کې یو ځل د کندهار ښار محله جات سیمې ته لویه قوه راغلې وه او مجاهدینو سخت جنګونه ورسره وکړل. په دې جنګ کې د دښمن ۲۲ شاوخوا ټانګان او پوځي وسائط له منځه لاړل. ملا صاحب هم په دې جنګ کې فعاله برخه درلوده او له پیله تر پایه په کې شریک و. له جنګ وروسته چې کله دښمن شکست وخوړ. له جنګ وروسته په زلخان سیمه کې چې د مجاهدینو اطاق و ما ملا صاحب ولید. حال دا چې ځینو مجاهدینو به د جنګ کیسې بیانولې خو ملا صاحب چې په دې جنګ کې یې مهمه برخه درلوده، حتی له وضعیت څخه یې هم دا نه معلومېده چې په جنګ کې به یې شرکت کړې وي.

د ملا صاحب بل صفات تواضع او علماء کرامو، نیکانو او صالحانو ته احترام و. په کندهار کې هغه وخت یو صوفي عالم اوسیده چې په تقوی او دیانت یې شهرت درلود او د صلاوات به حاجي بابا مشهور و. ده په امارت څه انتقاد درلود. ملا صاحب چې کله پرې خبر شو، نو په خپله ورغی د هغه صوفي عالم ځای ته. هلته ما ولیدل چې ملا صاحب اګر که د هیواد مشر او حاکم و خو د هغه عالم په وړاندې په ډېر ادب او تواضع سره ناست و. د هغه خبرې یې اورېدې او بیا یې په ډېر احترام ورته ځواب وایه تر دې پورې چې د هغه انتقاد رفع شو.

## د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر مولوي وکیل احمد متوکل

د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر او د ملاصاحب د دفتر لومړنی منشي مولوي وکیل احمد متوکل صاحب خپلې خاطرې داسې راسره شریکوي.

امیرالمؤمنین ملاصاحب مرحوم داختر دعامې عیدګاه دلمانځه امامت اوخطبه او نور لمنځونه په خپل امامت ورکول ښه اواز او ښه په تجوید یې قرائت وایه. زما دوالد شهید

ابوالفیض علامه عبدالغفار بریالي اشعار یې ډېرخوښ وه د ده په وینا دهغه دشعرو کتاب (اهار) هم داول ځل لپاره دکندهار داطلاتو اوکلتور ریاست لخوا کمپوز اوچاپ سو.

ملا محمدعمر مجاهد په نه ستړي کېدونکي ډول ډېرکار کاوه ډېرې لیدنې یې کولې، په داخله کچه له روزمره ملاقاتو څخه علاوه یې د بهرنیو مېلمنو سره هم لیده کاته کول، د ملگرو ملتو د سرمنشي له استازي سره او د پاکستان، سعودي او اماراتو څخه علاوه د ترکمنستان او ازبکستان له خارجه وزیرانو سره یې هم ناستې درلودې، د قطر، چین او نورو پلاوو سره یې هم وکتل د ځینو عربي او پاکستاني ژورنالستانو او غربي راډیوگانو سره یې هم مصاحبې کړې وې.

یو وخت یوه لوړ پوړي پاکستاني پلاوي ورته ویل چې موږ په ځینو موضوعاتو کې د نړیوال فشار سره مخ یو او تاسي مو هم خبري نه منئ ملاصاحب ورته وویل زموږ د هیواد پر سر نړیوال مناسبات مه خرابوئ چې تاوان در رسیږي نو زموږ سره تعلقات وشکوئ. بیا هغوی بیرته خبره واړوله چې نه موږ خو گاونډي هیوادونه یو.

د سعودي د استخباراتو مشر ترکي فیصل د پاچا فهد پیغام ملاصاحب ته ووایه چې اسامه بن لادن موږ او امریکا ته مطلوب دی. ملاصاحب ورته وویل ستاسو نیکه گانو صحابه رضی الله عنهم چې تر موږ پوري اسلام راورساوه. اوس تاسي ولې دومره بې غیرته سواست چې د صدام څخه ځان په امریکا ساتئ؟ هغه خپه سو چې زموږ د کورنۍ توهین دي وکړ مجلس یې پرېښوی.

مشر ملاصاحب تل د ښځو د حقوقو په اړه ډېره اندېښنه لرله ویل یې موږ دکورونو د شخصي حریم د مصؤنیت له خاطره انگړ ته نفر نه سو ورلېږلای چې د ظلم او کورني تاوتریخوالي سملاسي مخه ونیول سي. خو پر نورو لارو چارو مو عملي کارونه روان کړي دي لکه د منابرو او رسنیو څخه د شرعي احکامو مسلسل ابلاغول د محجب تعلیم او جلا تحصیل زمینه برابرول د محاکمو د لاري د بېلابیلو جنایي او حقوقي مسایلو د حل لپاره د ښځو لاسرسی، همداراز په نظامي لیکو کې د ماشومانو نه استخدام او د موظفو کمیسونونو په مټ دوامدار تعقیب ترسره کول.

**په پاکستان کې د اسلامي امارت دواکمنی په مهال سفیر ملا عبدالسلام ضعیف**
تر ټولو لوی صفت د مشر ملا صاحب دا و چې شریعت یې د ټول ژوند، کړنلارو او کارونو معیار ټاکلی و، هره فیصله او موضوع چې به ورته ورسېده، تر هر څه لومړی به یې د شریعت په رڼا کې پریکړه او عمل کاوه، هغه پریکړه او مسئله چې د شریعت موافق به وه، هغه به یې عملي کوله اوکه به د شریعت خلاف وه هغه به یې سمدستي ردوله.

دوېم: دهغه د ټول پرسونل او کارکوونکو انتخاب د تقوی او یا هم د لیاقت پر بنیاد و، تر هغه ځایه چې د ده علم ورته رسیدلای وای تقوی لرونکي او یا هم لایق کسان یې گمارل، که څه هم ډېرو خلکو ته به دا معیار د سوال خبره وه.

درېم: لکه څنگه چې عمر نومیدی همداسي هغه د حضرت عمر (رض) غوندي د پوره صداقت خوی درلود، نه یې چاته دوکه ورکوله او نه خپله تر پایه د چا له خوا څخه دوکه سو. او دښمنانو د دوستۍ او دښمنۍ په دواړو حالتو کې پوره کوشش وکړ چې هغه ته دوکه ورکړي، ولي ونه توانېدل.

څلورم: هغه رښتونی او پاک انسان و، هیڅ نوعه اخلاقي او لساني کمزورتیا یې نه درلودله، هغه دروغ ویل نه خوښول، او نه یې له چا سره چل او دوکه خوښېدله، نه یې بې ځایه او بې مانا خبرې کولې او نه یې بې ځایه وخت تیراوه.

پنځم: هغه د غریبو او ساده خلکو سره مینه درلودله، د یتیمانو او معیوبو خلکو د حال څخه یې ځان خبراوه، پخپل ځاني او کورني ژوند کې ساده او هم یې ساده ژوند ته ترجیح ورکوله

شپږم: هغه د بل چا خبره په ډېرو سړو مغزو او پوره حوصله سره اوریدله، بیا یې د هو یا نه جواب مقابل لوري ته ورکاوه، په خبرو کې یې د چا سره ډېره مشاجره نه کوله، په وعده باندې یې وفا کوله، د خولې او زړه خبره یې هر وخت یوه وه. د متین عزم څښتن و، په هر کار کې به یې پریکنده عمل کاوه.

اوم: د ښو او متدینو خلکو سره یې زیاته مینه کوله، دعلماء کرامو احترام به یې کاوه، د هغوی خبرو او مشورو ته به یې ځانګړي پاملرنه کوله. تر کومه ځایه چې زه مرحوم ملاصاحب پېژنم، د یوه مؤمن مسلمان په توګه دهغه په حق کې دخدای پر وړاندې په لاندې څو شیانو شاهدي ورکوم:

اول: د الله جل جلاله سره د هغه په اخلاص او ربښتنولي باندې. هغه خپل ځان هر وخت دخدای جل جلاله شریعت ته تسلیم کړی و، د دین د شرائعو او د دین د علماء کرامو عزت یې کاوه، د الله جل جلاله کتاب قران کریم یې د ځان او ملت له پاره دستور او قانون ګرځولی و، ټولو ملګرو ته یې د خیر توصیه کوله.

دویم: هغه د هر ډول قومي او منطقوي تعصباتو څخه پاک انسان و، د هر چا سره یې معامله په تقوی باندې وه.

دریم: هغه د هیچا پر وړاندې، درواغجن، دوکه باز او خاین نه و.

څلورم: هغه پاک نفس او پاک لمن انسان و.

پنځم: د هغه دوستي اودښمني په شخصي تعصب نه، بلکې د خدای جل جلاله د دین او شریعت پر بنیاد وه.

شپږم: هغه خپله مباشر ظالم نه و، او نه یې بل چا ته په ظلم سره امر کاوه، نه یې د ظالم دفاع کوله.

## د نړۍ د جهادي شخصیتونو، علماء کرامو او قلموالو تأثرات

### د قاعدة الجهاد د مشر شیخ أیمن الظواهري د پیغام یوه برخه

امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د مجاهدینو یو داسې امیر او قائد و چې له خپل رب سره د لقاء تر وخته پر حق ثابت مجاهد او مرابط پاته شو. موږ په دې شاهدي اداء کوو چې هغه څه ویل هغه رښتیا و او کومه وعده یې چې کړې وه پر هغه یې وفا وکړه. هغه له خپلې عقیدې او دین څخه پر شا نه شو. هغه به د اسلام او مسلمانانو په تاریخ کې د صدق، توکل علی الله او پر دنیا د آخرت غوره ګڼلو یو مثال یادیږي. نو ویاړ په

داسې امیر او داسې امارت. هغه یو داسې قهرمان و چې نړیوالو کفارو ته یې سر ټیټ نه کړ. او پر لوی رب په توکل سره د خپلو پاکو لښکرو په ملتیا د نړیوال کفر مقابلې ته ووت، نو الله تعالی یې نصرت وکړ او د ده مرتبه یې لوړه کړه.

ملا صاحب هغه امیر و چې ویل یې: د شیخ اسامه موضوع د یوه شخص موضوع نه ده بلکې دا اوس د اسلام د عزت مسئله گرځیدلې ده) الله تعالی د ده محبت د ټولو مجاهدینو او مهاجرینو په زړونو کې اچولی و. دی هغه أمیر و چې بت پرستو مشرکینو ته یې هم خپل ایمان وروښود او د ابراهیم علیه السلام په پیروی یې بتان مات کړل. هغه په حق ثابت پاته شو تر څو په همدې لاره کې مرگ ورته راغی. هغه واقعا د امت په سطحه یو (سړی) و. رحمه الله رحمة واسعة واسکنه الفردوس الاعلی.

**د دارالعلوم حقانیه مهتمم شیخ الحدیث مولانا انوار الحق صاحب**

الحمد لله الذي أمر بالجهاد. لتطهير الأرض من الكفر والفساد. ووعد المجاهدين بعظيم الأجر والثواب. والصلاة والسلام على رسوله مُحَمَّد الذي جاهد في الله حق جهاده بالقلب واللسان. والدعوة والبيان. وبالسيف والسنان، وعلى آله وأصحابه الذين بذلوا نفوسهم وأموالهم في الجهاد في سبيل الله طاعة لله وطلبا لثوابه، وسلم تسليما كثيرا. أما بعد فقد قال الله تعالى بعد أعوذ بالله السميع العليم من الشيطن الرجيم: (من المؤمنين رجال صدقوا ما عاهدوا الله عليه فمنهم من قضى نحبه ومنهم من ينتظر وما بدلوا تبديلا (سورة الأحزاب الآية ۲۳)

لقد قام الاتحاد السوفياتي السابق بالغزو لأفغانستان في ۲٥ ديسمبر/كانون الأول عام ۱۹۷۹ في سياق مطامع استعمارية للغزاة الروس في المنطقة، وصراع الامبراطوريتين - الروسية والأمريكية —حول مناطق النفوذ في إطار الحرب البادرة، حينها نهض الشعب الأفغاني، صامدا وأعلن الجهاد والمقاومة ضد الاحتلال الأجنبي ، وضحى بأغلى ما يملك من دمائه الطاهرة ، فقد استشهد في ساحات الوغى مئات الآلاف من المجاهدين، ولم تضع الحرب أوزارها إلا إذا خلفت الملايين من الجرحى والمعوقين والأيتام والأرامل والثكالى، وذلك إثر الإبادة الجماعية لعامة الناس ، إضافة إلى الدمار الشامل لعمران البلاد.

وأخيرا انسحبت القوات السوفياتية من أفغانستان عام ١٩٨٩، بفضل الجهاد من جانب الأفغان بدعم سخي من العالم الإسلامي . ولم يتوقف هذا الفتح العظيم عند هذا الحد فقط، بل أخذ سيل دماء الشهداء الأبرياء يواصل جارفة أطغي قوة في العالم حتى انهيارها بالكامل وطي بساطها من على وجه الأرض ولله الحمد.

لكن للأسف الشديد لم يعد السلام الشامل للبلاد ، فقد قامت حفنة من المرتزقة، وعملاء الأجانب ، بإشعال فتيل الحرب الأهلية بين المجاهدين أنفسهم ، فراحت البلاد ضحية الحرب الأهلية.

ومما زاد الطين بللا، أن هذا الوضع المأساوي شوه سمعة الجهاد والحركات الإسلامية في كافة أنحاء العالم الإسلامي ، وحال دون وصول الشعب الأفغاني إلى تحقيق هدفه السامي وهو إقامة الحكومة الإسلامية وفق آمال الشهداء الأبرياء والمجاهدين المخلصين. لقد أصبح البلد مستنقع الرزائل والفوضى والنهب والقتل والسرقة وغيرها من الجرائم الوحشية ، ولكن الله لا يضيع أجر عباده الصالحين ، وفي هذه البرهة العصيبة من الزمن ، فقد بايع عدد من طلبة المدارس الملا محمد عمر مجاهد – رحمه الله – أميرا لهم لإقامة الإمارة الإسلامية في البلاد.

لقد تمكنت هذه المجموعة المبايعة من طلبة المدارس الدينية بانتزاع السلاح من أيدي مجموعات من المقاتلين المفسدين ، ثم قامت بأزالة نقاط جباية الضرائب التي نصبتها اللصوص في ولاية قندهار.

وهكذا شرعت في اقتلاع جذور الفساد والفوضى هنا وهناك، ثم اتجهت لتسيطر على ولاية قندهار.

ثم واصلت طالبان زحفها باتجاه بقية الولاية الأفغانية وسيطرت عليها الواحدة منها تلو الأخرى ، ثم استمرت لها الانتصارات العسكرية إلى أن دخلت قواتها العاصمة – كابول– وأعلنت فيها الإمارة الإسلامية تحقيقا لآمال الشهداء. تلك هي كانت إمارة يضرب بها المثل في إقامة الحدود وترسيخ دعائم السلام في كافة نواحي البلاد، وحينها عاش الشعب الأبي آمنا مطمئنا على ماله ونفسه وعرضه.

ولكن للأسف الشديد أنى للعدو الصليبي أن يسمح بوجود هذا النموذج الأمثل من الإمارة التي كانت تستمد قوتها وإرشاداتها من سماحة الشريعة الإسلامية. لذا فقد احتال صهاينة العالم بنسج المؤامرة للاتاحة بالإمارة، حيث تكالب أشرس أعداء الله على وجه الأرض بقيادة أمريكا وبالمساهمة الفعالة من حلف الشمال الأطلسي (NATO) فبدؤا بالهجوم على الإمارة الإسلامية مستخدمين في هذه الحرب ،أحدث أنواع الأسلحة من طائرات وصواريخ وقنابل وغيرها من الأسلحة الفتاكة ، هذا وتجدر الإشارة بان الاحتلال الأمريكى كان أخطر وأكثر دمارة وشراسة من نظيره السابق على يد الجيش الأحمر الروسي.

فمما نتج من ذلك هو تاسيس الحكومة العميلة. فلم يكن للشعب الأفغاني المجاهد إلا أن يقوم من جديد بإنقاذ بلاده الطاهرة من مخالب الصليبيين ، والشيخ المجاهد الملا محمد عمر – رحمه الله – كان بالمرصاد فلم ييأس ويقنط من روح الله، وأعلن النفير العام ضد الصليبيين الغاشمين، والآن ولله الحمد ذاب الحديد وانتصرت العقيدة، لقد عجزت الأعداء من مواصلة احتلالهم، وبعد مضي ما يقارب عقدين من الزمن أعلن الانسحاب الفوري من أفغانستان حقا لقد أثبتت التجارب بان أفغانستان مقبرة الغزاة عبر القرون.

فإن كان هذا النصر المؤزر يدل على شيء فإنما يدل على فضل الله و نصرته لهذا الشعب ، ثم على فضل الجهود المشكورة التي قام بها الشيخ المجاهد أمير المؤمنين الملا محمد عمر –رحمه الله

اللهم ارزقه جنة الفردوس بمعية سيد الشهداء حمزة رضي الله عنه، آمين يا رب العالمين

أنوار الحق / أستاذ الحديث ومدير الجامعة دار العلوم الحقانية، أكوره حتك

مضافات إقليم خيبر پختونخوا

**د دارالعلوم حقانيه استاد شيخ الحديث مولانا مغفور الله صاحب**

حامدا و مصليا و بعد:

استلمت رسالتكم الكريمة التي أشرتم فيها أنكم تريدون إصدار كتاب عن حياة البطل الإسلامي الملا محمد عمر مجاهد – طيب الله ثراه وجعل الجنة مثواه – وقد سررت بمشروعكم

المبارك الذي خطط له الإخوة الفضلاء، فلا يسعني إلا أن أشكر أولا للإمارة الإسلامية في أفغانستان الحبيبة على ثقتها الغالية بشخصي المتواضع، و بقامة قصيرة مثلي..

وقبل أن نتعرض لمآثر الراحل الكريم وبطولاته النادرة أود أن أذكر قطعة من أبيات شعرية رثي بها الشاعر طالوت اليمني لملا مُحَمَّد عمر مجاهد بعد وفاته -رحمه الله-، فهي خلاصة وزبدة ما سأذكره في كلماتي البسيطة الآتية بعد:

تبكيك سانحة الأيام ياعمر

ويشكي لك منك الليل والقمر

تبكيك سانحة الأيام غربتها

قد أتعبتك ولماينقض السفر

وأنت تخطط فيها رسم عزتها

على قلوب ولماينمح الأثر

يا فارسا في ذرى الأفغان منبته

ومن سناه إليها النور ينتشر

يانارشاني قرى الأفغان مثبته

هذا الذي طرد الكفار يغلبهم

حتى رأين عتاة الروم تندحر

و بعد! فإن التحرير حول هذا المجاهد العظيم وزعيم الإمارة الإسلامية وفقيد الأمة الإسلامية: تشبه جعل الزفر في زافر - عصر البحر في كوزة-؛ بما أن حياته متشعبة النواحي متعددة المعاني مليئة بالإنجازات حافلة بالإسهامات العظيمة والخدمات الجليلة عصارتها السعي لتخليص الأمة الإسلامية من براثن اليهود و استعمار الكفر العالمي والطواغيت والخونة الذين

يواصلون الليل بالنهار في تمزيق شمل الأمة الإسلامية وتقطيع أوصالها إربا إربا وتفريق أجزائها شلوا شلوا، ورحم الله القائل:

تكاثرت الظباء على خراش

فلايدري خراش مايصيد

ولا يختلف أحد أن الفقيد رحمه الله هو الوحيد الذي لم يتوجه إليه أصابع الاتهام طيلة حياته حتى وقد اعترف ببطولاته الأعداء، "والفضل ما شهدت به الأعداء" إلا من أنكر حسه أو غالط في حقائق نفسه حيث ان كثيرا من المصادر التاريخية أو المواقع و صفحات التواصل الاجتماعي تشير الى ان االمقر الذي اتخذه لنفسه كان بمسافة قريبة جدا من مركز تواجد القوات الامريكية بحيث لو رأى أحدهم موضع قدمه لشاهد مكان القائد الراحل ولكن أنى لهم ذالک؟ و قد سلبوا قواهم العقلية والذهنية و طبع على قلوبهم، فكان العميان و المشلولين عهد اليهم مهمة القاء القبض على البطل الملا محمد عمر مجاهد.

فهذه الحالة شابهت بالحالة التي كانت في غار ثور للنبي ﷺ وصديقه الغار ابو بكر رضى الله عنه،لو رأى الكفار تحت اقدامهم لأبصرتهم ،لكن عمي الله أبصارهم وطبع على قلوبهم وخسروا في كيدهم.

هذا، ولم تكن رؤيته الجهادية وتطلعاته وطموحاته قاصرة على تحرير أرض الأفغان بل كانت تتعدى إلى العالم أجمع، وقد نوه بهذه الحقيقة كثير من الرؤساء والعلماء الربانيين الذين التقوا به في مناسبات مختلفة، إما في منطقة قندهار أو إما في مناطق أخرى متاخة لأفغانستان الحبيبة بالإضافة إلى أن عقيدته الراسخة وصلابته الإيمانية وغيرته الدينية تتجلى لنا من مقاطعه وكلماته و خطبه التي ألقاها على الشعب الأفغاني أو في مجالس العلماء أو حلقات المجاهدين الذين لازموهم ملازمة الظل، وزيارة الشيخ المحدث سليم الله خان – رحمه الله–والمفتي محمد تقي العثماني لهذا البطل الجليل معروفة بهذا لصدد...

و كان بخصوص تسليم أسامة بن لادن لليهود و الطاغوت الامريكي، واتخذ موقفا صارما من هذة القضية و رفض تسليمه لهم مهما كلفه الأمر. حتى سالت دموع الشيخ سليم الله خان تأثرا و انفعالا بشجاعة الشيخ ملا محمد عمر مجاهد و حماسته الدينية الى ان قال الشيخ محمد تقي العثماني – حفظه الله – أن ايماننا عند لقائنا بهذه الشخصية التاريخية كان ذرة صغيرة أمام جبل الأحد الايماني.

والقصص من هذا الباب كثيرة جدا سارت بها الركبان وتحدث عنها الفرسان، ولكن نظرا إلى أن كلمتي مهما بلغت من القوة والبيان لا توفى قطعا لهذه الشخصية حقها من الإطراء والتبجيل فاكتفي منها بهذا القدر.

وكما يتحدث عنه ممن عاشروه من زملائه المجاهدين بأنه في أغلب الأحيان بل في معظم أوقاته كان يكثر من تلاوة القرآن الكريم، وذكر الله عز وجل، والنافلة من الصلوات، وكأن بعض الصحابة – رضوان الله عليهم أجمعين– يتمثل أمام أعيننا، ولا غرو في ذلك، ففي التاريخ أمثلة كثيرة تشهد لمثل هذه الأخبارا و إن كذب الناس فالتاريخ لا يكذب.

وأشهد الله أن ملا محمد عمر من نوادر الزمان والأفذاذ القلائل الذين نالوا قسطا وافرا من الزهد والتقى والتفرس الإيماني الحاد النفاذ، يتوسم بها الأشياء، ويزنها بمعياره الشخصي مع استشارة واسترشاد العلماء المعاصرين الذي كان لهم فضل كبير وإسهامات بارزة في المجالين: القتالي والعملي ، ففي ست سنوات مزهرة لدور الإمارة الاسلامية اصبحت افغانستان مليء من العدل والامن والرخاء والقضاء الاسلامي العادل وشهد عليه الأعداء ايضا

و مما يجب التنبه له أن الذين اتخدوا لأنفسهم قنوات خاصة ناوين أن يشوهوا صورة هذا البطل و أن يفسدوا على الناس عقائدهم و أخلاقهم، ففيها اجحاف لا يستسغيه العقل و لايقبله المنطق.

وجدير بالإشارة أننا بفضل الله أولا ثم بعناية زعيم الإمارة الإسلامية الملا محمد عمر تسنت لنا زيارة الحرمين لأداء مناسك الحج والزيارة عام ٢٠٠١م، وذلك ضمن جماعة تضم كبار العلماء الربانين أمثال الشهيد – بإذن الله – الشيخ حسن جان والشيخ محمد فريد والدكتور شير على

شاه ومرافقه الخاص الشيخ العلامة مُحَمَّد نعيم المعروف ب كوني أخونزاده رحمه الله ، والشيخ المحدث حمد الله جان الداجوي رحمه الله، والفضل في ذلك كله يرجع بعد الله سبحانه إلى البطل الراحل الملا مُحَمَّد عمر مجاهد.

وأخيرا وليس آخرا فقد وافته المنية وهوفي هذا الكفاح المرير والصراع المتواصل مع الأعداء الأمريكان وقوى الشر العالمي، ومآثره تتناقله الأجيال وستبقى بإذن الله مصدر فخر واعتزاز للأمة الإسلامية تبعث فيها روح الفدائية والانتفاضة ضد الطغيان والفساد والظلم والاضطهاد..

حلف الزمان ليأتين بمثله

حنثت يمينک يا زمان فکفر

و ما کان قیس هلکه هلک واحد

و لكنه بنيان قوم تهدما

هيهات لا يأتي الزمان بمثله

ان الزمان بمثله لبخيل

هذا بعض ما جادت به قريحتي وهو غيض من فيض من سيرة هذا البطل الشامخ ولنا عودة قريبة لبسط الكلام في الموضوع اكثر - إن بقي في الأجل فسحة، سائلين المولى -جل وعلا- أن يجزي الراحل الكريم عما قدم للإسلام والمسلمين خيرا ويجمعنا به في مقعد صدق عند مليك مقتدر، إنه سبحانه ولي ذلك والقادر عليه.

والسلام عليكم ورحمة الله وبركاته .

**د مدارسو د لوی اتحاد وفاق المدارس د مشر شیخ الحدیث مولانا عبدالرزاق سکندر صاحب تأثرات**

لما كان مصطلح السياسة من مصطلحات الشرع و الدين فقام الأنبياء بسياسة مجتمع المسلمين على أسس الشرع و الدين و بعدهم رجال أولو العزم و النهى. و قد صح عند الامام مسلم رحمه الله انه ﷺ قال: كانت بنو اسرائيل تسوسهم الانبياء كلما هلك نبى خلفه نبى. و قال النووي رحمه الله في شرح هذا الحديث: أى يتولون أمورهم كما تفعل الامراء والولاة بالرعية و السياسة القيام على الشيئ بما يصلحه.

فكان سيدنا آدم عليه السلام اول خليفة على الارض، ثم جاءت من بعده ذريته و تعاقبت الأجيال من بعده، فكان كل حضارة و مجتمع يتخذ له حاكما يسوسه و يقوده، حتى ترى الأنبياء قائدين في أمور المملكة و تدبير المجتمع. فهذا سيدنا داود و ابنه سيدنا سليمان عليهما السلام، له المثل الأعلى في ذالک الصدد.

و يتضح هذا الأمر جليا بالحديث الصحيح الذي رواه الامام أبوداود رحمه الله في سننه عن جابر بن سمرة قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: لا يزال هذا الدين قائما حتى يكون عليكم اثنا عشر خليفة كلهم تجتمع عليه الأمة، و قال الملا علي القاري رحمه الله في مرقاة المصابيح: قال بعض المحققين: قد مضى منهم الخلفاء الاربعة و لابد من تمام هذا العدد قبل قيام الساعة.

فلما انتقل رسول الله ﷺ الى الرفيق الأعلى تولى الأمر أصحابه من بعده و استمر الأمر على هذا المنوال في زمن الصحابة و التابعين الى عصرنا الراهن.

فمن الذين بذلوا الجهود لاحياء النظام الخلافة و الدين هو أمير المؤمنين المجاهد ملا محمد عمر رحمه الله، الذي بسط العدل و الانصاف في عهده ما يشهد له أرباب العلم و المعرفة.

و أبرز نواحي حياة ملا محمد عمر المجاهد هو القيام بشئون عامة المسلمين و حل مشاكلهم حتى يسهل عليه المعيشة بمقتضى الشرع و الدين، فكان من الذين بذلوا حياتهم لتنفيذ الاسلام مقتديا لسنة الأنبياء عليهم السلام.

و من ميزاته قيام الأمن و الهدنة في منطقة أفغانستان و تطهير أراضيها من كافة أنواع المخدرات خلال العشر الأخير في القرن العشرين و كاله له مساهمة كبيرة في الحرب السوفيتية قبل ذالک.

فأبصر العالم الاسلامي في خلال سنوات من سيرة هذا البطل:

ـ أن النظام الاسلامي ضامن للأمن والسلامة اليوم ايضا ـ و حتى القيامة ـ كما كان يضمن بالأمس في زمن النبي ﷺ.

ـ أن نشر الأمن و الطمانية لايتوقف على كون المدبر صحابيا او تابعيا بل عزم أحد في هذا الزمن أيضا، بشرط أن يكون معتمدا على ربه، كما شهد التاريخ بأن هذا الشاب الناهض من المدرسة كيف قلب العالم بعزمه حتى أذعن له و أقر به كل العالم.

ـ و نبه العالم بقيادته الشخصية الفريدة أن النجاح و الكفاح لا يتوقفان على نشر الأخبار في المذياع و الاعلام فحسب، بل باالدأب و التضحية الذاتية.

هذا، و قضى ملا مُحَمَّد عمر رحمه الله كل حياته في خفاء و صمات و رغم أنه كان أمير المؤمنين عاش حياة ساذجة في البوادي و الريف و على رؤوس الجبال، و أحيى به سنة السلف في الزهد من الدنيا و الرغبة في الآخرة، و نفخ الروح في الشعب الاسلامي من جديد، و بسبب تضحياته للهدف الأرقى و وفاءه بالمقصد الأعلى يجنى العالم فوائدها و ثمراتها.

رحم الله ملا مُحَمَّد عمر المجاهد و رضى عنه، و أدار عليه من شآبيب رحماته و رضوانه، جعل تضحياته المبذولة مثمرة و جعل دماء الشهداء سببا لاعلاء كلمة الله و وفق لخلفه أن يتبع اثره. آمين

## د بلوچستان د ستر عالم شيخ الحديث مولانا منظور احمد مينگل تأثرات

محمد عمر عامر الاسلام

لا يخفى على أحد أن الاسلام قد عمره الله بعمر الأول و هو ابن الخطاب لم يزل الاسلام مكتوما و

مخفيا لم يعلن باشاعته أحد قط قبل عمر رضى الله عنه، و قد أعز الله الاسلام و المسلمين بعمر و تقبل دعاء نبيه ﷺ فى حقه و هو قوله اللهم أعز الاسلام بعمر ابن الخطاب او بعمرو بن هشام فقد وفق الله الاول و بعد الثانى عن رحمته و أخساه في قليب بدر، واظهر الله به الاسلام فى جميع العالم و فتح بلاد الكفار فى زمنه المبارک و نفع به العباد و البلاد جميعا، فلذالک قال ابن مسعود رضى الله عنه كنا أذلاء فقد أعزنا الله بالاسلام و في رواية بعمر بن الخطاب.

و قد برک الله في ذريته و جعل العمر الثاني عمر بن عبدالعزيز في أولاده و جعله خلفا له مع بركات من الله فنعم السلف و نعم الخلف و قد سلک هذا الثاني مسلک الاول و حذا حذوه واقتفى بآثاره و لم يخالفه مخالفة وقد جعل العمرين سلفا للأمة الاسلامية و للسلاطين الاسلامية الى يوم القيامة يقتدى بهما الى يوم التناد.

و ما كان يظن أحد أن سيولد هنا أحدسميا للعمرين و يغلبه الله على الكفار قاطبة الروسيين و الامريكين و يذلهم الله به و يجعلهم خاسئين امامه ولا يخفى عليک أن عمرنا الثالث ملا محمد عمر مجاهد له شأن ليس لغيره لاتدرک غيرته الدينية و لاتكنه شجاعته الايمانية، أعلن الجهاد عند ما كان الكفر و أوليائه مسيطرين على الاسلام والمسلمين، أعلن الجهاد عندما كان الروس و أهله يدعون الألوهية و الربوبية و قد هزم الله به و بانصاره من الافغان الروس و اوليائه . ثم هزم الأمريكين و حواريهم و أنصارهم و خذلهم و خذل أعوانهم من الذين يدعون الاسلام و يتخذون الكفار اولياء. و لايخفى عليه أن الاسلحة و الأمتعة و الطائرات الحربية اللتي كانت عند أمريكا ما كان عند هذا الفقير و لكن قد كان في حزب الله و حزب الله هم الغالبون.

لم يكن زمان دولته و امارته الا يسيرا و لكن رسم وكتب هناک تاريخا للعالم و أرى الكفار و أوليائهم أن الامارة الاسلامية، كيف تكون و أن العالم كيف يطهر عن الشر و الفساد و الزنا و السرقة و االقتل و غير ذالک من المنكرات و المنهيات. و ناهيک من شرفه و جلالته و ورعه و تقواه أن أحدا من المسلمين الكاملين الخلص الذين عندهم حياء لم يقدح و لم يطعن فيه و كيف يقدح فيه أحد لانه لم يكن ظالما و لا شارب الخمر و لا سارقا و لا خائنا في بيت المال كسلاطين المسلمين في زماننا الذين ليس لهم حياء و لا دين و لا ايمان و لا خوف من الله.

و عندما سيطر و صال الامريكا ذهب كثير من علماء باكستان الى لقاء ملا مُحَمَّد عمر و قد كان فيهم شيخنا العظيم رئيس المحدثين فى اوانه و استاذ الاساتذة سليم الله خان فتحدثوا معه حول تسليم اسامة بن لادن الى امريكا لتكون الامارة الاسلامية محفوظة فقال الملا مُحَمَّد عمر مجيبا هل عدد اصحابي أقل من عدد أهل بدر فقال العلماء لا أبدا لا. فقال الملا والله أن اسامة خرج من بلاد الرسول مهاجرا الى و عائذا بي و أنا أسلم الى امريكا لم يمكن هذا ان شاءالله قبل موتي. و عند ما رجع شيخنا الكبير سليم الله خان من افغانستان قال والله أن هذ الرجل ( الملا مُحَمَّد عمر) كانه قد صحب الرسول ﷺ ما كان عالما كبيرا، لا شيخا للحديث و لا مفسرا و لا مفتيا ولكن ايمانه يفوق ايمان العلماء الكبار و يقينه بنصر الله يزيد يقين العلماء كانه قد تخلف أحد من الصحابة فالذي يصدق بايمانه رئيس المحدثين و يعترف بجرأته و شجاعته و اعتماده على الله و توثقه بالله لايشک في ايمانه أحد بعد تصديق هذا المحدث الكبير رحمه الله عليه.

هذا: و قد بين كثير من المجاهدين أمامي و حلفوا بالله و قالوا والله كثير احاط بنا الامريكييون و قد فينا الشيخ مُحَمَّد عمر و خفنا كل الخوف و تزلزلت أقدامنا و قذف في قلوبنا الرعب فقلنا للشيخ ما ذا نفعل الآن؟ فقال: لم تراعوا لاتخافوا و الله انهم لايروننا ان شاءالله فوالله ان الامريكيين قد تعامت قلوبهم و أعينهم و لم ير أحدهم الشيخ مُحَمَّد عمر. ان الامريكا يدعي انه

لا يخفى عليه أحد الا أنه يراه بالكاميرات و بالآلات التصويرية فأين غاب عنه هذا الفقير و كيف أعماه الله سبحان و تعالى.

و اليوم ان هذه الامة تحتاج الى ابى بكر و عمر و على و خالد ، اللهم نج هذه الأمة من هؤلاء السلاطين الجبابرة و الفراعنة. ندعو الله سبحانه و تعالى أن يجعلنا ممن يقتدى بالصحابة بهؤلاء الأتقياء الأبرار: ملا محمّد عمر مجاهد والشيخ هبة الله اخندزاده و جلال الدين حقاني و امثالهم من المجاهدين الذين يجاهدون في سبيلک و لايخافون لومة لائم. اللهم اغفر لي و لوالدي ولاساتذتي ببركة هؤلاء المجاهدين. آمين

**د عربي نړۍ لوی عالم شيخ ابو محمد المقدسي:**

خدای دي پرامام ملا محمد عمر باندې رحم وکړي، د ده امثال په اوسنی زمانې کې ډېر کم ليدل کيږي، د الله نظام يي پر ځمکه نافذ کړ، مهاجرينو ته يي پناه ورکړه، د نصحيت گرو نصيحت يې ومانه او له کفارو سره ترهغو وجنگيدو تر څو يقين (مرگ) ورته راغی.

**د سعودي عربستان ستر محدث او فقيه علامه شيخ علوان:**

د تاريخ د کتابونو ډيرې پاڼې مې واړولې خو له ملا عمر پرته مې داسې حاکم پيدا نه کړ چې هغه دې خپله واکمني د الله تعالی له دين څخه قربان کړي وي الله دې پري ورحميږي او فردوس جنت دې ځای شي.

**دکتور حاکم المطيري الکويتي:**

د ملا محمد عمرمجاهد په وفات سره اسلامي امت يوستر مجاهد زعيم له لاسه ورکړ، داسې زعيم چې د يرغلگرې صليبي ټلوالې په خلاف يي تاريخي مقابله پيل کړه.

اي د اسلامي امت زعيمه! ته په رښتيا د اسلامي امت لپاره داسې امام وي چې د اسلامي امت موجود اوراتلونکي نسلونه، د هغوی ټول جهادي او فکري نهضتونو او فقهي مدارس به په تا پسي اقتداء کوي.

اي لويه استاذه! آيا ته په رښتيا له مونږه وکوچيدې؟!

**د عربي نړۍ مخکښ عالم دکتورشامل:**

ای د نړۍ ژبپوهانو ادیبانو!

راشئ د نړۍ د ټولو ژبو قاموسونه له سره ولیکئ، له هغو ټولو څخه د رجولیت (نارینتوب یا میړانې) لغت وباسئ او پرځای یې یوازې د (ملا محمد عمر) نوم ورځای کړئ.

**أبو حمزة الدرعاوي:**

دا شرعي مسئله ده چې څوک له دښمن سره د مقابلې په سنگر کې د رباط په حال کې وفات شي هغه شهید دی، که څه هم په عادي مرگ وفات شوي وی. خدای تعالی دي د شهید ملا محمد عمر (مجاهد) شهادت قبول او فردوس جنت ځای کړي.

**دکتور هانی السباعی**

اذهبوا شرقًا وغربًا وشمالًا وجنوبًا في تاريخ الممالك الإسلامية على مدار مائة عام، ستجدون أن هذا الرجل الحاكم المسلم الوحيد الذي يستحق أن يُلقب بالمجدد فعلًا. جدّد في كل شيء، لم يأتِ على حين غرة، لم يختاروه من مغارة، تاريخه ناصع وشاهد عليه، نشأ وترعرع في بيئة الإسلام، وكان الجهاد لازمة له.

هذا المجاهد بحق اسمه الملا مُحَمّد عمر مجاهد -كانوا يلقبونه هكذا بالبشتون المجاهد مُحَمّد عمر المجاهد ابن مولوي غلام نبي-، من أسرة عريقة، مات أبوه وهو ابن خمس سنين، هو من مواليد سنة ١٩٦٠م، ونحن الآن في ٢٠١٥ يعني مات ابن خمس وخمسين عامًا. لكن هذه السنون نجوم وكواكب ودرارٍ في سماء الجهاد، صفحة منيرة في سماء المسلمين، حفر لنفسه اسمًا بين هؤلاء العمالقة بين هذه الكواكب النيرات.

وعندما تذكر الملا عمر كأنك تستحضر عبق التاريخ؛ تتكلم عن عمر بن عبد العزيز، تتكلم عن الخلفاء الراشدين، وكأنك في عصر صحابي، لكن الناس في واد وهو في واد آخر!

هل رأيتم حاكمًا بهذا الوفاء؟ هل رأيتم حاكمًا مسلمًا يحكم بالعدل في هذه الحقبة التي نعاصرها نحن أو التي مضت؟

لم نجد، فهو مجدد، جدَّد شباب الإسلام، وأثبت أن الحاكم المسلم بحق يستطيع أن يأمر فيُطاع. كلمة (من يجدد لها أمر دينها) هذه الكلمة قد تشمل العلماء، تشمل الفقهاء، تشمل المجاهدين، تشمل كل من يبرز في فن من هذه الفنون ومن العلوم، ومن الزهاد والعباد، كلمة عامة تشمل كل مائة عام من يجدد لها أمر دينها. لكن الذي يستحقها بجدارة هم السلاطين إذا عدلوا، كعمر بن عبد العزيز كان في زمانه -رحمه الله- علماء، وسبقه من كان أفضل منه، وبعده جاء من الأخيار أيضًا، ورغم ذلك كان على رأس المائة الثانية المجدد بلا منازع؛ لأنه يأمر فيُطاع، هو سلطان له السلطة والقوة، ورغم ذلك زهد في ما عند الناس، زهد في الحياة الدنيا ومتاعها.

## تيسير علوني د الجزيرې نړيوالې شبکې خبريال

ما د ۲۰۰۱ ميلادي کال د اپرېل مياشت کې له ملا محمّد عمر مجاهد سره وليدل او همدغه مياشت کې مې د طالبانو هغه پلاوي سره هم د قطر پلازمېنې دوحې ته د الجزيرې تلويزون د خبريال په توگه سفر وکړ.

له دوحې د راگرځيدو پر مهال د طالبانو پلاوي بايد له ملا محمد عمر سره د سفر د پايلو په اړه ليدلي وای، نو ما د طالبانو له يو چارواکي وغوښتل، چې ملا صيب سره د ليدو زمينه راته برابره کړي او چارواکي هم ژمنه وکړه، چې دا کار به کوي.

دغه مهال ملا محمد عمر مجاهد له ژورنالېستانو سره خپل ملاقاتونه بند کړي و او لا مل يې دا و، چې ژورنالېستانو به د ملا محمد عمر په انځور وېستلو ټينگار کاوه. په اولو وختونو کې د ملا عمر دفتر له ژورنالېستانو ژمنې اخيستې، چې د انځور اخيستو هڅې به نه کوي، مگر يو شمېر ژورنالېستانو به بيا هم د ژمنې ماتولو هڅه کوله او ما په دغسې يو سخت وخت کې د ملا محمد عمر د ليدو تلوسه کوله او ما دا خبره وکړه، چې زه د ژورنالېستيک رسالت لپاره ملا صيب سره نه گورم، بلکې زما يوازنۍ غوښتنه د ملا صيب ژوند په اړه معلومات او د ده ليدل دي.

ملا محمد عمر مجاهد زما غوښتنه ډېره ژر ومنله او په سبا مازیگر یې د «امیرالمؤمنین دفتر» ته وروغوښتم. دغه دفتر ته وروسته له هغې ورغلی وم، چې د نوموړي پخوانی دفتر د یوې چاودنې ښکار شوی و او دغې چاودنه کې د ملا صیب تره او ځینې نور خپلوان وژل شوي وو او ما په خپلو سترگو هغه کنده هم وکتله، چې د چاودنې له امله رامنځته شوې وه.

د ملا محمد عمر دفتر او استوگنځای د عامو خلکو د کورونو په څېر و او د دفتر مخې ته هر ډول خلکو او موټرو د تلو راتلو اجازه درلوده.

موږ په وړوکي رسمي موټر کې په ډېره اسانۍ د ملا محمد عمر رسمي دفتر ته ننوتلو او د هغه ځینو همکارانو موږ یوې لویې خونې ته بوتلو، چې افغاني قالینې او له پاسه پرې وړې توشکې هوارې وې.

په دغه کوټه کې هېڅ داسې ځانگړې ځای، یا څوکۍ نه وه، چې نورو هوادونو کې د مشر لپاره کېښودل کیږي او د خونې دیوالونه هم له هر ډول زینت او ښکلا بې برخې ساده باده وو.

لږه شیبه وروسته ملا محمد عمر مجاهد له خپلو دوو ساتونکو سره خونې ته راننوت او ناست خلک ټول د نوموړي سلام لپاره په کتار ودرېدل او زه په دغه کتار کې درېیم یا څلورم تن وم. د طالبانو د بهرنیو چارو وزیر، مولوي وکیل احمد متوکل زه ملا صیب ته وروپېژندم.

نری دنگ سړی و، توره گڼه ږیره یې وه، یو نیم سپین تکي هم په کې و، ښکلې څېره یې وه، افغاني دودیز کالي یې په تن و او توره افغانۍ لونگۍ یې پر سر وه. د سړي رعب او هیبت زه دې ته پرېښودم، چې زه ملا صیب ته ځیر ځیر وگورم، مگر هغه مهال، چې نوموړی د خونې په ښي کونج کې کیناست، بیا مې له یو اړخه په ځیر ځیر وروکتل.

نوموړی ډېر درووند او بارعبه مشر و، خپلو همکارانو او کشرانو سره یې تعامل د پام وړ و.

ملا محمد عمر مجاهد سره د ليدو پر مهال مې فکر وکړ، چې زه د يو ربښتيني حاکم په حضور کې يم او سره له دې، چې واکمني يې ډېره ساده او له هر ډول رسمياتو خالي وه، مګر بيا يې هم په جلسه رعب ډېر زيات و.

د دفتر دروازه تل د ټولو پر مخ خلاصه وه. داسې ځانګړي او قوي امنيتي تدابير نه تر سترګو کېدل او زه خو له رسمي چارواکو سره ورغلی وم، نو ځکه هېچا را څخه هېڅ پوښتنه ونه کړه، مګر له عامو افغانانو مې چې پوښتنې کړي، نو راته يې ويلي، چې دروازه يې د عامو افغانانو او په ځانګړې توګه د علماوو او رسمي مامورينو لپاره تل خلاصه وي او عام ولسي وګړو سره يې هم ليده کاته په ډېره اسانه کېدل.

ملا محمد عمر مجاهد به له عامو مناسبتونو لکه د جمعې او اخترونو لمونځونو څخه هېڅکله هم نه غيبېده. ښار ته به هم په داسې وخت کې راووت، چې موټر به يې په خپله چلاوه او چې د لمونځ وخت به راغی، نو خپله به جمعې ته ورلاندې شو او لمونځ به يې ورکړ. ډېری وخت به مازيګر له خپلو ملګرو سره په چکر ووت، خپل څادر به يې وير کړ او خبرې به يې کولې. زه فکر نه کوم، چې ملا عمر مجاهد دې کومه ورځ په څوکۍ کيناستلی وي.

په عامه توګه ويلی شم، چې ملا محمد عمر مجاهد هېڅ سختو امنيتي تدابيرو ته اړتيا نه درلوده، ځکه چې ده ځان ولسي سړی باله او ټول کړه وړه يې د ولسي خلکو په څېر وو، هېڅکله يې ګڼ شمېر ساتونکي نه درلودل او نه يې د موټرو اوږده کتارونه خوښېدل.

زه په لنډو ټکو ويلی شم، چې ملا محمد عمر يو ربښتينی افغان و او اصولي سړی و او داسې ډېره ستونزمنه ده، چې يو وخت کې دې سړی هم اصولي وي او هم سياستوال.

زما د تجربې له مخې ملا محمد عمر مجاهد د کلمې په اصلي معنا يو نر سړی و او د سړيتوب ټول مثبت خويونه په کې راټول شوي وو. خو بيا هم له ټولو هڅو سره سره په دې نه توانيږم، چې د ملا محمد عمر د ستاينې حق ادا کړم او دغه الفاظ نه لرم، بس دومره وايم، چې ملا محمد عمر يو بې سارې قائد، زعيم او مشر و.

**مصري ليكوال، مؤرخ او ژورناليست ابوالوليد المصري ( مصطفى حامد)**

ومضى سادس الراشدين (الملا عمر)

الحجه الدامغة على مسلمى هذا الزمان..

عاش وحيداً وغريبا،

حتى وهو أمير،

ثم تركنا وهو مازال.. وحيداً.. وغريباً،

سبق الجميع ولم يدركه أحد،

لحق بمن كان قبله من الأفذاذ،

وأتعب كل من يجيء بعـده.

على مثال الرسول الذي أحب،

نشأ يتيماً وفقيراً..

فكان أباً لأمةٍ عانت اليتم والضياع..

قوياً كالأسد الهصور..

رقيقاً مثل نسائم الرحمـة..

حزيناً.. شأن من يرى بداية الطريق ومنتهاه..

تركنا ملتحقاً بمن هم أفضل منـا.

وضع أمته على أول طريق النصر،

ثم شهق مودعـاً.

رحل وحيداً وحزيناً كما جاء.

الأفغان / آخر الرجال / إما أن ينقذوا أمتهم،

أو ليبحث المسلمون لأنفسهم عن كوكب آخر..

ومن يلومهم إن هم فعلوا ؟؟،

ألم يرحل عنهم.. وحيداً وغريباً وحزيناً،

" عمر".. سادس الراشدين ؟؟

**ليكوال او ژورنالست أحمد موفق زيدان**

نجح الملا مُحَمَّد عمر في نقل الجهاد الأفغاني من جهاد الفصائل والحزبية الضيقة، إلى جهاد الأمة، فكانت لحظة تاريخية مفصلية، سما فيها على الحزبية الطالبانية، فدعا كبار علماء أفغانستان ووجهاءها لتشكيل مجلس علمائي قبلي يسترشد بآرائه فاختاره أميراً، كان عاملاً بنصيحة ابن مسعود ﷺ: «لا يزال الناس بخير ما أخذوا عن أكابرهم وأمنائهم وعلمائهم، فإذا أخذوا من صغارهم وشرارهم هلكوا»، واستقطب الملاّ بحنكته عديداً من النخب الأفغانية، ببعده عن آفة التكفير والتخوين والعمالة، حتى ممن كان يقاتلهم، فكان مُقلاً في الحديث، فنجح في إحداث نقلة نوعية يدركها كل من عايش تلك الفترة وما بعدها حين نقل جهاده من الحزبية إلى الأمة الأفغانية؛ فوسّع حاضنته الاجتماعية مدركاً تماماً أن السؤدد مع السواد، لا بالتعالي والتكبر عليه، ولا أزال أذكر حين كانت قواته تدخل كابل وهو يصلي طوال الليل داعياً أن تُفتح بلا قطرة دم كما أخبرني من أثق به.

**په شام کې اسلامي مبارز دکتور عبدالله محمد المحیسنی**

ملا عمر وکوچید داسې کلمه ده چې ما نه گمان کاوه او نه مې غوښتل چې د اوریدو ورځې ته یې ژوندی پاتې شم، خو دالله تعالی عادت په دې جاري دی چې کل من علیها فان..

ملا عمر وکوچید... هو وکوچید خو!

چې د مسلمه امت راتلونکو نسلونو ته یې په توحید باندې د ثبات معنی ورښودله، دفداکارۍ او استقامت په معنا یې پوه کړل.

ملا عمر وکوچید! خو له هغه وروسته چې په عملي توګه یې مسلمانانو ته دسورة کافرون او سورة ممتحنه تفسیر وکړ.

ملا عمر وکوچید! خو له هغه وروسته چې کافرانو ورته وویل: چې بودا بتان پرېږده، موږ به مالي مرسته درسره وکړو خپل جهاد پرې کوه.

لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چې کفارو ویلي وو، یو کال زموږ دبتانو عبادت وکړه، او دا ژمنه درسره کوو چې یو کال به موږ ستا د رب عبادت کوو.

ملا عمر وکوچید! له هغه وروسته چې دامت په حافظه کې یې دا نقش کړل چې هر مصلحت ولو که هر څومره لوی وي خو دتوحید د عقیدې د ساتنې سره په ټکر کې شي نو هغه تش سراب دی، نو وګورئ هغه له میلیونونو ډالرو تیر شو، خو شرک ته یې اجازه ورنکړه.

ملا عمر وکوچید! وروسته له هغه چې وربانديې د شوروي او ناټو امپراتورۍ راټولې شولې نو د هغه څواب دا وو، حسبنا الله ونعم الوکیل، نو دهغوی دځواکونو زور وخوت لکه په ابراهیم علیه السلام باندې چې اور بې وسه شوی و.

ملا عمر وکوچید! له هغه وروسته چې داسې کارنامې یې ترشا پرېښودلې چې شاید راتلونکي نسلونه وربانديې د خیالي کیسو ګمان وکړي.

هغه په لسان حال سره د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حدیث ولوست: مسلمان د مسلمان ورور دی نه به یې دښمن ته سپاري او نه به ظلم وربانديې کوي، نو زه هم مسلمان یم خپل مسلمان ورور اسامه کافر ته نه سپارم.

پدې اړه په باریکو مسئلو پسې ونه ګرځید چې د مصلحتونو په باب کې د ځان لپاره لار پیدا کړي.

ملا عمر وکوچید! نوموړی له هغو لږ کسانو څخه و چې زما د زړه دا ارمان و چې تر هغو مړ نشم چې د هغوی په لیدلو مې سترګې نه وي یخې شوې، نو ای الله! ته مو له هغوی سره په جنت الفردوس کې یوځای کړه.

ملا عمر وکوچید! وروسته له هغه چې خپله مشهوره مقوله یې وویله: (الله تعالی دنصرت وعده راسره کړې او امریکا د ماتې، زه به وګورم چې کومه وعده ډیره رښتونې ده) ای امامه! الله تعالی رښتونی کړلې، امریکا ماتې وخوړله..

ملاعمر وکوچید! راتلونکو نسلونو ته یې تر شا ستر میراث او لویه مدرسه پریښوده، خلکو ته یې عملا وروښودله چې بریا د صف له وحدت او یو موټي کیدو پرته امکان نه لري.

نو ای زما قومه! آیا د شام لپاره کوم ملا عمر نشته؟

ملا عمر وکوچید! له هغه وروسته چې خلکو ته یې وروښودله چې شرعي سیاست چې کله په ارزښتونو باندې له ثبات او قربانیو سره مل وي نو سرسخته دښمنان زموږ د شرطونو منلو ته اړباسي.

په ټولو خلکو یې دا حجت قائم کړ چې د رښتوني اسلامي نظام د حاکمیت لپاره (لکه څنګه یې چې الله جل جلاله غواړي) لیار یوازې جهاد في سبیل الله دی، دیموکراسی او علمانیت د شریعت د نفاذ لاره نه ده.

کوچیدلو یې غمژن کړو، خو زموږ لپاره دا کفایت کوي چې دالله تعالی دین د رجالو په فقدان نه دریږي، زموږ لپاره دا کفایت کوي چې الله جل جلاله په خپل دغه قول تربیه کړي یو. (وما محمد إلا رسول قد خلت من قبله الرسل أفإن مات....)

ملا عمر وکوچید! زموږ لپاره دا کفایت کوي چې موږ پوهیږو چې ترشا یې داسې ملګري پرې ایښي چې د هغه یون به تکمیلوي او د هغه په مسیر به روان وي، موږ د طالبانو لښکر ته وایو: تاسې زموږ د سرونو تاج یاستئ، ډیر ځلي مو ارزوګانې کړي چې کاشکې له تاسې سره وای، ثابت قدمه اوسئ، ای د الله د دین رجالو، تاسې د ثبات په لوړو درجاتو فائز یاستئ.

## د هیواد د څو لیکوالانو د لیکنو ځینې برخې

**استاد محمد زمان مزمل**

ملا محمد عمر مجاهد چې افسانو ته په نړدې ژوند او جهاد یې یوویشتمه پېړۍ پیل کړه، د هغه مرګ تېره اونۍ د هغه نږدې دوستانو تسلیم کړ.

هغه د نړۍ په تاریخ کې د تر ټولو لوی نړیوال ایتلاف سره د جنګ مشر و، بلکې هغه د یو قطبه نړۍ د مخکښې امریکا سره د مقابلې چلنج او جګړې ته په هغه سادګۍ او ایمانداری ننووت چې نن یې امریکا د پیل شوې جګړې پاتې او پیچلې پړاو د آسیا د ځواکمن هېواد چین په ثالثۍ حل یا هم بلې توطیې ته سپاري.

که څه هم سیکولران، کمونستان او غرب ته پناه وړونکي افغانان به د مرحوم امیر په هکله هر څه ووايي او ولیکي، خو هغه د افغانستان د تاریخ په حساس پړاو کې د امریکا د یو قطبه نظام د اشغال سره د ټکر او جنګ حماسه د تاریخ وروستی باب کړ.

**افغان لیکوال عبدالرحیم ثاقب**

که د مرحوم امیر المؤمنین په لاس تر سره شوې کارنامې ټولې دلته لیکل غواړو ښایي ډېر وخت او ډېره اوږده لیکنه وغواړي.

څکه د نوموړي د همدغه اسلامي تحریک ځانګړتیا یواځې د امنیت تأمینول نه بلکې د هغه ترڅنګ د شرعي احکامو تطبیقول، د هیواد په ټولو قضایي، تقنیني او تنفیذي اداراتو کې مطلوب اصلاحات راوستل هم ول.

د امیر المؤمنین د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال په افغانستان کې د شرعي حدودو د تنفیذ ترڅنګ په نړۍ کې د مستضعفو مسلمانانو له حقوقو دفاع کول او د هغوي مظلومو افرادوته د خپلې واکمنۍ تر سیوري لاندې پناه ورکول هم میسر ول.

د مرحوم امیر المؤمنین شخصیت د ټولو هغو نیکو مواصفاتو متمثل و چې یو مسلمان قائد یې باید ولري. تقوی، تواضع ،خود گذري، ایثار او خواخوږي یې د ژوند لازمه ځانګړتیاوې ولې.

د نوموړي د حاکمیت په مهال مسلمانانو د نړۍ په کچه په افغانستان کې یواځینی داسې حکومت درلود چې نړیوالو مستبدینو د ظالمانه اوامرو او غوښتنو په مقابل کې یې د اسلامي نخوت او سرلوړي له مخې د نه ویلو توان درلود.

د ده د فاتحانه قیادت په مهال د لومړي ځل لپاره د کفری نړۍ تبشیري منحرف منصرین (د شلترنو مسیحي مؤسسې کارکوونکي) د تنصیر منحرفي عقیدې ته د دعوت په جرم ونیول شول، د زندان تورو تمبو ته واچول شول او په شرعي محکمې کې د خپلو ناروا اعمالو د ترسره کولو په جرم مجازات کړای شول.

د ده د شرعي واکمني په مهال شرعي حدود نافذ او مسلمانانو یې په ټولنې کې د تنفیذ مثبت اثرات ولیدل. او بالآخره د ده د شرعي واکمنۍ په مهال په هیواد کې په ښکاره د شرک، بدعتونو اونورو منکراتو په خلاف په دولتي سطحه هلې ځلې پیل شوې.

رښتیاهم د امیر المؤمنین په قیادت کې د اسلامي امارت د ۷ کلنې واکمنۍ په مهال په ډیرو سختو شرائطو او اقتصادي ناخوالو کې د ژوند په مختلفو برخو کې د توقع خلاف ډېر کار وشو.

له اداري اصلاحاتو نیولي، تر قضایي عدلي، فرهنگي اقتصادي او تعلیمي سمونو پوري د نظام په ټولو برخوکې مطلوب اصلاحات رامنځته شول، په عمراني برخه کې په ډیرو نامساعدو اقصادي شرائطو کې ډېر پرمختګ وشو، د حکومتي اداراتو په بیا فعالولو کې دومره کار وشو چې د هیواد په ډیرو لیري پرتو سیمو کې ټول حکومتي ادارات (ولسوالۍ) او علاقه دارۍ په مکمل ډول فعاله او د خپل فعالیت په سیمه یې پوره کنټرول درلود چې داخبره د معاصر افغانستان په تیر ۲۷۶کلن تاریخ کې ساری نه لري.

**لیکوال او مفکر استاد عبدالهادي مجاهد**

ملا محمدعمر مجاهد د یوه رښتیني مسلمان رهبر په حیث نه د کفري نړۍ له لویو ځواکونو مرعوب شو، نه یې له نوي نړیوال نظامه سترګې وسوې، نه یې (د ملګرو ملتو) او (د امنیت د شورى) د کفري قوانینو بندګي ومنله، نه له چا سره په کوم کفري (نظامي) او یا کوم (سیاسي) تړون کې شامل شو، نه یې د غرب او یا شرق په نزد د منل کېدلو په مقصد په خپل نظام کې پردي معیارونه مراعت کړل او نه هم د چا سیاسي، اقتصادي او او نظامي بندیزونو او او تهدیدونو ته ورتسلیم شو.

هغه دا هرڅه ځکه وکړل چې هغه (مسلمان) و او پر دې یې عقیده درلوده چې لکه څنګه چې د (مسلمان) دین او عقیده اسلامي ده همداسې باید د هغه (سیاست) او نظام هم اسلامي وي. ځینې (پردي پالو) او لنډ فکره خلکو ته به کېدی شي د هغه له لوري د د دغه ډول دریځ خپلول د هغه ساده ګي او د معاصرې نړۍ له سیاسي وضعیت او حالاتو ناخبري ښکاره شي، خو حقیقت دا دی چې هغه ساده او ناخبره نه و، بلکه هغه یو رښتینی مسلمان رهبر و چې د اسلام په حقیقي روحیه سمبال او یو کلک (شعوري مسلمان) و چې په هیڅ صورت یې په اسلام او اسلامي سیاست کې (پیوندکاري) نه منله. زه د داسې یو چا په حیث دا څو کرښې نه لیکم چې هغه یې نه وي لیدلی او نه یې وي پېژندلی. ما هغه مرحوم له نیږدې لیدلی و او د هغه له فکر او نظریاتو مې له ډېرې نیږدې ځان خبرکړی وو.

د ملا محمد عمر مجاهد د فکر او د اسلامي سیاست د خالصتوب راز په دې کې و چې هغه د اوسنیو نورو سیاستمدارانو په څېر د معاصر غرب د سیاسي فلسفې د فیلسوفانو نظریات نه لوستي و او نه یې باور پرې ورلود. د هغه د عقیدې او سیاسي تفکر سرچینه د (ژان ژاک روسو)، (مونتسکیو)، (هوبز)، (جان لاک)، (سپینوزا)، (میرابو)، (داروین)، (کانت)، (سارتر)، (ماکیاولي) (فروید)، (مارکس)، (نیچه)، (چرچل) او د (فوکویاما) له نظریاتو نه وه، بلکه هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلّم او د صدیّق، فاروق، علي، عثمان، سلمان، ابوذر، بلال، خالد او عمر بن عبدالعزیز رضي الله تعالی عنهم کیسې او رېدلې وې او د هغوی ساده خو پوخ او اصیل فکر یې خپله

تګلاره ګرځولي وه. او له همدې امله يې تر وروستۍ ساه د شريعت التزام تـه د دنيا د خلکو پر توصيو او فرمايشاتو ترجيح ورکړه.

**د حقيقت مجلې مسؤل مدير مولوي نعيم الحق حقاني هروي:**

ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله يک شخصيت فرا ملى و متعلق بـه همـۀ جهـان اسلام بود او درست است که زادگاهش افغانستان بود اما آرمانش آرمان جهانی بـود حـرکتش حرکت اسلامی بود حرکتی که ملت های مسلمان از اقصی نقاط جهان برای موفقیت و پيشرفت شان دعای خير می کردند و در يک کلام او چشم اميد تمام آزادگان مسلمان در عصر حاضر بود.

ملاصاحب مرحوم يک افغان مسلمان بود امـا متعلـق بـه همـه جهـان اسـلام، متعلق به مظلومان و بی نوايان، متعلق بـه درد کشيدگان مسـلمان، متعلـق بـه آنـانی کـه در عصر حاضر تشنۀ کسی بودند که خوی و خصلت فاروق رضی الله عنه را داشته باشـد، غيـرت صلاح الدين ايوبی را صاحب باشد، چون خالد رض باشد که دشمنان از بـردن اسـمش به وحشت بيفتند و دوستان و مسلمانان از گرفتن نامش احساس عزت، آرامـش و غـرور بکنند...

**ليکوال او مبصر أحمد فارسي**

امير المـومنين مـلا محمـد عمـر مجاهـد رحمـه الله رحمـة واسـعة، امـام عـادل، امير با حکمت، قائد شجاع، رهبر متقی، مجاهد مرابط وعـالم بـا عمـل و مجـدد قـرن خـويش بود.

دنيا، حکومت وقـدرت بـا لـذت و متـاع آن نتوانسـتند انـدکی از ايسـتادگی، استحکام، پايداری، ثابت قدمی، وفا به عهد و وعده با خالق و مخلوق ايـن پيکـر آهنين بکاهند. برای شخص عادی ممکن نبود که بخـاطر حکـم شـرع کـه بـه گـمان بعضـی از ساده لوحان فرعی و ناچيز بشمار می رفت سر اطاعت به طواغيت جهـان خـم نکنـد و يـا در مقابل پيشنهادات آنان تسليم نگردد. تنها ولی خداونـد متعـال مـی توانـد بخـاطر حکم شـرع از پيشنهاد کفار مبنی بر به رسميت شناختن حکومت وی توسط همه جهان، رفع

قیودات و محاصره های اقتصادی و کمک های بی مقابل چشم پوشی کند و اینهمه را در مقابل احکام شرع ناچیز بداند.

بالاخره این مجدد قرن و مجاهد مرابط آنچنان عزیز و مردانه وار از این جهان رحلت کرد که حتی دشمن نیز نتوانست از این عزت و سربلندی که الله متعال به وی ارزانی فرموده بود انکار کند.

### د تولنیز رسنیو فعال عبدالسلام وزیروال

موږ لار ورکې وو، زموږ هر څه لوټل شوي ول، موږ په سپیو داړل کیدو، په موږ د رقص مرده ابتکارات کیدل، زموږ له خوئندو څخه تیونه پرېکیدل، زموږ ښځې د مکروریانو له دنګو ماڼیو څخه غورځول کیدې، او زموږ ماشومان پوستو ته د لواط لپاره سوق کیدل؛ موږ په تیارو کې ورک وو، زموږ له پوهنتون څخه قصابخانه جوړه وه او له روغتونه مو زناخانه.

ګرانه امیره

همدا ته وې چې زموږ لپاره د امید سپرغۍ شوې؛ ته زموږ لپاره د نجات پرښته شوې، ته زموږ د درد درمان شوې او زموږ د زخمي او پرهر پرهر وجود لپاره فضل د سبحان شوې.

تا موږ ته یو فکر را کړ؛ تا موږ ته په توره تاریکۍ کې یو مشال روښانه کړ، موږ ته دې لار وښوده او د مشال په تته رڼا کې دې د بقاء په لاره رهبري کړو.

### نویسنده و عالم دین مفتی انعام الله حبیبي سمنگانی

حرکت ایمان آفرین ملا محمد عمر مجاهد (رحمه الله رحمتاً واسعا) اگر از یک سو ملت ستم دیده و الم رسیده ء افغان زمین را از پنجه های خونخوران مظلوم ستیز نجات داد از سوی دیگر در بدن هزاران مسلمان آسیای میانه (تاجکستان، ازبکستان وغیره) روح تازه بخشید، اهل جهان با دیده های عبرت تماشا نمودند چگونه یک بار دیگر با نعره های الله اکبر مجسمه های ننگین بودایان در خاک دلیران پارچه پارچه شد، بلی

امروز هم بسیاری از دیموکراتان افغان به یاد آن مجسمه ها اشک میریزند و لیکن فرزندان اصیل اسلام به تعمیل این سنت ابراهیمی (ع) صد ها سپاس به روح ملا محمد عمر مجاهد می فرستند. ملا محمد عمر مجاهد برای همه سیاست مداران دین فروش ثابت نمود که همچون محمود غزنوی بت شکن است نه همچون شما بت فروش، بلی بسیاری از رهبران جامعه ء اسلامی امروز با ترویج فرهنگ و عقائد جهان غرب به فرزندان اسلام بت می فروشند، ملا محمد عمر مجاهد در صحنه ء عمل ثابت ساخت میوزیم های ما به مجسمه های نیاز دارد که گذشته ء ما را به بت پرستان بپیوندد.

بتان شکست فراوان و بت پرستان کشت

وز آنچه کرد نجسته ست جز رضای اله

**مفتي حسن زوی د شریعت مجلې مسؤل مدیر**

د ملا محمد عمر مجاهد دینداري، تقوی، جهادي اهدافو اوملي منافعوته وفاداري، د شریعت په لاربنوونو استقامت او نا متزلزل قیادت اوسیاست د ده د ولسي محبوبیت تر ټولو اساسي او اصل لامل و. د ده همدې امتیازي شان هغه داسلامي نړۍ لوی قائد وګرځولو، نو ځکه د نړۍ ټول مسلمانان او جهادي حرکتونه ورته دامیرالمؤمنین خطاب کوي اوپه کارنامو یې ویاړي.

زه پوره باورلرم چې تاریخ به د هغه اتلولي هېره نکړي؛ پدې اړه به سم قضاوت وکړي؛ تاریخ به هغه رحمه الله د صلاح الدین ایوبي په څېر د اسلام د سترو او نامتو اتلانو څخه وګڼي.

**سعید بدخشانی نویسنده افغان**

پس از عقب نشینی امارت اسلامی و اشغال کشور توسط کفر جهانی بسرکردگی آمریکا حتی یک ساعت هم از خاک وحریم کشور مجاهد پرور خویش بیرون نشد، در طول اشغال همه تکالیف ومشکلات را متحمل گردید، در این سالیان متمادی یکی از اعضای خانواده و فرزندان مجاهد خویش را ملاقات نکرده بود، علاوه بر این

مرحوم امور جهادی و امارت اسلامی را بطور احسن تا آخرین لحظه و رمق حیات خویش پیشبرد که این زندگی فقیرانه وماهرانه، آنهم در داخل کشور همه دسایس، تبلیغات وتکنالوژی پیش رفته کفار جهانی را رسوا وخنثی ساخت، بلی! من کان الله کان الله له.

سلام علی روحک فی الخالدین !

****

## ضمائم

### د امیر المؤمنین ځینې ویناوې، مرکې، لیکونه او فرمانونه

### پرافغانستان دامریکا له یرغل څو ورځې وړاندې

### اسلامي امت او د افغانستان میړني ولس ته د عالیقدر امیر المؤمنین وینا

بسم الله الرحمن الرحیم

نحمده و نصلي علی رسوله الکریم

اما بعد: فأعوذ بالله من الشیطن الرجیم. بسم الله الرحمن الرحیم. قال الله تعالی: و انتم الاعلون ان کنتم مؤمنین.

محترمو مسلمانانو او د افغانستان غیور ولسه!

په تاریخ کې دا دریمه امپراطوري ده چې پر موږ باندې تپل کیږي او تحمیلیږي، تاسو ټول په دې خبر یاست چې د انګریزانو څه حق وو چې په افغانستان باندې یې حمله وکړه یا یې تعرض کاوه؟ هلته خو اسامه نه و؟ د روسانو څه حق و چې په افغانستان باندې یې حمله کوله یا یې تعرض کاوه یا یې اشغالولو ؟ هلته خو به اسامه نه وو ؟ اوس دا دریمه امپراطوري ده چې پر موږ باندې تحمیلیږي، تاسو ټوله په دې پوه یاست چې دا یوازې د اسامه موضوع نه ده، دا د اسلام سره ضد او عناد دی چې دې خلکو را اخستی دی، دا صحیح ده چې په امریکا کې دا پیښه شوې ده، هر سړی په پوه دی چې داسې پیښه په داسې منظم ډول پیښه دا د یوه مهاجر او بې وسائلو، بې سر و سامانه سړي په وس پوره نه ده.

دا هیڅ امکان نه لري، دا چې هر څوک دي او هر څوک چې یې کوي، دوی ته ښه معلوم دي، پرهغه باندې دوی لاس نه بړدي، دوی یو واري دا موضوع سر ته رسوي

چې هلته واقعي مسلمانان دي او واقعي اسلام دی، واقعي د يو دين ږغ ځيني پورته کيږي، دا دوی د خطر زنګ بولي او دغه د خطر زنګ ته دوی متوجه دي، نو تاسي ټول په دې پوه سئ چې د دې بحران څخه وتل يواځې او يواځې پر خپل خدای جل جلاله باندي اعتماد کول او صبر او ثبات دی، يوازينی ذريعه د کاميابي دغه شيان دي.

دا چې امريکا کروز توغندي را غورځوي يا به بمبار کوي يا به تعرض کوي، هره خوا چې کوي دا زموږ او تاسو په مخکي ده، دا په بې غيرتيا زموږ او ستاسي د سره نه چيږي، دا که دوی کوي او خدای جل جلاله اراده کړي وه چې داسي به پيښيږي، دا بيا زموږ له سره نه چيږي، بايد مسلمانان لږ کښته او پورته وګوري، خپل اسلام ته وګوري، خپل غيرت ته وګوري، بايد په دې شيانو باندي وار خطا نسي-، که مري که پايي، دا د دې څخه نا علاجي ده، ځکه چې مړ سي، خپل ايمان او اسلام خوندي کړي، خپل غيرت خوندي کړي، نو تر دې بله يوه باچاهي چيري ده؟ تر دې بله لويه کاميابي چيري ده؟ مرګ خو تسي هم هر چا ته ګوري، يا نن يا سبا، نو دا به ښه خوند کوي چې پر بې ايماني او بې غيرتي باندي مړ سي او که پر اسلام د غيرت کول او د اسلام په ننګه مړ سي، د مرګه څخه د هيچا چاره نسته، خو دغه تشويشونه دي خلک د مازغو وباسي، خپل ثبات دي وکړي، صبر دي وکړي، پر خپل خدای دي اعتماد او اعتقاد وکړي.

نو تاسو فکر وکړئ. الله تعالی خو وايي: و انتم الاعلون ان کنتم مؤمنين، چې اوس د الله تعالی خبره د اعتماد وړ ده او که د امريکې خبره؟ الله تعالی وايي چې تاسو به لوړ ياست، غالبه به ياست، که تاسي مؤمنان واست، نو ايمان داسي نه دی چې محض سړی و وايي چې زه مسلمان يم او په دې به خلاص شي.

اوس به ستاسې د ايمان درک معلوميږي، چې د کفر په مقابل کې د امريکې د دغه غرهاري په مقابل کې ته څه کوې؟ او څه وايې؟ کنه الله ته آسانه ده چې نه به د امريکي توغندي وي، نه به يي بمبار وي، نه به يي بل شی وي، هيڅ شی به پيښ نه سي، بيا چې پيښيږي، بيا دي پيښ سي، پر چا نه دي پيښ سوي؟ په کوم وخت کې نه دي پيښ سوي؟ انګريزانو او روسانو زموږ څو ميليونه انسانان له مينځه يوړل، خو

خدای ورک کړل، د همدې قرباني په سبب باندې خدای ورک کړل، که قرباني ور نکړئ او غیرت پر دغه خپل اسلام او ایمان ونکړئ نو تاسو ملکونه وګورئ په څه شیانو باندې یې داسې کړي دي، خو په دې غرهاري باندې یې داسې اندازې ته رسولي چې ایمانونه یې هم ځیني وړي دي، غیرت یې هم ځیني وړی دی او هر څه یې ځیني وړي دي، په موږ او تاسې څه شوي دي؟ د دوی امپراطوري په تاریخ کې د افغانستان د لاسه ړنګې سولې، در په دره سولې، ټوک ټوک سولې، افغانستان هغه افغانسان دی، هغه یې نوم دی، هغه یې غیرت دی، هغه اسلام دی، هغه ایمان دی، څه پیښه سوې ده؟ خو دا به هم داسې یوه پیښه کیږي، و دي سي، خلک به پکښې مړه کیږي، مړه دي سي، د خپل اسلام ایمان او غیرت سره خو به مړه سي، دا به څه کوې چې ایمان هم د لاسه ورکړي، غیرت هم د لاسه ورکړي او مړه هم سي، دا څه په درد خوري، ځوک دي دا تشویش نه کوي، هر مسلمان دي د دغسې اقدام په مقابل کې جهاد ته آماده اوسي، دې ته تیار اوسئ چې که ما ته ضرورت سي زه ځان پر اسلام باندې قربانوم، پر خپل ایمان باندې به ځان قربانوم، پر کلمه د لا اله الا الله محمد رسول الله به ځان قربانوم، محض د ځان دغه نیت وکړئ، دا فتنه وه که دا بلا وه، که هر شی وو، دا به الله تعالی ورک کړي، او که تاسې داسې په بې ایمانې زندګي کوئ، پلرونو او نیکونواو دا نږدې چې اوس یې وینئ در ته ګرځي، ګوډان او شلیان، څنګه توره یې وهلې، د روس امپراطوري یې د ځمکې ووهله، ړنګه یې کړه، په ټوله دنیا کې، دا خو وینئ، هغه ولې په ژوندې سر در ته ګرځي؟ هغه مجاهدین، نو دا به هم داسې یوه پریکړه وي، دا به هم یوه فیصله وي چې کیږي به، که د خدای جل جلاله اراده سوې وي، داسې مه کوئ، تشویش په دې شیانو کې مه کوئ، چې یا ملامتي په طالبانو ورځي، یا ملامتي په اسامه ورځي، یا پر بل ورځي، زما د خدای پر وحدانیت قسم دی چې اسامه اوس دستې ورکړئ، بیرته دغه زوړ حال دی، دغه غرهاري دی، دغه کیسه ده چې ولې دي داسې کړي دي؟ ولې دي داسې کړي دي؟ دا به هم داسې کوئ، دا به هم داسې کوئ، دا به هم داسې کوئ، نو اخیر به څه شی در ځخه جوړ سي؟ اخیر به دي ایمان څه سي؟ اخیر به دي غیرت څه سي؟ اخیر به دي اسلام څه سي؟ اسامه نه دغه کار کولای سي، نه یې کړی دی، نه امکان د دغه سته چې د دغه ځایه ځخه دي په هغه ځای کې منظمه

پروسه جوړوي، بیا دي هم هغه کامیابه کیږي، دا د امکان لـه صـورته وتـلي ده او بـل دا بمان نه دي چې اسامه خلاص کړي دي، دا داسي کار سوی چې خلکو د سر په قرباني کړی دی، د سر قرباني څوک د اسامه لپاره نسي ور کولای، نه یي څـوک ور کـوي، نـه پر اسامه څوک ځان وژني او نه یي د اسامه پر نامـه بانـدي وژني، دا د سر قربـاني چې څوک ورکوي دا خپل ځان ته جلا غرض لري، خپل ځان تـه مطلوب لـري، هغـه نـه د امریکي څخه ویریږي او نه د بل چا څخه ویریږي، څوک چې خپل سر قربـانوي هغـه دې ته ضرورت نه لري چې اسامه ماته خوښ دی یا نا خوښه دی، اسامه ماته امـر کـړی دی یا یي نه دی کړی، دا د امکان لـه صـورته وتـلي ده، دا یـواځي او یـواځي د دریمـي امپراطوري سلسله ده په جهان کې تحمیلیږي، خلـک غولـوي، خلـک خطـا بـاسي، بي ایمانان چې دي هغه ور سره ملگري کیږي، ورسره شـریک دي، کـه څـه هـم بـد ځینـي وړي، که څه هم دښمنان دي، خو ستا لپاره بس دي، د امریکـي دوسـت دی، دوی یـي تر خوا دي، نو هر مسلمان ته خپل ایمان او غیرت باید ور په یاد وي، په هره لحظـه کـې دي باید ثابت قدم اوسي، که ایمان او غیرت نه وو هم به په ویره کـې وي او هـم بـه یـي تاب پر روی زمین باندي نه کیږي، اخیر به مري هم، خـو پـه دغسي-بې ایـماني او بې غیرتي کې به مري، اول خو د ټولي نړۍ مسلمانان باید په دې خپل ایمان بانـدي غیـرت وکړي، باید ننگه د افغانستان وکړي او باید ننگه د مسلمان وکړي، هر څه ته بایـد حـاضر سي، د اسلام په قرباني کې، او که یي نه کوي هغه خو داسي نه کوي، هغه خو د هر چـا خپل کـار دی، د افغانسـتان خلـک خـو بایـد پـر خپـل تـاریخ، غیـرت او ایـمان بانـدي ودریږي، د انگریزانو او روسانو په وخت کې خـو بـه نـه زه وم، نـه بـه طالبـان وو، نـه بـه اسامه وو، هغوی ولي راغلل؟ د افغانستان خلکو قرباني ورکړه، هغه خو بـه نـه مـا ور تـه ویلي وي، نه به اسامه ور ته ویلي وي، نه به یي ښورولي وي سره چې ونیسـه دغـه کـار وکړئ، هغه د افغانستان خلکو وکړ، خو غیرت یي وکړ، ایمان یي وکړ، اوس هـم هغسي-یوه سلسله ده، هر مسلمان ته ثابت قدمي په کار ده، که مري که پایي، خـو دغـه یـي لار ده او خامخا کامیابي په دغسي صورت کې حاصلیږي، هیڅ شک نسته پکښي، په خپـل خدای باید سړی اعتماد وکړي، د خپل خدای جلا جلاله په قـول او خـبره یقـین ولـري، الله تعالی فرمایي: تاسي به کامیاب یاست کـه تـاسي مؤمنـان واسـت، مؤمنـان خـو دا نـه

معنی چې بس بالا هیڅ نه سم کولای، بس زه مسلمان یم، بس محض مؤمن هستیم، په مؤمن هستیم خو نه سئ خلاصیدلای، واقعي مؤمن چې ته ځان جوړ کړې نو بیا به ته خامخا کامیابه وې، دا د خدای جل جلاله وعده ده او خدای تعالی د خپلي وعدې څخه مخالفت نه کوي. عجیبه ده زه نه وار خطا کیږم او د بي دینانو سره د دین او اسلام مخالفه لاره نه وړم، سره له دې چې قدرت مي هم په خطر کي دی، مشرتوب او چوکی مي هم په خطر کي دي، زندګي مي هم په خطر کي ده، ځان هم وژلو ته ورکوم، که زه اوس له کافرانو سره داسي لاره یوسم چې د اسلامه مخالفه لاره وي، جوړ جاړي وي او کار ورسره برابر کړمه، خو هر څه به مي پراخه وي، هم به مي باچاهي او سلطنت بر قراره وي او هم به زوروري پیسي- او جاه و جلال برابر وي، لکه د نورو ملکونو د رئیسانو چې برابر دي، دا به ټول برابر وي، زه دې قرباني ته حاضر یم، هر څه ته حاضر یم، ځان قربانومه، تر هر څه تیر یمه، هم تر سلطنته تیر یمه، هم تر قدرت تیر یمه، هم تر طاقت تیر یمه، تر هر شي تیر یمه، د اسلام غیرت کوم، پر اسلام باندي ننګ کوم، پر دې پاک وطن ننګ کوم، یو عام فرد ته به څه د دې ضرورت پیدا شي چې دی بي ننګي کوي او بي غیرتي کوي، چې هیڅ شی یې هم په خطر کې نه دی، یواځي به دی یو وخت په جهاد کې حاضریږي یا به نه حاضریږي، او بیا هم وار خطایي کوي او یا هم په خارجي ملکونو کې ناست دی، دوی ته څه ور پیښه ده؟ دوی د څه شي څخه وار خطا دي او دلته د څه شي څخه وار خطا دي، چې هیڅ شی یي هم په خطر کې نه دي، زما ټوله زندګي، ټول قوت او قدرت په خطر کې دي او بیا هم دا ننګ او غیرت کوم، نو تا لره یي د خیره چې ته یي نشي کولای، ته یي نه کوې، خو ایمان به دي ضعیفه وي، چې نه یي کوې، که ایمان در پکښې وي یا د ایمان غاور یي، یا د ایمان غوښتونکی یي نو ته خو یي باید چې بیخي وکړې، چې زه دې قرباني ته حاضریږم او تر ټولو شیانو تیریږم، نو ته څنګه نشي تیریدلای؟ زه خو تا ته حیران یمه، نو که چیري په تا کي ایمان او وجدان وي نو باید چې و دریږې، که ایمان او وجدان در پکښې نه وي بیا زه ستا څه پروا کوم، زه بیا ستا څه خبره ومنمه، ولي یي ومنمه، د کومي لاري یي ومنمه؟ چې ستا څخه ننګ او ایمان او غیرت ټول الوتي دي، ټول تللي دي، نو زه ستا کومه خبره او څنګه ومنمه؟ ته ما ته مشوره راکوې او یا را ته

وایي چې داسي وکړه یا داسي وکړه، نو که په تا کې قوي ایمان وي نو ته تر هغه شي خامخا نه شي تیریدلای چې په هغه کې د ایمان زیان وي، په هغه کې د اسلام زیان وي، په هغه کې د خاوري د تمامیت نقصان وي او یا په هغه کې نور تاوانونه وي، نو ترهغه شي ته خامخا نشي تیریدلای، دا چې ته تر ټولو شیانو تیریږې نو په تا کې ایمان ضعیفه دی، په تا کې اسلام ضعیفه دی، ته باید پر ځان پیره دار اوسې، ته باید ایمان او اسلام قوي کړې، ته په خپله کړنلاره تجدید نظر وکړې.

دې شیانو ته خو چې ایمان او اسلام ولري او دی د دې خواهش وکړي چې زه باید دا خپل ایمان او اسلام خوندي کړم او دا خپل غیرت باید خوندي کړم نو خامخا داسي شي ته دی نشي حاضریدلای او نه حاضریږي چې په هغه کې د دې شیانو تاوان وي، نو هر مسلمان دي فکر وکړي، او ښه ژور فکر دي وکړي، د خپل اسلام او قرآن ننګه دي وکړي، الله جل جلاله مهربان دی چې دې خلکو ته کامیابي ورکړي، کامیابي بس دا کامیابي ده چې که پر ایمان باندي مړ سي هم غټه کامیابي ده، که هیڅ نسي پیښه هم غټه کامیابي ده، د اسلام د بیرغ لوړتیا په دغه کې ده، په دې کې نه ده چې دا ټول ختم سي، دا د اسلام ننګ او غیرت او کلمه د لا اله الا الله محمد رسول الله او بیرغ د اسلام به همدغسي لوړ او اوچت پاته سي نو که تا و نړاوه او نړول یي دغه دي چې ته دغسي- شیانو ته حاضریږې چې د دوی په خوښه باندي وي ته چې دغسي- شیانو ته حاضریږې نو تا د اسلام او د غیرت نوم و نړاوه، او تا د خاورو سره خاوري کړ، په مړینه او په قرباني د اسلام بیرغ نه کږیږي، د اسلام بیرغ په هغه شیانو کږیږي چې په کومو شیانو ایمان او اسلام ته نقصان رسیږي او ته تري تیریږې، په دې شیانو کې د اسلام خبره ده، د اسلام د بیرغ کږتیا ده، که جهاد ته ضرورت پیښ سي باید هر مسلمان آماده وي باید خپلي قرباني ته آماده وي، دا د خطا ایستو خبره نه ده، دا پخه خبره ده، هر سړی چې فکر ووهي دا د دې خبره نه ده چې زه څوک او څوک پر دې باندي باعث کوم او ور ته وایمه او یا یي خطا باسمه، د خپل قدرت لپاره، قدرت خو مي په دې کښي نه دی، قدرت خو مي په دې کښي دی چې لاره ورسره یوسمه، لکه دا نور ملکونه دغسي لاري ور سره یوسمه، ښه تام حمایت به مي کوي، حتی فوځ به هم را کوي، پیسي به هم را کوي، هر څه به راکوي، نو د قدرت لحاظ خو په هغه کي دی، په

دې کې نه دی چې سر لوڅ کړه بالا و دې قرباني ته حاضر سه، قدرت خو په دې کې نه دی قدرت خو په هغه شیانو کې دی، دا خو تاسي په دې پوه شئ زه تاسي د قدرت لپاره نه خطا باسم، دا د خدای جل جلاله قرآن در ته پروت دی، را وایي ږوئ او له علماوو څخه پوښتنه وکړه چې هغه تا ته څه وایي او تا ته څه هدایت کوي، زما هدایت همدا هدایت دی چې خدای جل جلاله را ته کړی دی، دا هدایت د خطا ایستو هدایت نه دی، خپله هم پوهیږئ، نو باید هر مسلمان ویښ او بیداره اوسي او تشویش و نکړي، د را دیوگانو په خبرو و نه غولیږو نو به په ایمان او اسلام ثابت پاته وي، خدای تعالی دي و ټولو مسلمانانو ته توفیق ورکړي چې پر دا خپل ایمان او اسلام ثابت پاته سي.

و من الله التوفیق

## د امارت د مقام ځینې فرمانونه

**په تحریک کې د ناوړه او غیر شرعي اعمالو د نه کولو به هکله د امارت د مقام توصیه**

ټولو نظامي او ملکي محترمو مسؤلینو او عامو طالبانو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

که په دغه پاک تحریک کې مو د قومي، قرابت او شناخت په اساس فاسد خلک داخل کړي وي او یا مو سلاح غیبه کړي وي او یا مو نوره غلا کړي وي او یا مو د مسلمانانو حقوق تلف کړي وي او یا مو ظلم ورسره کړی وي او یا زنا، لواطت یا بیلمازي کوئ او یا د آمر بې امري کوئ او په دیني چارو کې د آمر تر امر لاندې کوښښ نه کوئ نو دا سبب د خدای تعالی د دین د خرابۍ دی.

نو که پورته اعمال چا کړي وو او توبه نه پر وکاږي او یا د پورته ناوړه اعمالو آینده قصد لري او هغه غلا کړې سلاح بیرته معلومه نه کړي نو اصلي مخربین د دین مبین دغه خلک دي. د خدای تعالی څخه مې شرمنده په دواړه جهانه کې غوښتي دي.

او که پر دغو اعمالو باندې څوک رسوا سي د صف څخه به مطلقا سره د جزاء وځي، څکه چې د دغه دین لپاره په زرگونو طالبان په شهادت ورسیدل او یا گوډیان، ړانده یا فلج سوه، نو چې اوس یې څوک خرابوي زه دغه ښیرا ورته کوم او جزا به هم ورکوم.

و السلام

د اسلام خادم

امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ( رسمي جریده، فوق العاده گڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

## امارتي منسوبينو ته د سګرټ نه څکولو په هکله د اميرالمؤمنين پيغام

د افغانستان د اسلامي امارت ټولو محترمو مسؤلينو او مجاهدينو ته!

السلام عليکم ورحمت الله وبرکاته

ټول محترم مسؤلين دې خبر وي چې په آينده کې سګرټ څکول مطلق بند دي. په جواز او نه جواز کې به يې څوک خبرې نه کوي.

هر مسؤل بايد خپل ماتحت افراد تعقيب او نظارت کړي، جدي امر دی، مخالفت يې جواز نلري. د پورته هدايت سره به سم رفتار ترسره کيږي.

و السلام

د اسلام خادم

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ ( رسمي جريده، فوق العاده ګڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

**مخالفینو ته د ناوړه الفاظو د نه استعمال په هکله د امیرالمؤمنین توصیه**

نیټه ۲۹/۲/۱۳۷۵ هـ ش

محترمو طالبانو او ټولو مسؤلینو ورونو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

محترمو! لکه څنګه چې تاسو ته معلومه ده دا تحریک صرف او صرف د مفاسدو د دفعې او د دې اسلامي ملت پر ټولو اقشارو باندې د اسلامي شریعت د نفاذ او تطبیق لپاره د مخلصو او بادرده طالبانو کرامو لخوا منځته راغلی دی.

له همدې جهته الله تعالی داسې توفیق ورکړی او فتوحات یې ورته نصیب ګرځولي چې ټول یې د سر په سترګو وینو. نو په دې وجه له ټولو طالبانو کرامو او د هغوی له همسنګرانو څخه په ډېر ټینګار هیله کیږي چې د شریعت په رڼا کې دا لاندې توصیې مراعات کړي.

اول: تاسو ته معلومه ده چې د مخالفینو په لیکو کې فساقو او کمونیستانو ځای نیولی، هغوی قصدا د طالبانو له سنګرونو سره خپلې مخابرې رخ کوي، ناوړه الفاظ او ښکنځل کوي، دا دوی خپل فسقي عمل دی.

تاسو د دوی په مقابل کې بد الفاظ او ښکنځل مه کوئ، خپلې پاکې او سپیڅلې ژبې له ناوړه الفاظو څخه وساتئ، څکه دا کار دوی ته هنوز په ښکنځلو جرئت ورکوي. قران کریم په دې سره ناطق دی او مؤمنانو ته ارشاد کوي چې د مشرکانو بتانو ته ښکنځل مه کوئ څکه دوی د جهل او دشمنی په درلودلو سره الله جل جلا له ته ښکنځل کوي.

دوهم: دا چې موږ ټول قرآن او سنت ته تابع یو، د قرانکریم آمر دی(اطیعوا الله و اطیعوا الرسول و اولی الامر منکم... الایة)الله تعالی موږ ته امر کوي چې د الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم او د اولوالامر متابعت وکړئ. باید د دې مقدس امر په غوږ کې نیولو سره پوره اطاعت وکړو، بې د امر څخه بې ځایه ټکونه( فیرونه ) ونکړو، تر څو د امر د مخالفت او د بیت المال د ضایع کولو په ګناه ملوث نه شو.

د الله تعالی په بندگی او د اولوالامر په اطاعت کې فتح او د خدای تعالی نصرت دی.د الله تعالی اطاعت او بندگي وکړئ تر څو مو نصرت نصیب شي.(ان تنصروا الله ينصركم... الاية) يعني څوک چي د الله تعالی د دين سره نصرت كوي الله تعالی د هغه سره نصرت كوي.

(و من الله التوفيق)

و السلام

د اسلام خادم

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ(رسمي جريده، فوق العاده گڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

**د الله تعالی د حدودو او احکامو د برپایه کیدو په مقابل کې د هیچا د مراعات د نه ساتلو په هکله توصیه او پیغام**

نیټه: ۲۷/٦/۱۳۷۴ هـ ش

محترمو طالبانو او د محکمو مسؤلینو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

اولین ستاسو محترمینو کامیابي د الله تعالی څخه په کونینو کې غواړو و بعد: موږ او تاسو د الله تعالی د دین د خدمت او ساتنې په خاطر پاڅون کړی او ولاړ شوي یو، څو د خدای جل جلاله پر ځمکه د خدای جل جلاله دین قائم او دائم کړو.

په همدې لحاظ او اساس موږ د خپلې ذمې د فارغ کیدو په خاطر تاسو ته دا رنګه لیکو: هر عالم چې په ولایت یا په ولسوالي کې په محکمه کې شمولیت ولري. یا د هر ولایت والي یا ولسوال وي دا ورته زموږ له طرفه امر دی چې د الله تعالی د حدودو او احکامو د برپایه کیدو په مقابل کې به د هیچا مراعات نه ساتي. صرف د الله تعالی د دین مراعات به کوي. که فرضا داسې پیښه شي چې د الله تعالی دین پر ځمکه وغورځوي د اشنا او دوست مراعات وکړي، بیا به په ورځ د حساب الله تعالی ته مسؤل یاست.

او په دې دنیا که زموږ په چا علم راشي ان شاءالله حساب به حتمي ورسره کوو. دا په دې خاطر چې موږ په ډېر پاک نیت راولاړ شوي یو، باید همداسې وکړو چې قول او عمل مو یو او موافق شي. دا حدیث شریف باید مصداق وګرځوو.(انصر اخاک ظالما او مظلوما) و السلام

د اسلام خادم

امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ( رسمي جریده، فوق العاده ګڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

**د قوم پرستي د نه کولو په هکله د اسلامي امارت د مقام توصیه**

۵/۴/۱۳۷۴ هـ ش

محترمو علماء کرامو، طالبانو او خاص بیا د کار او منطقو مسؤلینو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

موږ تاسو ته د خدای په خاطر یوه توصیه کوو.

په دغه مذکورو خلکو کې ډېر خلک د قومیت په بدبوی اخته دي، نور خلک خو تر تبلیغ تېر دي ځکه چې قومیت یې اوس د رګو وینه ګرځیدلې ده. اوس دغه خواص خلک یې پرې اخته کړي دي. نن سبا زه وینم چې دغه خلک په دې مرض اخته دي، یو د بله بد سره وړي او د مجرم واسطه ګرځي، پر جرم یې سترګې پټوي او یو بل نه سره مني، د قومیت په تضاد بد سره وړي.

نو که دا وار دین خرابیده د دغه خلکو څخه به د دغه مرض په سبب خرابیږي نو په دغه مرض اخته خلکو ته زموږ وینا دا ده چې د خدای دین مه خرابوئ. اثر مرتب د دې مرض د خدای جل جلاله دین خرابیدل دي. یو څوک چې د خدای دین خرابوي الله تعالی دې د جهنم اوسیدونکی وګرځوي. دا خط مې درته ولیکه مګر امید مې نشته چې دا عمل به پریږدئ، ځکه یو وایي زه نه یم بل وایي زه نه یم. او یا وایي چې پلانی قومیت کوي نو زه هم مجبور یم.

موږ خپلې غاړې خلاصې کړې که څان نه در معلومیږي خپل زړه ته متوجه شئ چې په زړه کې مو څه دي؟ او که هغه هم نه کوئ نو انتظار وباسئ د خدای تعالی عذاب ته. و السلام

د اسلام خادم

امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ( رسمي جریده، فوق العاده ګڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

**د مسلمانانو په کارونو او د دین په امورو کې د پوره توجه په اړه مسؤلینو ته توصیه**

۲/۷/۱۴۱۹ هـ ق

محترمو مسؤلینو ته!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

دا چې تراوسه پورې موږ او تاسو ورسره جنګیدلو او په زرګونو قرباني مو ورکړې هغه خلک هم مخکې مجاهدین وو خو چې د خدای تعالی په ابتلاء کې ناکامه شول پر دوی خدای تعالی جهاد روا کړ. اوس نو زموږ او تاسو د ابتلاء وار دی.

هغو خلکو څه کول؟ هغو دغه کول چې پیسې به یې په یوه چم پیدا کولې، هر سړي به خپل خلک ډیرول، قومیان یا نور د وړې زامن چې آخر انجام یې دغسې شو. سبب د نورو بدو اعمالو یې همدغه د قدرت او عزت محبت وګرځید. د روسانو ضد جهاد په اولو وختو کې به که د مجاهدینو مصلح مرکزونه سل وو نامصلح به شل وو. په آخر کې هغه سل شل شول او شل سل.

نو د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم روی ته وګورئ! ابتلاء را روانه ده، دا اوس په دغه ابتلاء کې واقع یو او ډېر اوس بیا په کې ناکام یو. هر سړی په خپل مسؤلیت کې پر خپلو خلکو باندې، خپلو ځانو باندې، د مسلمانانو پر کارو باندې او د الله جل جلاله پر امورو باندې تر پایه باعث اوسئ. که مو بې پروایي وکړه دنیا او آخرت مو دواړه خرابیږي.

د بې ځایه مصارفو څخه اجتناب وکړئ، که یوه روپۍ وي که دوې پر هغه لائحه باندې در تقسیمیږي، دغه قدر به مو اقتصادي توان وي، د کفارو غلامي مه په راکوئ. د اقتدار، حیثیت او چوکۍ محبت مو په زړه کې ځای ونه نیسي.

نور مو هر کار په خیر دی څکه چې دا شیان په سړي کې نه وي هغه خدای ته هم عزتمند وي او په خلکو کې هم عزتمند وي. او دغه مرکزونه او اداري مو د جهاد مرکزونه دي، د بې لمانځۍ او نورو ناروا اعمالو څخه یې وساتئ بیا برکت ترې تولیږي. الله تعالی فرمایي ( والله یعلم ما تصنعون... الایة ) یعني الله تعالی ستاسو په اعمالو باندې

ښه عالم او خبردار دی. نور نو چې کوم هدایت درته وشي باید اطاعت وکړئ او عملي يې کړئ.

و السلام

د اسلام خادم

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ( رسمي جريده، فوق العاده گڼه پرلپسې شماره ۷۸۸ )

**د علماء کرامو لخوا په اسلامي روحیه د خلکو د تربیې په هکله د امیرالمؤمنین پیغام**

د اسلام د سپیڅلي دین خادمان او د رسول کریم صلی الله علیه وسلم حقیقي وارثان هغه علماء کرام دي چې د څوارلس سوه کلونو په بهیر کې یې آسماني قانون په ښوونې او روزنې سره تر نن نیټې پورې را رسولی دی. خو څرنګه چې د وخت امیران د دین او ښکلي شریعت محبان نه وو معززو علماء کرامو نه شوای کولای چې په بشپړه توګه د مسلمه امت بچیان د قرآن کریم په نورانیت سره منور وګرځوي او هغه مسلمانان ورونه چې د مقدس دین له حکمونو څخه بې برخې لوی شوي وو هغه د دین له علم څخه برخمن کړي.

څرنګه چې نن ورځ د طالبانو د ځلاندو قربانیو په نتیجه کې علماء کرامو ته زمینه مساعده شوې ده چې هر مولوي صاحب په خپل جامعه او دایره کې د امام ابوحنیفه رحمه الله د روښانه مذهب په رڼا کې د بالغ او وړوکي نسل پوره تربیه په دیني قوانینو سره وکړي. څو ټول واړه او زاړه زموږ د مظلوم هیواد د اسلامي نظام په ګټورو ښیګڼو په وضاحت سره پوه کړي او هم قوم له هغه څخه دیني استفاده وکړي.

نو په دې منظور ټولو والیانو، ولسوالانو او واکمنو اشخاصو ته امر دی څو دوی د خپلو ولایتونو د ټولو سیمو خطیبانو او امامانو ته د نوموړي امر سره سم امر وکړي چې د ارشاد او اوقافو د مذهبي دستورونو مطابق خپلې هڅې ګړندی کړي، څو له دې ستر مسؤلیت څخه د خلاصون لاره ومومي.

هغه دا چې لمونځونه په ټاکلیو وختونو اداء کړي او د سهار له لمانځه څخه وروسته ۳۰ دقیقې د مذهب سره سم د دین هغه فرض احکام او عقائد تدریس کړي او مقتدیانو ته هم امر دی چې ضرور به ورته ناست وي او پوره به پابند وي یعنې زده کړې به څنې کوي.

علماء کرامو او د کلیو مشرانو ته امر دی څو په کلیو او سیمو کې تارک الجماعت او بې دینه خلک اول پخپله اصلاح کړي او د نه اصلاح په صورت کې به اړوندې څانګې ته خبر ورکوي څو د محمدي غراء شریعت په رڼا کې مجازات شي. او د ارشاد

اواوقافو له لارې بايد په ټولو ولاياتو او ولسواليو کې د علماء کرامو وفدونه هم د احتساب او تعقيب په هدف نوبت واره جوړ شي څو د سرغړونې په صورت کې له سرغړوونکو سره شرعي عمل وشي.

و السلام

د اسلام خادم

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

مأخذ(رسمي جريده، فوق العاده ګڼه پرلپسې شماره ۷۸۸)

## د رئیس الوزراء ملا محمد رباني د وفات په اړه د امیرالمؤمنین پیغام

نحمده و نصلی علی رسوله الکریم

امابعد:

فاعوذ بالله من الشیطان الرجیم (کل نفس ذائقة الموت.. الایة. صدق الله العظیم

زه د افغانستان مؤمن ولس ته او ټول مسلمان امت ته او په خاصه توګه د اسلامي امارت مسؤلینو او منسوبینو ته په داسې حال کې د تعزیت او خواخوږي پیغام وړاندې کوم چې خپل ډېر خوږ او مجاهد ملګری مې د لاسه وتلی یعني په حق رسیدلی دی. انا لله و انا الیه راجعون.

په حقیقت کې تر بل هر چا زیات زه خپله ډاډګیرنې ته اړتیا لرم ځکه زما لپاره د مرحوم الحاج ملا محمد رباني د وفات غمجنه پیښه ډیره دردوونکې ده. خو موږ د خدای جل جلاله په قضا او رضا ایمان لرو موږ ټول مرګ ته پیدا یو او نیکمرغه هغه څوک دی چې خپل ژوند د مرګ تر راتګه د الله تعالی په رضا کې تیر کړي. مرحوم الحاج ملا محمد رباني د الله تعالی یو نیکمرغه بنده و. هغه که په سنګر کې مجاهد و که په ممبر واعظ او که په اداره کې حاکم و ټول کردار او رفتار یې د خدای جل جلاله د رضا لپاره و. هغه یو وتلی متشرع او متدین شخصیت و د لوړ دیانت او تقوی تر څنګ د مصیبتونو او کړاوونو په مقابل کې د لوړې حوصلې خاوند او غښتلی مدبر شخصیت و د بلوغ څخه تر وفات یې ټول خوږ ژوند د الله جل جلاله د رضا په خاطر په دیني زده کړه او د اسلام او وطن د حفاظت لپاره د مقدس جهاد په سنګرونو کې کې د مظلومو هیوادوالو د سوکالۍ په هیله او د ادارو په سمبالښت کې تیر کړی دی.

خدای جل جلاله دې زموږ کشرانو ته توفیق ورکړي چې د داسې مشرانو لار تعقیب کړي او د دوی ارمانونه د خاورو سره خاورې نه کړي. زه اول ځان بیا د افغانستان

مسلمان ولس او په خاصه توګه د مرحوم متديني کورنی ته د لوی خدای جل جلاله له درباره د جميل صبر او په نعم البدل سره ددې ژورې خلا د ډکولو غوښتنه کوم. الله جل جلاله دې رحم پرې وکړي.

آمين

د اسلام خادم

ملا محمد عمر مجاهد

( خلافت مجله پرلپسې ۲۱ مه ګڼه)

**د افغانستان د اسلامي امارت د مقام خبرتیا**

څرنګه چې اوس لیدل کیږي د اسلام د مقدس دین دښمنان په ټوله نړۍ کې د دغه مقدس دین د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې کوي او د مسلمانانو په لباس کې په مسلمانانو کې داخل شوي دي او په ډول ډول چلونو او د نیوي مادیاتو باندې غواړي چې مسلمانان د اسلام د مقدس دین څخه بې لارې کړي.

څوک غواړي چې مسلمانان د عیسویت او یهودیت په منسوخو ادیانو اخته کړي، څوک غواړي چې د مسلمانانو دین یعنی اسلام تحریف کړي چې دا اوس هم یو شمیر مسلمانان د پیسو او نورو مادیاتو په وسیله د عیسویت دین ته اوښتي او خپل مقدس دین یې پرې ایښی دی.نو له همدې امله ټولو هیوادوالو ته جدا خبر ورکول کیږي که چیرې کوم افغان مسلمان د عیسویانو عقیده قبوله کړې وه او یا دغه منسوخ دین ته وراوښت او یا هم په داسې حال کې ونیول شي چې د عیسویت یا یهودیت دین ته یې خلک دعوت کول او د هغه په ګټه یې تبلیغات کول، یا د هغو د عقیدې کتابونه او نشرات توزیع کول هغه به د مرګ په سزا محکوم شي.

دغه راز که په کومو کتاب پلورنځیو کې داسې کتابونه چې په هغه کې د غلطې عقیدې مراد او یا هم د صحابه کرامو سپکاوی په کې موجود وو ونیول شي د هغو کتاب پلورنځیو مالکان به په پنځه کاله بند محکوم شي.

د اسلامي امارت مقام

مأخذ( خلافت مجله پرلپسې ۲۱ مه ګڼه)

بسم الله الرحمن الرحيم

۸ـ۸ـ ۱۴۲۰ هـ ق

**د افغانستان د اسلامي امارت د مقام اعلاميه**

څرنګه چې په اوسنيو وختونو کې د امريکايانو په غوښتنه او د ملګرو ملتونو په توسط د اسلامي هيوادونو څورونه ډيره شوي ده چې په دې لړ کې د کلنټن (دامريکا ولسمشر)او نورو اسلام دښمنه عناصرو په فرمايش ملګري ملتونه د افغانستان په مظلوم او کړيدلي ولس باندي ځيني اقتصادي بنديزونه ولګول او په همدي کار سره يي د ټول اسلامي امت احساسات او غصه را وپارول او هره ورځ په زرګونو مسلمانان په مختلفو ځايونو کې مظاهري کوي او د مظاهرو لړۍ په شدت سره روانه ده، داچې موږ الله پيدا کړي يو د رزق وعده يي هم را سره کړي ده نو کلنټن او د هغه ملګري خو موږ ته روزي نه را کولای شي او نه هم د الله له خوا را ټاکل شوی رزق را باندي بندولای شي او نه هم هغوی دومره بشر دوست او زړه سواندي دي چې د افغانستان په ځوريدلو او کړيدلو خلکو باندي د مظاهرو په وجه رحم وکړي.

زما هيله له تاسو ټولو نه دا ده چې نوري مظاهري مه کوئ، د صبر او زغم څخه کار واخلئ او په خپل ټينګ او اسلامي عزم او صبر سره د الله رضا حاصله کړئ او د لوی خدای څخه و دغه ظالمانو ته د يوي عبرتناکي سزا او انتقام غوښتنه وکړئ.

و السلام

**نظامي مسؤلینو ته د عالیقدر امیر المؤمنین پیغام**

کابل د ذي القعدي ۳۰ـ ۱۴۱۸ هـ ق

د جهاد د لومړیو کرښو مجاهدینو طالبانو او مسؤلینو!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

تاسي چې د جهاد په لومړیو کرښو کې خپله مهمه اسلامي دنده تر سره کوئ باید اسلامي اصول په پام کې ولرئ، هغه کسان چې د جګړي په ډګر کې اسیران او یا تېپیان کیږي له هغوی سره په اسلامي اخلاقو او سلوک سره چال چلند وکړئ، هیڅوک نشي-کولای چې یو جنګي اسیر ووژني تر هغه وخته پوري چې د اسیر له خوا ده ته د مرګ خطر متوجه نه وي، هر هغه څوک چې اسیران او ټپیان ووژني په اسلامي محکمه کې محاکمه کیږي، ځکه د دوی دغه عمل له اسلامي اخلاقو او موازینو نه لیري دی، هغه کسان چې په دغه شان عمل لاس پوري کوي د افغانستان د اسلامي امارت مخالف دی چې په موږ کې یي ځای نیولی دی، له جنګي اسیرانو سره نیک او سم چال چلند زموږ اسلامي وجیبه ده.

و من الله التوفیق

**د نړیوالو خبرو اترو په هکله د افغانستا ن د اسلامي امارت روښانه دریځ**

د امیر المؤمنین دفتر کندهار............ ۹ ـ ۸ ـ ۱۴۲۰ هـ ق

څرنګه چې د افغانستان مسلمانو خلکو په هیواد کې د کمونیستي نظام او روسانو سره په جنګ کې بې ساري قرباني او بیا تر اوسه پورې د طالبانو د اسلامي تحریک په زرګونو قربانۍ او د اسلامي امارت قیام د دې لپاره دی چې په هیواد کې یو سوچه اسلامي نظام را مینځ ته شي او موږ هم د الله پاک او د افغانستان د ولس سره دا وعده کړې او کوو یې چې زموږ هره کړنه به د هیواد والو او نړیوالو سره د شریعت مطابق وي، نو په همدې خاطر زموږ سره چې د هر چا هره موضوع مطرح وي موږ ګورو که د اسلام د قوانینو سره کوم ټکر و نه لري موږ حاضر یو چې هره مسئله د هر چا سره په ډیره اسهله او آسانه طریقه خلاصه کړو او که چیرې د اسلام له قوانینو سره ټکر ولري تر هغه خبري موږ نه شو تیریدلای که څه هم په ډېر غټ قیمت را تـه تمامیږي او کـه مجبور کړل شوو نو بیا داسې کار باندې د هر چا له خوا د هر قسم مشکلاتو په مقابل کې که لږ وي او یا ډېر مقاومت او د هر چا مقابلې ته که زورور وي کـه کمزوری تیار یو ځکه چې د اسلام زیان موږ نـه شو قبلولای او نـه د اسلام زیـان د قبول وړ دی او دا زموږ اختیار هم نه دی بلکې یـو خـدایي مکلفیـت دی، هـر څوک دي زمـوږ سره پـه خپلو معاملاتو کې و دغه ټکي ته وګوري، که و نه ګوري څه کوچ نه شي تر لاسه کولای.

و السلام

## د امریکي د ولس په نامه د عالیقدر امیر المؤمنین پیغام

۲۱-۱۰-۱۹۹۹ میلادي

د افغانستان اسلامي امارت چې په هیواد کې د ظلم، وحشت او فساد له یوې ناوړه دورې وروسته د طالبانو د اسلامي تحریک د قربانیو په نتیجه کې را مینځ ته شوی دی، چې د افغانستان ملت یې ملاتړ او هرکلی کړی دی دا په دې خاطر چې د افغانستان اسلامي امارت په هیواد کې د افغانانو د خوښې حکومت جوړ کړی، امنیت یې را وستلی، ظلم او بربریت یې له مینځه وړی، د ښه او آرام ژوند لپاره یې زمینه برابره کړې ده، خو بیا هم د امریکي حکومت د دې پر ځای چې د افغانانو هغه ښیګڼې چې په خپلو قربانیو سره یې د وخت شوروي اتحاد دړې وړې کړ او نړیوال یې د هغوی د ګواښ څخه خلاص کړل په پام کې نیولي وای او د غم ځپلو افغانانو د ستونزو د حل په لار کې یې هلې ځلې کړې وای زموږ په ضد یې په یو او بل نامه ډول ډول تورونه ولګول او دښمني یې را سره پیل کړه، له دې ټولو سره سره موږ بیا هم د تفاهم لاره خپله کړې او تل مو خبرو ته چمتو والی ښودلی دی خو د امریکي حکومت د زور لار خپله کړې او افغانانو ته په سپک نظر ګوري چې دا به د دوی په زیان وي ځکه روسانو هم داسي فکر کاوه خو انجام یې څه شو.

څرنګه چې موږ ستاسي واکدار حکومت ته د روان ۱۹۹۹ میلادي کال د سپتمبر په ٦ نیټه سپیني ماڼۍ ته یو لیک ور استولی دی او دا مو په کښې لیکلي وو چې پر واقعي ملامت باندي دي خدای جل جلاله زلزلي او طوفانونه نازل کړي له هغه را هیسې-دوه ځلي طوفانونه او یو وار زلزلي در باندي شوي دي، که یې نه منئ تاسي هغه خط ځیني طلب کړئ چې په کوم تاریخ لیکل شوی دی او په کومه نیټه زلزلي او طوفانونه در باندي راغلي دي، نو زه ګمان کوم چې د امریکي حکومت په موږ ملامت دی، زموږ ملت یو ځلي روسانو ټوټې ټوټې کړ او اوس امریکا دښمني را سره کوي او بندیزونه را باندي لګوي، نو خلاصه دا ده که امریکا پر موږ باندي بندیزونه ولګوي ګمان کوم چې

بیا به طوفانونه او زلزلي در باندي راځي ځکه د افغانستان ملت ډېر مظلوم دی او لوی خدای جل جلاله د مظلومانو مرسته کوي او د خدای تعالی سره مقابله د چا په توان کې نشته، نو تاسي د امریکا ولس په خپل حکومت فشار را وړئ چې له موږ سره دښمني و نه کړي او که تاسي په دې باب اقدام و نه کړئ نو بیا به حیرانیږئ چې څه پیښیږي او هیڅ به مو په وس هم نه وي پوره.

**د افغانستان لپاره د هجري قمري تاريخ د رسمي گرځولو په اړه د عاليقدر امير المؤمنين د مبارکي پيغام**

مسلمانو او مجاهدو هيواد والو !

السلام عليکم ورحمة الله و برکاته

دا چې د نبوي سنت سره سم قمري سنه د افغانستان رسمي سنه وټاکل شوه زه ټولو مسلمانو او متدينو هيوادوالو ته د زړه له کومي مبارکي وايم، لوی خدای جل جلاله دي د افغانستان اسلامي امارت ته لا توفيق ور نصيب کړي چې د نورو نبوي سنتونو په احياء کې هم زيات موفق شي تر څو د زرگونو هغه قربانيو چې د طالبانو د اسلامي تحريک په دوران کې مو ورکړي او د سلگونو زرو هغو قربانيو چې د روسانو په وړاندي په مقدس جهاد کې مو ورکړې، نتيجه يي نوره هم مثبته را ووزي.

مسلمانو ورونو او خويندو!

پاک الله جل جلاله شپي ورځي او فصلونه د دې لپاره پيدا کړي چې موږ او تاسو د خپل رب بنده گي پکښي وکړو او ټول کړه وړه مو خاص د الله جل جلاله لپاره وي او په هر څه کې مو نيت د الله جل جلاله رضا او د هغه د دين ساتل وي د ناکامي ستر علت د نيت خرابيدل دي، د اسلام د مقدس دين ساتل په کار دي نه د ځان ساتل، که څوک د دنيا او اخرت سرلوړي غواړي په هر څه کې دي نيت پاک ولري، خصوصا مجاهدين کرام بايد ټول ژوند د خدای جل جلاله په دين برابر کړي او هر کار چې د امير له لوري ور سپارل شوي وي په هغه نقشه يي سر ته ورسوي او يو د بل سره پوره محبت وساتي ځکه چې اسلام د مينې او محبت دين دی، محترم هيواد وال بايد د کفري ممالکو او د هغوی د مزدورانو تر اغيزي لاندي را نشي، مسلمانانو ته په کار دی چې د کفارو تبليغات ور سره بدرگه نه کړي.

د افغانستان اسلامي امارت تعليم او تربيې ته پوره توجه لري او غواړي چې د اسلام د مقدس دين په رڼا کې تعليم ته وده ورکړي ځکه په پخواني حکومتونو کې چې تعليم

د اسلام د مقدس دين مطابق نه وو جوړ شوی د هغه نتيجه وه چې زموږ هيـواد وال تـر اوسه لا ځوريږي.

محترمو هيواد والو! د نوي کال د را رسيدو له امله لـوی خـدای جـل جلالـه تـه زاری او دعاوي وکړئ چې زموږ په هيواد کښې په بشپړه توگه اسلامي نظام حـاکم کـړي او ټـول هيواد وال بايد د اسلامي امارت د مجاهدينو لا ننگه او ملاتړ وکـړي او د پـاکو او نـازکو طالبانو د قربانيو شکر گذار شي، تر څو لوی خدای جل جلاله تـه مسؤل نـه شي، صـبر او حوصله چې د مسلمانانو ابدي توښه ده بايد په ټولـو چـارو کـې صـابر و اوسـو، د ا د خدای جل جلاله هغه امر دی چې که چيري عملي شي ناکامي نشته، ځکه خدای جـل جلاله وعده کړي چې تاسو غم او سستي مه کوئ تاسـو بـه کاميابـه ياسـت، کـه چيـري پوره ايمان ولرئ.

په اخير کې ټولو مسلمانانو ته اخروي خوشـحالي غـواړم، تـر بلـه همدغـه شـرعي کـال پوري مو په ټولو شـرعي کارونو کې خدای جل جلاله کاميابه لره.

ستاسي د اسلامي ژوند په هيله

ستاسي عقيدوي ورور ملا محمد عمر مجاهد

**د طالبانو د لوی سالار محترم ملا محمد عمر مجاهد پیغام**

محترمو علمای کرامو، جهادي قوماندانانو، سپین ږیرو، قومي مشرانو، روشنفکرانو او طالبانو ورونو!

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

داچې د افغانستان په تیر اوولس کلن دور کښې هر څه وشول ټولي نړۍ ته او خلکو ته معلوم دي، د تبصري کولو ضرورت یي نشته، خو په اوسنیو حالاتو کښې زموږ عرض او پیشنهاد دا دی چې د الله جل جلاله په خاطر او همدي مظلوم ملت د تقاضا په منظور باید ټول مسلمانان خاص هغه کسان چې د دین او اسلام څخه یوهه ولري او خپل کورونه، ورونه، پلرونه او میندي یي د الله تعالی د قرباني میدان ته ورانـدي کړي، له دین (اسلام) څخه په دفاع کولو کښې یي هر قسم سر ښندنه کړي، په طول د جهاد کښې نه تنها د روس سره ښامار ته ماته ور کړه بلکي د نړۍ د استعمار سور لوی خط یي چې د وارسا په تړون باندي یادیږي دړي وړي کړ، د اروپا لویه وچه یي د ټانګونو او پوځي تمریناتو څخه چې د اسلام سره د مقابلي په خاطر تربیه کیدل خلاصه کړه او د الله اکبر کفر ځپونکي نعره یي د مسکو او د ده د انډیوالانو په هر کور کښې پورته کړه، تاسي به اوریدلي وي د افغانستان اسلامي جهاد د مسکو اوسیدونکو ته داسي درس ورکړ چې نور به په هیڅ وخت کې ان شاء الله تعالی د کمونیزم نعره پورته نکړي، تاسو اورئ چې نن کمونیزم په دنیا کې یو پیغور ګرځیدلی، د کمونیزم د فلسفي مؤسسین په ټوله نړۍ کې وټکول شول او قوتونه یي تجزیه شول، دا ټول د الله تعالی نصرتونه او کومکونه وو چې وشول. خو متاسفانه چې د کمونیزم د بقایاوو د فعالیت په نتیجه کښې بیا هم زموږ مسلمان قهرمان ملت په جنګونو باندي اخته شوی، داسي حالات راغلل چې خلکو به جهاد او مجاهدینو ته بد ویلي، خدای نخواسته خلک ناپوهانه د غټي ګناه مرتکب شول ځکه د جهاد او مجاهدې عظمت په قرآن کریم کښې ثابت دی په همدې خاطر موږ یو تعداد طالبانو د علمای کرامو څخه په مشوره اخستلو د اسلامي حکومت د را وستلو، د مسلمانانو د امنیت ساتلو او د همدې وطن د استقلال په منظور قیام وکړ، تاسی ته معلومه ده او موږ ښه پیژنئ چې موږ ستاسو

مخلص همسنگره ورونه وو، په جهاد کې مو قرباني ورکړې وه خو بیا هم په موږ پسې څومره تبلیغات وشول، موږ ټولو خلکو خاص قومندانانو ته زیات دعوت ورکول او زارۍ به مو ورته کولې چې د الله تعالی په خاطر د بدو افعالو، بې ځایه محصولونو څخه لاس واخلئ او دغه مظلوم ملت له خانه جنګي څخه خلاص کړئ، خو له دې سره سره به هم کفري تبلیغاتو موږ یوه جنګجویه ډله معرفي کولو، خلاصه عرض مو دا دی الله تعالی په موږ علم لري، الله تعالی را باندې شاهد دی په ورځ د قیامت چې الله تعالی قاضي وي او (یوم یفر المرء من اخیه و امه و ابیه و صاحبته و بنیه) ورځ تحقق ومومي موږ به همدغه څه چې و مو کړل او تاسو ولیدل وړاندې کوو، له تاسو څخه مو هیله او خواهش دا دی چې د حق ملاتړ وکړئ، خپل ځانونه قرباني او ایثار ته اماده کړئ او د هر قسم تبعیض په مقابل کښې قیام وکړئ، هر هغه څوک چې د اسلام او مسلمانانو په ګټه کار کوي هغه زموږ ورور دی، له موږ سره د یوي خاصي طبقې د لوړولو فکر نشته او نه د یوې خاصي طبقې د حکومت کولو په خاطر جنګیدلي یو، خو ارزو مو دا وه او هم دا ده او هم به وي چې د اسلام په تاریخ کښې انبیاء علیهم السلام اولین قرباني ورکړې، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په عصر کښې طالبان چې په هغه وخت کښې د اصحاب صفه په نوم یادیدل غټه قرباني ورکړې، موږ هم په همدې تکل کړې دی چې هوسا او آرام ژوند دې آینده خلک وکړي موږ که ټوکر ټوکر شو هیڅ باک نه لري، تاسي ته معلومه ده او الحمد لله په ډیر جرآت سره باید ووایو چې موږ د هیڅ طاغوت سره سازش نه دی کړی او نه یې کوو، یوه مکمله بودیجه او سرمایه نه لرو، موږ لازمه وګڼله چې داسې صابرین کسان له موږ سره ملګري شي چې مادي تقاضا و نه لري په همدې حصه کښې هر څوک چې مسلمان، متدین، صالح انسان وي موږ ته منظور دي او خاص دغه ورونه چې په څوارلس کاله جهاد کې یې خپل کور د روسانو د ټانګونو هدف ګرځیدلی و، په تیرو دریو کلونو کې یې هم له ملت سره هیڅ قسم خیانت نه وي کړی، په اخیر کې بیا وایو چې موږ اول هم د علماؤ په شرعي فتوی باندې کار شروع کړی و اوس به هم خپلو کارونو ته په هم هغې فتوا دوام ور کوو او د دې آیت ( و شاورهم في الامر فاذا عزمت فتوکل علی الله ) د عملي کولو په خاطر هر څوک چې د مشورې قابل وي او ور څخه مشوري اخستلو ته

ضرورت پیدا شي موږ تـه سـالمه اسـلامي مشوره راکـړي موږ بـه يـي خپلـه تـګ لاره ګرځوو.

په ټوله نړۍ کښې د کفري طـاغوتي قوتونـو د سر نګوني او د اسـلام د عـالي کولـو پـه هیله

و من الله التوفیق

**د ملا محمد عمر مجاهد توصیه**

محترمو مجاهدینو !

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

۱ ـ څرنگه چې یو کار شروع کوئ تر هر څه مخکې باید نیتونه اصلاح کړئ، نیت خاص الله جل جلاله وگرځوئ، ځکه اصل د اعمالو نیت دی، نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي (انما الاعمال بالنیات)

۲ ـ په دوهم قدم کې د شرعي آمر په شرعي امورو کې خاص په اوسني وخت کې د خپل امیر اطاعت وکړئ، د صحابه کرامو رضي الله عنهم تاریخ ثابته کړي چې په اطاعت سره د الله تعالی نصرت او کومک کیږي، صفونه محکم کیږي، زموږ له خوا څخه چې کوم امیران در ته تعین شوي خاص اطاعت یي وکړئ، حتی تر ډلگیو پوري، د هري ډلگۍ افراد باید د خپل ډلگۍ مشر اطاعت وکړي ځکه الله فرمایي: (و اطیعوا الله و اطیعوا الرسول و اولي الامر منکم) د اختلاف د بدی په حصه کې الله تعالی فرمایي: (و لا تنازعوا فتفشلوا و تذهب ریحکم)

۳ ـ هوش وکړئ، متوجه شئ چې د بیت المال په مال کې هیڅ خیانت و نکړئ، کوم ځای چې د بیت المال د مالونو د تجمع لپاره تعین شوي وي د بیت المال ټول مالونه هلته ورسوئ، موټر، سلاح هر څه چې وي، ځکه الله تعالی فرمایي (و من یغلل یات بما غل یوم القیمة).

۴ ـ په خپل ما بین کې ښه سلوک په ښو اخلاقو سره گذاره وکړئ ځکه د مسلمانانو دا لوی صفت دی چې په خپل مابین کې به ترحم سره کوي، الله تعالی فرمایي: (رحماء بینهم).

۵ ـ د جنگ حالات اضطراري دي مایوسي به نه کوئ، صبر، حوصله به کوئ، د جنگ حالات اضطراري دي خدای نکرده په اکمالاتو کې ضعف راشي خو تاسو مایوسه کیږئ مه، ځکه خدای تعالی فرمایي : (و لا تهنوا و لا تحزنوا و انتم الاعلون ان کنتم

مؤمنین ) په بل ځای کې فرمايي : ( و لا تهنوا في ابتغاء القوم ان تکونوا تألمون فانهم يالمون کما تألمون و ترجون من الله ما لا يرجون ).

٦ ـ که کامياب شوئ غرور، تکبر و نکړئ ځکه الله تعالی فرمايي ( و ما رميت اذ رميت و لکن الله رمی ) د خپلي فتحي تفويض به الله ته کوئ.

٧ ـ د خلکو د شخصي مالونو مراقبت وکړئ، کوشش و کړئ د خلکو شخصي ـ مالونه محترم و ګنئ، هيڅ غير شرعي تصرف په شخصي مالونو کې و نه کړئ.

دغه ( اوه /٧ ) مادې مو د دې لپاره وليکلې چې قول او عمل مو سره موافق شي او څرنګه چې ټولو خلکو ته مو د شريعت د عملي کولو وايو دغه قول به هم په عمل کې تمثيل او عملي شي، څه چې مو در ته وليکل دا زموږ ويل نه، بلکې د الله جل جلاله او د هغه د رسول صلی الله عليه وسلم فرموده ده، دغه زموږ ليکل که عملي کړئ د دې آيت شريف مصداق به تاسو ياست: ( و اطيعوا الله و اطيعوا الرسول و اولي الامر منکم ).

د اسلام خادم

ملا محمد عمر اخند

## د سږې میاشتې د ځانګړې اونۍ په مناسبت د محترم امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد پیغام

میزان ۱۹ ـ ۱۳۷۵ هـ ش

الحمد لله رب العلمین و العاقبة للمتقین و الصلوة و السلام علی خیر خلق الله محمد رسول الله حبیبنا و حبیب رب العالمین و علی آله و اصحابه اجمعین

اما بعد: فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم، بسم الله الرحمن الرحیم (و احسن کما احسن الله الیک) صدق الله العظیم.

مؤمنو هیواد والو !

السلام علیکم ورحمة الله و برکاته

زیری درکوم چې د سولې او سوکالۍ لمر به د لوی الله جل جلاله په فضل او نصرت د هیواد ټولې تیارې سیمې هم روښانه کړي، نور به په هیواد کې د ژبې، سیمې او نورو تعصباتو په نوم بې وزله هیواد وال نه ځورول کیږي، نور به وران او ویجاړ شوی هیواد په یو او بل نوم په کنډرونو او کنډوالو نه بدلیږي، نور به زموږ مؤمن ملت د پښتون، تاجک، ازبک و هزاره، پشه اي، نورستاني او..... په نومونو زندانونو او د ربړولو ځایونو ته په یو او بل راز تورونو نه بیول کیږي.

مؤمنو افغانانو!

له دې وروسته افغانان ټول افغانان دي او په هیواد کې له یو شانته برابرو حقوقو څخه برخمن دي، یو افغان پر بل افغان هیڅ راز لوړوالی او برتري نه لري مګر د الله جل و علا شانه د حکم مطابق لوړوالی او برتري د تقوا او پاکوالي په آساس ده.

ربړیدلو وروڼو! تاسو ته معلومه ده چې هیواد ویجاړ، ملت بیمار او ولس ډېر ځوریدلی او زړونه تبې تبې دي، اوس پر موږ او تاسو ټولو فرض دي چې د دې رنځور ملت په ټپونو باندې د زړه سواندۍ مرهم پټۍ کیږدو.

سره میاشت په هیواد کې یواځنۍ ملي خیریه ټولنه ده او شپه ورځ په هر راز حالاتو او شرائطو کې یې له خپلې وسې سره سم د بې وزلو او ربړېدلو د لاس نیونې لپاره خپلې هلې ځلې نه دي سپمولې او د کونډو، رنډو او یتیمانو اوښکې یې هر وخت پاکې کړې دي، اوس چې د سرې میاشتې ځانګړې اونۍ ده، سره میاشت په هیواد کې ځانګړې عائداتي سر چینې نه لري، د دغې خیریه ټولنې اقتصادي بنسټ د مؤمنو بشر پالو هیواد والو په مرستو سره پیاوړې کیدا ی شي.

زه د مسلمانو هیواد والو په نماینده ګې د سرې میاشتې د حقوقو د حامي په توګه له ټولو هیواد والو څخه غواړم چې په هر وخت او هر ځای کې له سرې میاشتې او د ددې ټولنې کار کوونکو سره خپلې مرستې و نه سپموي، سره میاشت او کار کوونکي یې زما او د اسلامي دولت له حمایت او ځانګړې پاملرنې څخه برخمن دي او په ډاډ سره دې خپل کارونه وکړي، په دې ځانګړې اونۍ کې ټولو هیواد والو ته بلنه ورکوم چې د سرې میاشتې عالي خیریه ټولنه په خپلو مادي او معنوي مرستو پیاوړې کړي، الله جل و علا شانه فرمايلي : نیکي وکړه لکه څرنګه چې الله جل جلاله له تا سره نیکي کړې ده، دا فرمان ومنئ او په نیکو او خیریه کارونو او چارو کې هلې ځلې وکړئ.

و السلام

امیر المؤمنین

ملا محمد عمر مجاهد

## د خپلواکۍ د یواتیایمې کلیزې په مناسبت د عالیقدر امیرالمؤمنین پیغام

نحمده و نصلي علی رسوله الکریم امام الاحرار والمجاهدین محمد و علی آله و اصحابه المجاهدین، الفاتحین، الغانمین. امابعد فاعوذ بالله من الشیطن الرجیم. بسم الله الرحمن الرحیم. قال الله تبارک و تعالی فی کتابه الکریم: وقاتلوا المشرکین کافة کما یقاتلونکم کافة واعلموا أن الله مع المتقین. التوبة ۳۶

و عن ابي هریرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: والذي نفسي بیده لولا أن رجالا من المسلمین لا تطیب أنفسهم أن یتخلفوا عني، ولا أجد ما أحملهم علیه ما تخلفت عن سریة تغزو في سبیل الله والذي نفسي بیده، لوددت أن أقتل في سبیل الله، ثم أحیا، ثم أقتل، ثم أحیا، ثم أقتل، ثم أحیا، ثم أقتل. متفق علیه.

درنو هیوادوالو او زړور مجاهد ولسه!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

نن ورځ چې د زمري د میاشتې له اته ویشتمې نیټې سره سمون خوري، زموږ غونډې او ټولیدنه له نن څخه یواتیا کاله مخکې د اسلامي جهاد او سربښندنې په برکت زموږ د ویاړلي او مؤمن ولس د سترې فتحې، حریت او استقلال یاد تازه کوي.

کله چې په همدغه ورځ د دې سرلوړي او آزاد هیواد مسلمان او پر دین مین ولس د اسلام د مقدس دین د ارزښتونو په رڼا کې، د تودو ولولو په لرلو سره د هغه وخت د ستر او جابر استعمارگر قوت په مقابل کې جهاد تر بریا ورساوه. که څه هم د دوی لاسونه خالي، امکانات ضعیف او نظامي وسائل بیخي کم وو خو ایمان یې قوي و. دوی د دوو میاشتو په دننه کې د الله تعالی په فضل او نصرت سره وکولای شول چې په هغه وخت کې چې په اصطلاح د نړۍ ستر طاقت چې د نړیوال جنگ د فتحې غرور یې لا هم په ماغزو کې و له سختې ماتې سره مخامخ کړي او د خپل اسلامي او ازاد هیواد استقلال او حریت ترلاسه کړي.

د افغانستان په استقلال او جهاد کې د هیواد ټول اقشار، ټول قومونه، نر او ښځې، واړه او زاړه شریک او په گډه یې د خدای جل جلاله په نصرت د خپل اسلامي او ملي

یووالي په برکت انګلیسانو ته سخته ماتې ورکړه. څرنګه چې موږ هم د هغو مجاهدو او قهرمانو نیکه ګانو اولادونه یو او د خپل هیواد د اسلامي او ملي حاکمیت ساتنه موږ ته په میراث پاتې شوې ده نو په دې اساس زموږ اوسنی ولس او د نړۍ خلک زموږ پر پاکه او اسلامي خاوره باندې د یوه بل جابر او خونخواره استعمارګر روس او فقید شوروي د بې رحمانه یرغل شاهدان دي. څرنګه چې د افغانستان مسلمان او پر دین او استقلال مین ولس ته اسلامي جهاد او حریت له خپلو نیکه ګانو څخه په میراث پاتې دی، نو په دې اساس نړیوالو ولیدل چې څرنګه سرلوڅو او پښې لوڅو افغانانو بې له دې چې د مادي وسائلو او نظامي تجهیزاتو نشتوالی یې په عزم او اراده کې بدلون راولي، یوازې د لوی خدای جل جلاله په توکل او خپل غیرت او میړانه د خپلو نیکه ګانو په اسلامي تاریخ باندې اتکاء وکړه او په تشو لاسونو یې د وخت د سترنظامي قوت چې ټوله نړۍ د امریکا په شمول ورڅخه په ډار کې وه په مقابل کې د جهاد اعلان وکړ او د علماء کرامو له فتوی سره سم ټول هیواد د سره استعمار لپاره سور اور وګرځېد.

سره له دې چې روسانو د نړۍ پرمختللې وسلې، ذروي قوت، لیري واټن ویشتونکي توغندي او زهر جن کیمیاوي بمونه د افغانستان پر مجاهد ولس او ازاده خاوره استعمال کړل، خو د ایمان او ټینګ عزم په مقابل کې یې څه ونشوای کړای او نه یوازې دا چې په افغانستان کې یې نظامي ماتې وخوړه بلکې د نړۍ په نقشه کې د هغه شوروي اتحاد ټغر چې د ټولې نړۍ د هضمولو اراده یې کړې وه ټول او امپراتوري یې ړنګه شوه. موږ بې له تردده ویلای شو چې دا د افغانانو اسلامي او ملي سوک و چې د نړۍ دغه تر ټولو لوی مستکبر یې راوپرځاوه (ذالک فضل الله یؤتیه من یشاء)

د افغانستان مجاهد ولس چې غوښتل یې د شورویانو او د هغوی د ګوډاګیانو له له منځه وړلو وروسته یو منظم او مستحکم اسلامي او ملي حاکمیت رامنځته شي، د شهیدانو ارمانونه پوره، د کونډو او یتیمانو هیلې او ارزوګانې پرځای شي. خو متأسفانه بیا هم د پردیو د لاسوهنې په نتیجه کې زموږ ارمانونه او هیلې پر ځای نه شوې او زموږ غریب هیواد یو ځل بیا د خپل منځي ناروا او د قدرت پر سر د جګړې شاهد و. په

زرهاوو بې ګناه انسانان قتل، چور او چپاو، پاټکونه، قطاع الطریقي، قومي، نژادي او سمتي نفرتونه ورځ په ورځ زیاتیدل. په سلهاوو زره میله ډول ډول خطرناکې وسلې په هیواد کې خپرې شوې وې او په یوه هیواد کې په سلهاوو خپلسرې حکومتونه رامنځته شوي وو او زموږ د هیواد تاریخي دښمنانو دا ګډوډې د افغانستان د تجزیې د شوم پلان د عملي کولو لپاره ښه زمینه بلله.

د هیواد دې غمجن او له درده ډک وضعیت کې د هیواد اصیلو بچیانو طالبانو د علماء کرامو په فتوی او د مجاهد او زړور ملت په ټینګ ملاتړ خپل کتابونه کټ کړل، مدرسې او حجرې یې وتړلې او په ډیرو قربانیو او د ډیرو تنکیو ځوانانو، د قران کریم د حافظانو، د حدیثو، تفسیر او فقهې د علماء کرامو په سر ورکولو سره یې د هیواد تقریبا پنځه نوي فیصده خاوره د شر، فساد، ظلم، بې عدالتي، ډول ډول وسلو او د پردیو له غلامانو خلاصه او ازاده کړه.

طالبانو په هیواد کې هغه څه چې په نړیواله سطحه یې کیدل ناشوني بلل کیدل ترسره کړل، د هغو له جملې څخه په افغانستان کې د ټولو خودسرو پاچاهیو له منځه وړل، یو قوي مرکزي اسلامي حکومت رامنځته کول، د افغانستان له بیلابیلو سیمو څخه په لکونو میله درنه او سپکه خپره شوې وسله راټولول او بالاخره د افغانستان لپاره د تجزیې د خطرناکې دسیسې شنډول شامل دي.

د افغانستان اسلامي امارت چې د هیواد ټولو پرګنو او د ملت له پوره ملاتړ څخه برخمن دی د یوه آزاد، اسلامي او مستقل افغانستان لپاره و هرې قربانۍ ته تیار دی. اسلامي امارت د نړۍ له ټولو سوله غوښتونکو هیوادونو څخه غواړي چې په افغانستان کې موجوده واقعیتونه په نظر کې ولري او د هغو په بناء له اسلامي امارت سره خپلو اړیکو ته پام وکړي.

اسلامي امارت د اسلام او افغانستان د ټولو اسلامي او ملي اصولو په نظر کې نیولو سره د نړۍ له ټولو هیوادونو سره په متقابل احترام مبنی اړیکي غواړي. اسلامي امارت نور چاته اجازه نه ورکوي چې د مظلوم او غیور ملت، استقلال او ملي منافعو ته په بده سترګه وګوري. اسلامي امارت د اسلامي اصولو د ساتنې او د افغانستان د استقلال او

ملي حاكميت د دفاع لپاره پر ټول اسلامي امت غږ کوي چې په دې برخه کې له افغانستان سره مرسته وکړي. په پای کې یو ځل بیا دا یادونه ضروري بولم چې افغانستان درې واره فرنګي استعمار او په آخر کې روسي استعمار ته چې د نړۍ د نیولو اراده یې لرله سختې ماتې ورکړې او ټوله نړۍ د افغانانو د دې احسان پوروړې ده.

د افغانستان مسلمان او میړني ولس اوس هم د خپل اسلامي او ملي استقلال د بقاء لپاره د هر هغه چا چې په افغانستان کې ناروا مداخله کوي بې له دې چې مادي وسائل او نورځه په نظر کې ولري، د خپلو پلرونو او نیکونو په شان یوازې د لوی خدای جل جلاله په توکل او د غیور ملت د سربښندنې په مټ ورته غاښ ماتوونکی ځواب وایي.

په پای کې د افغانستان د مخکني او اوسني استقلال د ټولو شهیدانو او غازیانو پاکو روحونو ته دعاء کوم او د هیواد د سالمیت، ترقۍ او سرلوړۍ هیله د رب العزت و دربار ته وړاندې کوم.

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

د اسلام خادم

امیرالمؤمنین

ملا محمد عمر مجاهد

۲۸/۵/۱۳۷۹ هـ ش

مأخذ (کندهار مجله، پرلپسې اتمه ګڼه ۷۱ مخ)

## د دار العلوم دیوبند د یونیم سل کلنو خدمتونو د یاد غونډې ګډون کوونکو ته د عالیقدر امیرالمؤمنین پیغام

الحمد لله رب العلمین و الصلوة والسلام علی قائد المجاهدین و علی آله و صحبه أجمعین.

محترمو علماکرامو، د دې پرتمینې غونډې ګډون کوونکو او د نړۍ ټولو مسلمانانو!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

د محمدي امت په دې حساسو او بوږنوونکو شرائطو کې د دا ډول لویو غونډو جوړول سره له دې چې ګټور او په زړه پورې ګام دی، مسلمانانو ته دا موقع ورکوي چې په خپلو ربړو او مشکلاتو سره خبرې وکړي. الله تعالی دې د جمعیت علماء اسلام منسوبینو ته د دغې سترې کارنامې اجرونه ورکړي.

فعلي شرائط ایجابوي چې د مسلمانانو په موجوده ستونزو باندې باید داسې نړیوالې غونډې وشي. د دارالعلوم دیوبند خدمتونه له چا څخه پټ نه دي. د هند په نیمه وچه کې له ډیرو خنډونو او موانعو سره سره د دارالعلوم دیوبند په برکت دیني علوم او اسلامي اقدار تراوسه ژوندي پاته شوي دي او اسلامي نړۍ ته یې داسې د کار او لوړ همت شخصیتونه وړاندې کړي دي چې د هغو علمي، اصلاحي او دعوتي کارنامې د هیرولو نه دي.

د غونډې برخوالو مسلمانانو وروڼو!

د کفري نړۍ تیری او له مسلمانانو سره له کبره ډک چلند اوج ته رسیدلی دی او د نړۍ په هره برخه کې له مسلمانانو سره له تبعیضه ډک چلند کیږي. کفري نړۍ د ملګرو ملتونو تش په نامه نړیواله اداره د خپلو اهدافو لپاره استعمالوي، دغې ادارې که کله هم د مسلمانانو په ګټه کومه پریکړه کړې وي هغه په کلونو کلونو د کاغذ پر مخ پاته وي او نه عملي کیږي خو د دوی په ګټه مسائل په ډیره چټکه توګه عملي کیږي. د مسلمانانو نړیوال سیاسي موقعیت تقریبا د تحت الحمایه ګۍ درجې ته رسیږي او د نورو تر سیوري لاندې ژوند کوي.

دا په داسې حال کې ده چې د مسلمانانو جغرافيوي موقعيت له اقتصادي نقطه نګاه نه ډېر په زړه پورې دی اود خامو موادو بې شميره زيرمې لري خو له دې سره سره يې په ملل متحد کې دومره کمزوری حيثيت دی چې هيڅکله هم د دوی ستونزو ته نه شي درمل کيدلی.

د کفري نړۍ اهداف او مقاصد څرګند دي.هغوی اوس په نړۍ کې له اسلامي نظام پرته بل سيال نه ويني او له دې کبله خو دوی په افغانستان کې اسلامي امارت په هيڅ صورت نه شي زغملای او اسلامي امارت د هيواد د پنځه نوي په سلو کې خاورې له ولکې سره سره بيا هم د حکومت پر ځای د ډلګۍ په نامه يادوي.

د افغان مجاهد ولس په زور او همت سره شوروي اتحاد رانسکور شو. هغه شوروي اتحاد چې د امريکا او غربي نړۍ تر پولو پورې يې ځان نږدې کړی و. هغه شوروي اتحاد چې په ويتنام کې يې امريکا ته شرموونکې ماتې ورکړې وه. هغه شوروي اتحاد چې منځنۍ آسيا يې هضم کړې وه او هغه شوروي اتحاد چې تودو اوبو ته د رسيدو لپاره يو ګام څمکه ورته پاتې وه. په هغو شپو کې د نن په اصطلاح پياوړې امريکا وجود په لړزېدو و، هلته يې د شکست په ترخو حلق تريخ و او ژبون وهلی ناست و.

خو دې بې وسه ولس د خپل ځواکمن ايمان په برکت هغه کمونيزم په ګونډو کړ او شکست نه منونکی شوروي اتحاد يې د نړۍ له نقشې څخه محو کړ او هغه انسانخوره بلا همدې افغانانو نابوده کړه او ګردې نړۍ ته يې نجات ورکړ.

د اسلام او کمونيزم په دې جګړه کې زموږ هيواد وران شو او له ډېرو درنو ستونزو او ربړو وروسته دې مظلوم ولس په خپله خاوره کې د خپلې خوښې اسلامي نظام پلی کړ. خو دې بې انصافې او جفاکارې نړۍ زموږ ټولې کارنامې هيڅ وبللې او اوس غواړي چې له خپلې دغې يوازينۍ موخې څخه مو هم واړوي.

هغوی په دې جهادي ټاټوبي افغانستان کې اسلامي حکومت په هيڅ صورت نه شي زغملای. په افغانستان باندې د هغوی بې رحمانه بنديزونه او هغه هم د ملګرو ملتونو په چوکاټ کې دا راښيي چې کفري نړۍ په ډېره سرتمبګۍ او تکبر سره د اسلامي امارت

مخالفت ته ملا تړلې ده. له اسلامي امارت سره د هغوی ټول مخالفتونه په هیڅ منطق نه دي بنا. د دلیل او منطق د نړۍ دعوه لرونکي د اصولو او پرنسیپ تش په خوله پلویان یوازې د زور په نیلي سپاره ده.

موږ له ټولې نړۍ سره د متقابلې همکارۍ او له اسلامي نړۍ سره د اخوت او ورورولۍ په فضا کې اړیکې ټینګول غواړو او هر چاته مو د سولې لاس اوږد کړی دی.

زموږ په هیواد کې د همدې نړیوالو استعمار ګرو په لاس د یو څه وخت لپاره د کورني جنګ او ورور وژنې اور په غرغړو شوی و، دلته هغه پېښې رامنځته شوې وې چې زموږ د هیواد ځمکنۍ بشپړتیا یې په خطر کې اچولې وه. دلته ناروا او بې معنی جګړې روانې وې، خو همدې امریکا او غربي نړۍ چې نن یې په افغانستان کې د جنګ د ختمولو او د افغانانو د بشري حقوقو د ساتلو دروغجنه چیغه پورته کړې ده، مسلمانان ښه پوهیږي چې دا یوازې د خولې خبرې دي، دوی و چې د افغانستان په سخته بده ورځ باندې یې غوږونه کاڼه کړي وو.

اما نن چې موږ اسلام په واقعي او اصلي بڼه عملي کړی او اسلامي امارت مو رامنځته کړی، امنیت مو ټینګ کړی او وروروژنه مو له منځه وړې ده، د سولې د تامین لپاره مو زیاتې سپیڅلې وینې قربان کړي او په دې هیواد کې مو یو داسې حکومت قائم کړ چې ټول ولس پرې خوښ دی او زیاته مینه او خواخوږي ورسره لري، نو نړیوال یې کله د سخت دریځه اسلام او کله هم د طالبانو د تعبیر د اسلام په نامه د بدنامولو لپاره ډول ډول تبلیغات کوي.

موږ په ډاګه ویلای شو چې اسلامي امارت د افغانستان د خلکو د خوښې حکومت دی چې زموږ د دې ادعاء لپاره د مخدره موادو بندیز چې ټوله نړۍ یې مخنیوي ته حیرانه وه او شکایت یې کاوه ښه دلیل دی. سره له دې چې زموږ د هیواد ډېرو بزګرانو کوکنار کرل او په دې رنګ هیواد کې یې همدا د عائداتو لویه سرچینه وه خو چې کله اسلامي امارت د هغو په کرلو بندیز ولګاوه، ټولو په یوه خوله زموږ خبره راسره ومنله. نړیوالو د دې پر ځای چې زموږ دغه اقدام وستایي او په عوض کې یې له بزګرانو سره مرستې وکړي خپل زهرجن تبلیغات یې نور هم [illegible] زیات کړل.

په هیواد کې زموږ امرونه او احکام په ډېره تیزۍ سره منل کیږي او زموږ د نظام هرې خبرې ته زموږ ولس لبیک وایي او یو څه بې لارې او غرب پلوه افغانان که مخالفت کوي هغه یو یا دوه فیصده هم نه دي خو اوازه او پروپاګنده یې څکه دومره لوړه او تیزه ده چې هغوی د همدې غربي نړۍ په غېږ کې ناست دي، غرب او امریکا خپله میډیا ورته وقف کړې ده.

موږ خپلو خلکو ته هغه نظام پلې کړی چې په هغه دوی ایمان لري. زموږ اساسي قانون قرآني اصول دي او دا اصول د مؤمنانو ایمانیات دي. اسلامي امارت د هیواد او سیمې د سولې لپاره ډېرې وینې تویې کړې دي او له نړۍ سره په اړیکو ټینګولو کې یې له هرې ممکنې لارې کار اخیستی دی. موږ په زغرده وایو چې اسلامي اصول هیڅکله هم تر پښو لاندې کولای او په قرآني پریکړو باندې له هیچا سره سازش نه شو کولای.

زموږ مظلوم ولس روسي یرغلګرو ډېر ځورولی دی. انسانخوره کمونیزم زموږ هیواد په کنډواله بدل کړی، زموږ هیواد ویجاړ او کنډر پروت دی. زموږ ولس شل کلنو جګړو زیات ځپلی دی. زموږ مظلوم هیوادوال له ډېرو اقتصادي ستونزو سره مخامخ دي. موږ غواړو چې خدای جل جلاله دا جګړې ختمې کړي او د هیواد په بیا جوړولو لاس پورې کړو او خپلو مظلومو هیوادوالو ته دا ړنګ کورګی بیرته ودان کړو.

موږ تر هر چا زیات سولې ته اړ یو څکه نړیوال استعمارګر تروریزم موږ ته هیڅ نه دي راپرې ایښي. نړیوال کفري ځواکونه موږ د خپلو هیوادوالو خدمت ته نه پریږدي. موږ دې ته نه یو خلاص چې د خپلو یتیمانو اوښکې پاکې کړو. موږ دې ته نه پریښودل کیږو چې خپلو کونډو او بورو ته سرپناه جوړه کړو. موږ له اسلامي نظام، ازادۍ او حریت سره مینه لرو.د اسلامي حکومت او ازادۍ لپاره موږ د سرونو ورکولو ته تیار یو خو نړیوال کفر غواړي چې موږ له خپل دغه هدف څخه تیر شو. هغوی په خپلو دغو دښمنانه او بې رحمانه پلانونو سره غواړي چې زموږ له سرونو څخه د آزادۍ مفکوره وباسي نو څکه ویلای شو چې په اصطلاح د وخت زبرځواکونه زموږ خلاف سره یو شوي دي او په ډول ډول بهانو سره یې پر موږ ناروا بندیزونه لګولي دي.

د ترووريزم په تور او د بشرد حقوقو د نه مراعتولو په پوچو نعرو سورو سره يوازې مونږ نه بلکې هر ځای مسلمانان کړوي او سپکوي. تر پرونه پورې دې تش په نامه لويو ځواکونو د نړۍ کمزوري او مستضعف ولسونه ځبېښل، د هغوی هيوادونه يې مستعمرې گرځولې وې، پرون لا روسانو ډېر هيوادونه تر خيټه لاندې کړي وو. او اوس يې هم د منځنۍ آسيا هيوادونه تر واک لاندې دي. څه موده وړاندې لويې برتانيا په نړۍ کې خپل استعماري جال غوړولی و او د هند نيمه وچه يې تر ځبېښاک لاندې کړې وه. نن امريکا پر ټوله نړۍ د واک چلولو پلانونه جوړوي او مونږ په خپلو هيوادونو کې د خپلې خوښې حکومتونو جوړولو ته نه پرېږدي او د نړۍ د ايل کولو په فکر کې يو ځای هم ولسونه په ارام نه پرېږدي او د مسلمانانو په نابودۍ پسې خو يې له يوې مخې را اخيستي ده. اسلامي نظام او جهاد له منځه وړل غواړي او د همدې هدف لپاره اوس هغوی ټول يو موټی شوي دي او تش په نامه د ملگرو ملتونو اداره د خپلو گټو لپاره استعمالوي.

په ملگرو ملتونو کې غړيتوب اسلامي هيوادونو ته څه گټه رسولې ده؟ د هغوی کومه ستونزه د ملگرو ملتو له لارې حل شوې ده؟

نو د مسلمان امت په دې ويرژلي حالت باندې يو څه کول په کار دي. په دې سختو حالاتو کې د مسلمانانو وحدت او يووالي ضروري دی او له دې بحران څخه د وتلو لپاره څه لارې چارې لټول په کار دي. د مسلمانانو لپاره دا ډول غونډې او اجتماعات ډېر ضروري دي څو په خپلو مسائلو، ستونزو او دردونو باندې سره وغږېږي.

نن چې د نړۍ پر مخ مسلمانان د يوه امت په حيث اوسي بايد خپل اسلامي تشخص وساتي او په دې پوه شي چې مسلمانان ولې آرام ژوند ته نه پرېښودل کېږي. مسلمانانو د هيچا په هيواد تيری نه دی کړی همدا نور حکومتونه دي چې په دوی تيری کوي. دا جگړې او شخړې چې رواني دي د مسلمانانو په هيوادونو کې دي او پردي هيوادونه راغلي دي دوی په ارام نه پرېږدي. زمونږ په هيواد روسانو تيری وکړ، مونږ په هغو پسې نه يو ورغلي هغوی په مونږ پسې راغلل. همداراز امريکا هم زمونږ خاوره په کروز توغنديو وويشته. د فلسطين مسلمانان همداراز په خپل هيواد کې کړول کېږي. يهوديان

د دوی سیمو ته ورغلي دي.په چیچنیا او کشمیر کې هم همدا حال دی او هم په نوره گرده اسلامي نړۍ کې همداسې چلند کیږي.

نو په داسې حالاتو کې تر هرڅه مخکې د مسلمانانو وحدت او یووالي ته اشد ضرورت دی خو له بده مرغه چې مسلمانان په خپلو منځونو کې سره لاس او گریوان دي. په یوه هیواد کې د جزئي اختلافاتو په وجه په لسگونو اسلامي گوندونه جوړ شوي وي. دې تقسیماتو او جلاوالي په موږ کې د امت د یووالي او د مسلمانانو د ستونزو د حل کولو فکر وژلی دی د یووالي لپاره د پخو گامونو پورته کول په کار دي.

په پای کې یو ځل بیا هیله کوم چې زموږ مسلمان، مظلوم، ستړي او محصور ولس چې د نړیوالو بدمعاشانو لـه گواښـونو سره مخامخ دی او د ایـمان او اسلام پـه جـرم کـړول کیږي له خپله دعاگانو مه هیروئ.

په نړۍ کې د مسلمانانو د لازیات بریالیتوب په هیله

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

ستاسې ورور

داسلام خادم

ملامحمد عمر مجاهد

(مأخذ کندهار مجله پرلپسې څوارلسمه گڼه)

****

## د ملاصاحب ځینې مرکې

**له عالیقدر امیرالمؤمنین سره د الامارة الاسلامیه (عربي) او خلافت ( پښتو) مجلې مرکه**

پوښتنه

اسلامي امارت په افغانستان کې څه ډول نظام چلول غواړي؟

ځواب

موږ له هغه اول سر نه داسې کړنه غوره کړې، چې هغه سل په سلو کې په اسلامي شرعي نظام باندې ولاړه وي. او د ژوند په ټولو اړخونو کې د الله تعالی له لورې نازل شوي احکام حاکم وي او په راتلونکې کې به مو هم دا تګلاره وي چې مکمل اسلامي نظام حاکمیت ولري او ټولې پریکړې مو د خالق رب په قانون سره وشي، ځکه اسلام د الله تعالی په نزد غوره دین دی او اسلام دی چې انسانانو ته د دنیا او اخرت د نیکمرغۍ لارې چارې وربښيي.

پوښتنه

د نړۍ له هیواونو سره څه ډول روابط غواړئ؟

ځواب

زموږ اړیکي به د نړۍ له هیوادونو سره په بشري معیار د متقابل احترام په بناء وي، خو له اسلامي نړۍ سره د اسلامي اخوت او ورورلۍ په بناء مناسبات غواړو او له ګاونډیو هیوادونو سره د نیکې همجوارۍ او د یوه بل په چارو کې د نه مداخلت غوښتونکي یو.

پوښتنه

ځیني هیوادونو دا خبره کوي چې په افغانستان کې دې د خلکو د خوښې حکومت جوړ شي. نه دا چې په خلکو په زور حکومت وشي؟

ځواب

موږ په ډاګه ویلی شو چې اسلامي امارت د افغانستان د ملت د ارادو ممثل او د دوی په خوښه جوړ شوی حکومت دی. همدا وجه ده چې موږ په ډیر لږ وخت کې د افغانستان ٪۹۰ برخې ونیولې، تاریخ ثابته کړې ده چې پر افغانانو باندې کله هم چا په زور سره حکومت نه دی کړی نو طالبان چې پر افغانستان حکومت کوي دنیاوال دې وپوهیږي چې د ملت رضایت موږ ته حاصل دی. که د خلکو رضایت حاصل نه وي طالبان نه شي کولای چې حکومت پرې وکړي، نو په دې مورد کې د بهرنیو هیوادونو مخالفتونو او اعتراضونه بې ځایه او نامناسب دي. اصلي خبره د ملت د عامو خلکو ده چې له موږ سره ملګري دي، نه د هغو څو قمار بایلونکو څخه چې په ساده فکر سره ځانونه د ملت نماینده ګان بولي دا خبره حقیقت ده، که څوک سترګې پرې پټوي نو ډېر سپک پرې معلومیږي.

پوښتنه

غربي هیوادونه د ځینو اسلامي هیوادونو په شمول دا خبره کوي چې اسلامي امارت دې په خپل دریځ کې بدلون راولي او نرمي دې غوره کړي آیا د امکان لري؟

ځواب

څرنګه چې زموږ په هغو کارونو کې چې د اسماني دین دلائل موجود دي په هغو کارونو کې زموږ د دریځ بدلون د امکان له صورت څخه وتلی ښکاري، نو همدا وجه ده چې یوازې او یوازې پر موږ باندې د امریکایانو فشار دی که د ملل متحد یا د کوم بل چا لخوا وي هغه هم د امریکا د فشار له کبله دی. نو په همدې خاطر د نړۍ د مسلمانانو څخه زموږ غوښتنه ده چې په ټینګه زموږ ننګه او ملاتړ وکړي. موږ هغه خلک یو چې د الله تعالی په مرسته مو نړۍ له روسي ښکیلاک څخه خلاصه کړه نو که

ځوک مرسته او تعاون راسره کوي او که نه، زموږ توکل په یوه خالق او قادر لایزال رب جل جلاله باندې دی او بس.

پوښتنه

ملګري ملتونه او ځیني نور هیوادونه د پراخ بنسټه حکومت خبرې کوي په دې هکله ستاسې څه نظر دی؟

ځواب

که له پراخ بنسټه حکومت څخه مطلب دا وي چې د افغانستان د ټولو پرګنو برخه په کې وي نو دغه خو اسلامي امارت دی چې د هیواد د ټولو قومونو استازی، چې د تقوی په معیار غوره شوي دي په کې موجود دي. او که یې مطلب دا وي چې زاړه کمونیستان او د هیواد ورانوونکي او د بیت المال لوټوونکي هم په کې شریک شي نو داسې کله هم نشي کیدلای. ځکه موږ دری عمده اهداف په مخکې لرو چې عبارت دي.د اسلامي شرعي نظام د ټینګولو. د تجزیې څخه د هیواد ژغورلو او په ټول هیواد کې د مکمل امنیت راوستلو څخه. چې البته دغه اهداف د واحدې قومندې په صورت کې ترلاسه کیدلای شي. که هغو خلکو ته چې کمونیستان او یا هم د هیواد ورانوونکي او د بیت المال لوټوونکي دي په حکومت کې برخه ورکول شي نو بیا د پورتنیو اهدافو تحقق غیر ممکن بریښي.

پوښتنه

د چیچنیا د په رسمیت پیژندلو علت څه و؟ او ځیني خلک دا وايي چې اسلامي امارت په خپل دغه کار پښیمانه دی. په دې هکله څه وایاست او اسلامي امارت له چیچنیا سره څه ډول مرستې کوي؟ که په دې هکله معلومات راکړئ؟

ځواب

د چیچنیا په رسمیت پیژندل زموږ شرعي مسؤلیت و. چیچنیا له پخوا څخه یو مستقل هیواد و چې روسانو هم د خپل یوه تړون په ترڅ کې د هغوی په خپلواکۍ اعتراف

کړي دي. په دې کار موږ پښیمانه ځکه نه یو چې دا کار مو د شرعي مسؤلیت په بناء کړی او مسلمان ته د شرعي حکم په اداء کولو ندامت نه دی په کار. موږ له چیچنیا سره یوازې سیاسي او اخلاقي ملاتړ کوو. په اوسنیو شرایطو کې زموږ نور څه په توان کې نشته. ځکه افغانستان په خپله له داخلي او خارجي ستونزو سره مخامخ دی.

پوښتنه

نړیوال او او ملګري ملتونه وایي چې د اسلامي امارت په ساحه کې کوکنار کرل کیږي او د مخدره موادو تولید کیږي که مهرباني وکړئ دغه موضوع یوڅه روښانه کړئ؟

ځواب

د افغانستان اسلامي امارت د مخدره موادو له تولید، استعمال او قاچاق سره مخالفت لري او په دې لار کې یې وخت په وخت مثبت ګامونه پورته کړي دي د مثال په توګه د بنګو او چرسو د مخنیوي په هکله فرمانونه، د هیواد په سرحدي سیمو کې د هیروینو د تولید د فابریکو له منځه وړل او په تیر کال کې د کوکنارو د فصل دریمه برخه کمول او بالاخره ۲۴/۴/۱۴۲۱ هجري قمري نیټه د ۱۹ ګڼه فرمان په اساس په ټول هیواد کې د کوکنارو د فصل د بیخي نه کرلو په هکله اقدامات د یادونې وړ دي. موږ پخوا په نړیوالو مرستندویه ټولنو او ملګرو ملتونو ته ویلي وو چې که د هیواد له بزګرانو سره مرسته وشي نو د کوکنارو فصل به ختم کړو خو هغوی په دې هکله هیڅ ډول مرستې ونه کړې او بالاخره موږ په دې هکله په خپله تصمیم ونیو چې له دې وروسته به په افغانستان کې نور د کوکنارو فصل نه کرل کیږي.

پوښتنه

د ښځو د حقوقو او تعلیم مسئله هم یو له هغو مسئلو څخه ده چې نړیوال یې اسلامي امارت په نه مراعتولو متهموي. په دې هکله ستاسو څه نظر دی؟

ځواب

د افغانستان اسلامي امارت ښځو ته د خپلو اسلامي حقونو په ورکولو کې ګټور ګامونه اخیستي دي چې هیڅوک سترګې نه شي پرې پټولی چې له هغه جملې څخه یو هم ۱۸/۵/۱۴۱۹ هـ ق نیټې د (۱۰۴) ګڼه فرمان دی چې ښځو ته د میراث او خپلې خوښې ازدواج حق ورکول شوی دی چې د افغانستان په تاریخ کې ساری نه لري. همدا راز موږ د ښځو له تعلیم سره مخالفت نلرو په دې شرط چې له شرعي اصولو سره برابر وي او د شرعي حجاب مراعات په کې شوی وي.

پوښتنه

ملګري ملتونه په دې ټینګار کوي چې که اسلامي امارت اسامه بن لادن محکمې ته ونه سپاري نور بندیزونه به پرې ولګوي. ددې ګواښونو په اړه مو نظر څه دی؟

ځواب

د ملګرو ملتونو او یا کوم بل چا ګواښونه به په اسلامي امارت باندې هیڅکله دا ونه منې چې اسامه بن لادن له افغانستان څخه وباسي او یا د خپلو اسلامي پالیسیو څخه تیر شي ځکه موږ په دې باور یو چې اسامه بن لادن یو مسلمان دی چې افغانستان ته یې هجرت کړی دی او د افغانانو میلمه دی. د هغه پر سر معامله کول به د اسلامي اصولو او افغاني عنعناتو خلاف کار وي. حقیقت دادی که چیرې اسلامي امارت او د افغانستان مسلمان ولس د اسامه بن لادن په هکله خپل اوسني دریځ ته تغیر ورکړي نو هرومرو به تاوانیان شي او له سختو کړاوونو سره به مخامخ شي. اسامه بن لادن ته امر شوی دی چې د افغانستان له خاورې څخه د چا پر خلاف سیاسي فعالیت ونه کړي. او نه د افغانستان د خاورې څخه د چا پر ضد ګټه واخلي او هغوی هم له موږ سره وعده کړې او ډاډ یې راکړی دی چې هغه به کله هم داسې خبرې او عمل ونه کړي چې د هغو له امله له نورې نړۍ سره د افغانستان اړیکي خرابې شي. هغوی همدا اوس هم له افغانستان څخه کوم فعالیت نه کوي دا هسې یوه پلمه ده چې امریکا او ملګري ملتونو

بې د افغانستان د اسلامي امارت په خلاف په کار اچوي. دوی په دې اړه تراوسه کوم شواهد نه دي وړاندې کړي.

پوښتنه

ځینې حلقې داسې تبلیغ کوي چې ګواکې پرویز مشرف ته تاسو ویلي چې هغه دې د اسامه بن لادن پر موضوع افغانستان ته د خبرو کولو لپاره نه راځي.

ځواب

دا خبرې بې اساسه دي موږ کله هم هغه ته نه دي ویلي چې هغه دې د خبرو کولو لپاره افغانستان ته نه راځي. هغوی تل دا ویلي چې د اسامه موضوع باید د اسلامي امارت او امریکا د مستقیمو خبرو د لارې حل شي. پاکستان نه موږ ته د اسامه د سپارلو خبره کوي او نه یې هم باید وکړي. ځکه دا موضوع د افغانستان د اسلامي امارت او امریکا موضوع ده.

پوښتنه

که ملګري ملتونه نور بندیزونه لکه ګواښونه چې کوي، ولګوي اثر به یې څه وي؟

ځواب

افغانانو د روسانو د مداخلې په وخت کې ډېر څه د لاسه ورکړل او هیواد یې ویجاړ، لویې لارې خرابې او د زارعت سیستم یې له منځه تللی. له بلې خوا په هیواد کې د وچکالۍ له امله هم ډېر هیوادوال د ستونزو سره مخامخ دي. نو په داسې حال کې باید له افغانانو سره بشري مرستې وشي نه دا چې بندیزونه پرې ولګوي. نو زه فکر نه کوم چې ملګري ملتونه به د افغانستان پر خلاف نور بندیزونه ولګوي او ستونزې به یې نورې هم ورزیاتې کړي. په داسې حال کې چې د بندیزونو لګولو لپاره کوم مجوز هم نشته. خو په هر حال موږ له دې ستونزو څخه شکایت هم نه کوو. ځکه چې دا هر څه د الله تعالی له طرفه یو امتحان دی او الله تعالی به دا ستونزې یو وخت په خپل رحمت سره پای ته ورسوي.

پوښتنه

د افغانستان د مسئلې د حل په اړه مو څه نظر دی؟

ځواب

موږ هم مطمئن یو چې د افغانستان اسلامي امارت مخالفین به ماتې خوري. زه پیشګویي نه شم کولای خو زموږ ربښتینوالي موږ د دې قابل کړو چې د هیواد ۹۵٪ برخې فتحه کړو، اسلامي نظام په کې پیاده کړو او هیوادوالو ته د هوسا او ډاډه ژوند زمینه برابره کړو. زه باور لرم چې اسلامي امارت به مخالفینو ته ماتې ورکوي او ټول افغانستان به تر یوې واحدې رهبرۍ لاندې متحد کړي. او د دې هدف ترلاسه کولو لپاره زموږ لومړنی کوښښ دا دی چې موضوع له جګړې پرته حل شي. څکه دا اوس د مخالفینو د لیکو څخه ډېر قومندانان رابیل شوي دي او له اسلامي امارت سره یوځای شوي دي او امید دی چې نور قومندانان هم ورڅخه بیل شي.

پوښتنه

په دې وروستیو کې د هیواد په مرکز کابل کې یو لړ چاودنې شوي دي. آیا دا به امنیتي ستونزې راپیدا نه کړي؟

ځواب

دا ډول پېښې د نړۍ په پرمختللیو هیوادونو کې هم کیږي. سره له دې چې د مخنیوي لپاره یې ډېرې ادارې کار کوي. موږ یقین لرو چې په افغانستان کې امنیت ډېر ښه دی. خو زموږ دښمنان ډول ډول سازشونه کوي او کومې کوچنۍ پیښې چې وشي د هغو په تبلیغ کې مبالغه کوي او منفي تاثر ورکوي خو هیوادوال له دا ډول تبلیغاتو سره عادت لري او هیڅ ډول تشویش نه ورته پیدا کیږي. موږ امنیتي مقاماتو ته لارښوونه کړې ده چې د دا ډول پیښو د مخنیوي لپاره خپلې هڅې نورې هم تیزې کړي او هیچا ته اجازه ورنه کړي چې هیوادوال له تشویش سره مخامخ کړي. همدا راز ځینې هغه کسان چې دغه چاودنې یې کړې نیول شوي او د تحقیقاتو په ترڅ کې یې په خپلو جرمونو

اعتراف کړي دی. موضوع تر څېړنې لاندې ده. د تحقیقاتو له بشپړېدو وروسته به محاکمه شي. تر څو په راتلونکې کې څوک د امنیت د خرابولو جرئت ونه کړي.

پوښتنه

ځینې خلک دا سې وایي چې د اسلامي امارت په ځینو ادارو کې بعضي-چارواکي رشوت اخلي. دا خبره څنگه ده؟

ځواب

دا خبره څکه بې اساسه ده چې تراوسه هم موږ ته چا په دې اړه شواهد نه دي راکړي. ځکه موږ مخکې هم ویلي او اوس هم وایو چې که هر څوک داسې شواهد حاضر کړي چې هغه د رشوت اخیستلو ثبوت وکړي نو به هرومرو رشوت اخیستونکی د قانون منگولو ته وسپارو او لازمه جزا به ورکړو. هر چا چې له قدرت څخه ناوړه گټه اخیستې او یا د خیانت ثبوت پرې شوی دی موږ له خپلو دندو څخه گوښه کړي او مجازات کړي مو دي.

پوښتنه

د کشمیر موضوع چې څه د پاسه پنځوس کاله کیږي جریان لري خو د حل لپاره یې تراوسه کومه لاره نه ده لټول شوې په دې هکله مو څه نظر دی؟

ځواب

موږ مخکې هم ویلي دي چې په کشمیر کې دې په مسلمانانو باندې ظلمونو بند کړل شي او دا مسئله دې د کشمیر د مسلمانانو له غوښتنو سره سم او یا هم د ملگرو ملتونو پریکړو په اساس حل شي. ځکه دغه کار د هند او پاکستان دواړو په گټه دی کشمیري مسلمانان د ازادۍ حق لري او دا حق باید ورکړل شي.

منبع : خلافت مجله پرلپسې اوولسمه گڼه.۶-۵-۴ مخونه )

## تربيتي غونډې ته د عاليقدر اميرالمؤمنين پيغام

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده و نصلي على رسوله الكريم. امابعد:

درنو علماء كرامو او محترمو طالبانو او د قدر وړ حاضرينو!

السلام عليكم ورحمت الله وبركاته وبعد

د هر څه نه مخكې ستاسو راتلو ته ښه راغلاست وايم او له لوى خداى جل جلاله څخه د دغه تكليف او خدمت په عوض كې درته اجر عظيم غواړم.

محترمو ورونو!

تاسو د اوسنيو روانو جرياناتو څخه ښه خبر ياست. چې له يوې خوا د الله تعالى د دين د حاكميت په خاطر په هيواد كې دننه د داخلي دښمنانو سره چې د مجاهدينو د جهاد ضد دي او له بلې خوا د اسلام د مقدس دين دښمنان له هيواد نه دباندې د دين او اسلامي نظام په خلاف دسيسې جوړوي. او داسلام دښمنان وينئ چې د اسلام د مقدس دين په خلاف يو بل ته لاسونه وركوي.

درنو حاضرينو!

دا چې اوس د الله تعالى په ستر كرم او نصرت سره د افغانستان په يوه لويه برخه كې د الله تعالى دين حاكم شوى د اسلام دښمنان الله رب العزت ذليل كړل. اهل حق ته قدرت په لاس ورغى الله رب العزت عزت وركړ، د شهيدانو وينو رنګ راووړ، د لكونو شهيدانو، كونډو، يتيمانو او ستمزده مؤمنانو ارمانونه الله رب العزت ستاسو د متو په بركت پوره كړل. خو ګورئ چې مغرور نه شئ د الله تعالى ددين خدمت تر همدې ځايه پوره ونه بولئ. په دې پوه شئ چې اوس تر بل هر وخت په زيات امتحان كې لويدلي ياست، ځكه چې مخكې به يوازې د خپل كور او مسجد مسؤليت در په غاړه و نن د ټول مظلوم امت د اميد سترګې ستاسو په لور كړې، دې ... د سنګر، ممبر او دفتر

مسؤلیتونه ټول ستاسو پر غاړه دي. د درانه مسؤلیت لپاره باید ټینګه اراده او کلک عزم وکړو، د بې ځایه بهانو او عذرونو په ځای خدمت ته ملاوتړو او زه خپله هغه خبره یو ځل بیا تکراروم چې که هر چا توان او طاقت درلود او په دغه مقدسه لاره کې یې له خدمت څخه ځان وکیښ د محشر په ورځ کې به یې د الله تعالی په حضور کې له ګریوان نیسم او دغه شاهدي به پرې وایم چې دغو کسانو نه د خدمت زمینه مساعده وه خو دوی غفلت وکړ.

ورونړو!

زه یو سر لرم او له تاسو سره وعده کوم چې د دین په مقدسه لار کې به یې هیڅکله ونه سپموم او هم به په دغه لاره د الله تعالی له رضا څخه بغیر د بل هیڅ کوم ظالم او جابر قوت په مقابل کې له خپل عزم او داعیې څخه ونه ګرځم. خو په دې لاره کې ستاسو مسلمانانو مرستې ته هم اړ یم. موږ او تاسو باید هیڅکله د نبي علیه السلام هغه قول له یاده ونه باسو چې فرمایي: زما امت که هر وخت جهاد ته شا کړه او جهاد یې پریښود نو الله تعالی به یې ذلیل کړي. او دا خبره د اسلام په تاریخ کې ښه ثابته شوه هر چا چې په هر وخت کې جهاد پرې ایښی، الله تعالی بې عزته کړي. موږ او تاسو په دې نږدې وخت کې، الله تعالی یو ځل له روسانو سره په جهاد کولو عزتمن کړو او بیا یې د فساد په مقابل کې په جهاد کولو سره عزتمند کړو.

درنو علماء کرامو!

موږ جهاد ستاسو په فتوی پیل کړی، زموږ طالبانو خپل سرونه ستاسو په فتوی د قربانی میدان ته وړاندې کړي. بیا یې خپلې ټولې پریکړې ستاسې د فتوی په رڼا کې عملي کړي. نن هم طالبان ستاسو رهنمایي ته ضرورت لري. تاسو به یې اخلاقي تربیه کوئ، د دیني، سیاسي، اداري، نظامي او اقتصادي چارو لارې به تاسو ورته روښانه کوئ. د کبر، غرور او بې باکۍ د مخنیوي لارې به یې تاسو سنجوئ. او د اسلام د دشمنانو دسیسې به تاسو رسوا کوئ. خو موږ او تاسو په دې هم باید پوه شو چې طالبان د شکردرې، ګلدرې، نجراب، بنګي، خنجان او بامیان څخه موږ ته نه شي راتلای. ځکه چې د دښمن په مقابل کې یې سنګرونه نیولي. په کار داده چې موږ او تاسو پسې

ورشو. نن ستاسې ډېرو شاګردانو ته الله رب العزت داسې عزت ورکړ چې تر څو شهید یا زخمی نه شي نه راځي. نو هلته به يې پوښتنه کوو.

محترمو!

په آخر کې يوه خبره چې ضرور راته ښکاريږي غواړم چې تاسو ته يې وکړم. هغه دا چې نن ځيني کسان د تحريک نه شکايت لري. او زياتې خبرې پسې کوي چې په نتيجه کې يې د تحريک ځيني مخلص کسان د نه معلوماتو له امله په دغه مشکل ورسره اخته شي. د دې په هکله زه دا يوه خبره کوم چې له هغې ورځې نه چې الله رب العزت بشريت دنيا ته راوستی، د حق او باطل ترمنځ مقابله روانه ده او هيڅکله هم باطل له حق نه نه خوشاله کيږي. نو مقصد دا دی چې فساق او فجار به هميشه د اسلامي نظام مخالفت کوي او د بدنامولو کوښښ به يې کوي. نو موږ او تاسو ته په کار ده چې د اسلامي امارت په مقابل کې د داخلي او خارجي تبليغاتو په مخنيوي کې کوښښ وکړو او د اسلامي امارت نه کوم فرد يا مسؤل کوم نامناسب کار کوي تاسو يې مشرانو ته خبر ورکوئ. تر څو عام مسلمانان مايوسه نه شي. په عامو مجالسو کې د اسلامي امارت او اسلامي نظام شکايت کول، عام مسلمانان له مايوسی سره مخامخ کوي. نور نو په آخر کې يو ځل بيا له تاسو نه مننه کوم. او د لوی خدای جل جلاله له دربار څخه درته لوی اجر غواړم

والسلام

د اسلام خادم

اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

**د ولسوالانو او ښاروالانو تربیوي سمینار ته د عالیقدر امیرالمؤمنن د وینا لنډیز**

یادونه :

د اسلامي امارت د مشرتابه په هدایت د بیلابیلو ولایاتو او ولسوالیو د ښاروالانو، ولسوالانو او امنیه قومندانانو د دیني او اخلاقي روزنې په مقصد په کندهار کې لس ورځني سمینارونه ترسره کیدل، ددې سمینارونو د دریمې دورې غونډې ته د عالیقدر امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد لخوا د ایراد شوې وینا لنډیز او مهم ټکي په لاندې ډول و.

نحمده و نصلی علی رسوله الکریم امابعد: اعوذ بالله من الشیطن الرجیم.

و من لم یحکم بما انزل الله فاولئک هم الظلمون. الایة

محترمو مسؤلینو! السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

تاسو او نورو مسؤلینو ته زما توصیه دا ده چې تر وسه وسه کوښښ وکړئ، چې خدای نخواسته له ولس سره ظلم او تیری ونشي او هره فیصله د خدای جل جلاله په کتاب، د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په سنت او د دین په احکامو برابره وکړئ.

ورونو! د خلکو مشکلات په غور واورئ او له خلکو ځانونه مه پټوئ. په دې عمل سره ښايي ځیني مسؤلین د ځان د عزتمند کولو نیت لري. حال دا چې دا بیرته د دوی بې عزتي ده. ځکه د ولس خپگان او قلبي نفرت تر هر څه لویه بې عزتي ده. او الله تعالی هغه چا ته عزت نه ورکوي چې په خپله د ځان لپاره د عزت پیدا کولو کوښښ کوي. تر هر څه لوی معنوي عزت د مسلمانانو قلبي محبت دی. د مسلمانانو قلبي محبت له حکومتي مسؤلینو سره هغه وخت زیاتیږي چې مسؤلین یې مشکلات په غور واوري او تر ځان یې تېر نه کړي.

ستاسې اصلي مسؤلیت د ولس اواز اوریدل دي، د ولس زیاته راشه درشه له ولسوالانو سره ده، تاسو ولسوالان نور کوم مهم مصروفیت نلرئ، په آساني سره د خلکو مشکلات حل کولای شئ او مشروع غوښتنې یې اوریدلی شئ.

باید ووایم چې د الله تعالی ویره په زړونو کې وساتئ او د الله تعالی د دین نفاذ او حفاظت لومړنی هدف وټاکئ. تاسو وینئ چې د کفري نړۍ د څومره زیاتو فشارونو سره سره موږ تر خپل دریغ هیڅ نه تیریږو. دا یوازې د دې لپاره چې د الله تعالی دین ته صدمه ونه رسیږي او دا هم ومنئ چې د دومره زیاتو داخلي او خارجي فشارونو سره سره له هیچا څخه د یوه مچ د وزر په قدر ویره هم نلرم. ځکه چې دا مې عقیده ده چې په دې لاره کې مې مرګ او ژوند دواړه په ګټه دي. که مړ شم د الله تعال د دین د حفاظت په لاره کې به مړ یم او که ژوندی یم هم د الله تعالی د دین په خدمت به بوخت یم. په ژوند کې هیڅ داسې شی نه وینم چې پریښودلو ته یې د الله جل جلاله په لاره کې اماده نه یم. که نن مړ شم که سبا داسې څه نه رانه پاته کیږي چې ارمان پسې وکړم.

نو په آخر کې یو ځل بیا تاسو ته وایم چې د الله تعالی له مخلوق سره بې غوري مه کوئ، ځکه په دې سره الله تعالی درنه ناراضه کیږي. له خلکو سره په معاملاتو کې له ښو اخلاقو کار واخلئ.

له ولس سره بې پروایي مه کوئ او پام چې د دیانت او تقوی لاره پرې نږدئ.

والسلام

مأخذ (خلافت مجله پرلپسې اتلسمه ګڼه، ۱۱ مخ)

## دنیکمرغه کوچني اختر درارسیدو په مناسبت دعالیقدر امیرالمؤمنین پیغام

بسم الله الرحمن الرحیم :الله أکبر الله أکبر، لا إله إلا الله و الله أکبر، الله أکبر و لله الحمد

الحمد لله الذي نصر عبده، وأعزّ جنده، وهزم الأحزاب وحده، والصلوة والسلام علی من لانبي بعده و بعد!

د افغانستان مجاهد ولس او ټول اسلامي امت ته د نیکمرغه کوچني اختر له مبارکی سره یوځای په افغانستان کې د مسلسلو بریاوو تبریکي وایم، الله تعالی مو روژې، جهاد، او د حق په لاره کې ټول تکلیفونه قبول کړه. غواړم له دغه سپیڅلي فرصت نه په استفادې سره د ځینو اهمو موضوعاتو په اړه درسره په لاندې توګه خپل نظر شریک کړم.

د روان جهادي وضعیت په اړه:

د اسلام او افغانستان دښمنانو سږ کال د مجاهدینو د ماتې او خپل شوم هدف ته د رسیدو یو پریکنده پړاو ګڼلی ؤ. ان تردې چې خپل ولسونه او نړیوال یې همدې بنستیز بدلون ته په تمه کړي وو، خو الحمد لله په عمل کې د دوئ ټول پلانونه د دوئ د اټکل برعکس ثابت شول، او سږ کال دښمن د تیرکال په نسبت د سر او مال ډیر زیانونه ولیدل. مجاهدین اوس تر پخوا زیات د دښمن له تاکتیکونو سره بلد شوي،هغه وسایل چې دښمن ته زیات تلفات اړولی شي، د هرې ورځې په تیریدو د مجاهدینولاس ته ورځي چې اوس دا دي ټول خلک د دښمن د زیاتې مرګ ژوبلې او د هغوئ د الوتکو د راغورځولو شاهدان دي، بل لور ته د ولس بې کچې زیاتیدونکې همکاري، د دښمن په لیکو کې د مجاهدینو ډیریدونکی نفوذ، د هیواد ګوټ ګوټ ته د جهادي ساحې لا پراخیدل، د ورځنیو عملیاتو او نویو تکتیکونو بې سابقې ډیربښت، او د هیواد په شمال او جنوب کې د دښمن د سترو چاراوکو له منځه وړل، دا ټول هغه څه دي، چې موږ ته د چټک بري او روښانه مستقبل زیری راکوي.

که د بدر په نامه د سږنیو عملیاتو لاسته راوړنې له تیرو کلونو سره پرتله کړای شي او د دښمن پرله پسې شکستونه او بې سابقې متزلزل حالت ته په غور وکتل شي نو یو خوا د

مجاهدینو د ځواکمنو روحیاتو او لوړ مورال او بل پلو ته د دښمن د هر اړخیز زوال یو روښانه تصویر زموږ مخې ته ږدي.

همدارنګه په نړیواله کچه د امریکا لپاره اوس وضعیت هغسې نه دی لکه پخوا چې و. د امریکا اقتصاد د بل هر وخت پرتله له اساسي ستونزو سره مخ دی، د ناټو د غړو هیوادونو ولسونه ورځ په ورځ د افغانستان دجګړې په اړه حقایق درک کوي او په عامه اذهانو کې د دې بې هدفه جګړې په ضد دریځ پیاوړی کیږي، په یرغلګر ائتلاف کې شامل هیوادونه یو په بل پسې پوځونه باسي،د سیمې هیوادونه او ولسونه د امریکایي سرزوري سیاست له امله سخت بي حوصلې شوي، چې په مجموع کې دا حالت زموږ د مقدس جهاد د بري زیری راکوي.

له افغانستان څخه د امریکایي محدودو ځواکونو د ایستلو په اړه:

تر ټولو د مخه باید ووایم چې د یرغلګرو ځواکونو محدود ایستل په کلي توګه د افغانستان د ستونزي حل نشي کیدی، بلکې جهاد به په خپل قوت سره جاري وي، ځکه دغه ډول نمایشي-اقدامات د افغانستان مسئله نوره هم پیچلې کوي او زیان لرونکې پایلې لري. یرغلګر قوتونه باید د ټولو پوځونو په سملاسي ایستلو سره نور دغې مسئلې ته یو دائمي او قناعت بخش حل ولټوي.

په افغانستان کې د امریکایي دائمي اډو په اړه:

د افغانستان ملت په هیځ ډول دې ته تیار نه دی چې دلته دې امریکایان دائمې اډې ولري. افغانان دلته د یرغلګرو لږ یا ډیر پوځي موجودیت د اجنبي اشغال په معنی بولي. که امریکایان په دې هکله هم له سرزورۍ نه کار اخلي، د جهادي مقاومت او افغان ولس غوښتني په پام کي نه نیسي- نو له دې څخه دې هم داسې توقع ولري لکه د افغانستان له لس کلن اشغال څخه چې د ملیاردونو ډالرو له مصرفولو او زرګونو پوځیانو له وژل کیدو وروسته هم په کابل کې د یوې لحظې لپاره د آرامۍ او سکون احساس نشي کولای.

ټول ولس او په خاص ډول د هیواد علمي، سیاسي او مخور شخصیتونه باید د اسلامی امارت سره په تفاهم کې د یرغلګرو د اډو په وړاندې یو مشترک ملي موقف خپل کړي او امریکایانو ته دې دا ښکاره کړي چې زموږ په هیواد کې د بهرنیانو د دایمي اډو په اړه ټول ملت په اتفاق سره مخالف نظر لري.

د دایمي اډو د ملاتړ په بهیر کې برخه اخیستل هغه که د جرګې په نامه وي او که د پارلمان، یوازې او یوازې به له خپل دین او خپلې خاورې سره خاین او وفادار سره بیل کړي.

د هیواد د راتلونکې په اړه:

زموږ ټګ لاره دا ده چې په راتلونکي افغانستان کې داسې واقعي اسلامي نظام وي چې د هیواد د ټولو اوسیدونکو لپاره د باور وړ وي، د هیواد ټولې پرګنې پکښې ځای ولري او کار اهل کار ته وسپارل شي. د نړۍ او سیمې له هیوادونو سره د متقابل احترام، اسلامی او ملي ګټو په دریځ ولاړې اړیکې ولري، او ټوله توجه یې دېته وي چې هیواد ته له څه باندې دیرش کلنې جګړې ورپیښ مادي اومعنوي زیانونه جبیره کړي. دا چې افغانستان د زراعت لپاره پراخې ځمکې، غني معادن او د انرژۍ پراخ منابع لري، نو یوازې د سولې او ټیکاو په حالت کې کولی شو په دغو برخو کې پانګونه وکړو. او د فقر، بیکارۍ، وروسته پاتې والي او ناپوهي له ناورین نه چې د نورو اجتماعي او اقتصادي ستونزو عامل بلل کیږي، ځان خلاص کړو.

د دښمنانو د تبلیغاتو پر خلاف اسلامي امارت د واک او قدرت په موضوع کې کله هم انحصار طلبه پالیسي نه لري، افغانستان لکه څنګه چې د ټولو افغانانو کور دی همداسې یې ټول افغانان په ساتلو او سمبالولو کې د مسؤلیت د ادا کولو حق لري، راتلونکي بدلونونه باید داسې نه وي لکه دکمونیزم تر شکست وروسته چې د هیواد هرڅه لوټ او دولتي ادارې په هر لحاظ تخریب شوې. بلکې د دې لپاره به کلک تدابیر نیول کیږي، چې د مجاهدینو د بري په صورت کې د ټولو ملي شتمنیو، دولتي دوایرو او په خصوصي سکتور کې د رامنځته شویو پرمختګونو ساتنه وشي او د هیواد مسلکي

کدرونه او ملي تجاران له کوم تبعیض پرته د دین او وطن خدمت تـه لا نـور هـم زیـات وهڅول شي.

د مذاکراتو په اړه :

اسلامي امارت د هیواد د رواني لانجې عامل، په هیـواد کـې د بهرنیـو یرغلگـرو عسکرو موجودیت، د هغوئ ړندې بمبارۍ، د شپې حملې، ظلمونه، شکنجې او زورواکي بـولي، او د مسـائلو حـل د دغـو نـارواوو پـه پـای تـه رسیـدو کـې وینـي. همـداراز، د هیـواد او هیوادوالو د دیني او دنیوي مصالحو تأمین د واقعي خپلواک اسلامي نظـام پـه قیام کـې گڼي. دغه هدف ته د رسیدو لپـاره پـه هـره مشـروعه لاره غـور او تامـل کیـدای شي. د اسیرانو د تبادلې په اړه چې تر اوسه پورې له کومو لوریو سره تماسونه ټینگ شـوي هغـه هیڅکله هم د هیواد د رواني لانجې د پای ته رسولو په برخـه کـې هـر اړخیـز مـذاکرات نشي بلل کیدای. البته اسلامي امارت د یوه منظم سیاسي او نظامي ارگان پـه توگـه پـدې برخه کې ټاکلې او خپلواکه اجندا لري چې وخت په وخت یې څرگنده کړې هم ده.

د بن د راتلونکي کانفرانس په اړه:

دا کانفرانس به د لس کاله مخکې کانفرانس نه توپیر ونلري، څکـه چـې د افغـان ولـس ریښتیني استازي پکښې برخه نلري، او نـه هـم د افغانسـتان د مشکلاتواسـاسي او واقعـي حل ته توجه پکښې کیږي، د تیرو نورو کانفرانسونو او جرگو غونـدې دا کـانفرانس هـم یوازې تبلیغاتي او نمایشي اهداف لري، غـواړي چـې د یـو څـه وخـت لپـاره د نړیوالـو توجه د افغانستان د مسئلې له واقعي حل څخه بلې خواته واړوي او هغـه څـه بـه پکښـې ویل کیږي کوم چې له وړاندې نه لاپه سپینه ماڼۍ او پنټاگان کې فیصله شوي وي.

موږ ټولو هغو نړیوالو ته چې د افغانستان په موضوع کې دخیل دي، مشوره ورکوو چې د افغانستان د مسئلې د مصنوعي او نمایشي حل په ځـای دې د دې مسـئلې د واقعـي او عملي حـل پـه لټـه کـې شي. دوئ دې پـه افغانسـتان کـې عینـي واقعیتونـه درک کـړي، افغانان د خپلو مسائلو د حل او خپلمنځي تفاهم خورا ښه تـاریخ لـري، خـوچي بهرنـی مداخله بنده شي. د افغانستان اسلامی امارت د خپل یو ه اصول حق په توگـه لـه خپـل

دین، وطن او خاورې نه د دفاع روا مبارزه پرمخ بیايي چې علت يې په دې خاوره کې د بهرنیو یرغلگرو شتون دی. که نړیوال یرغلگرائتلاف زمونږ د خاورې اشغال پای ته ورسوي اسلامي امارت حاضر دی چې د یوه سوله خوښي او مسؤل نظام په حیث د سیمې او نړۍ له هیوادونو سره مثبتې اړیکې وساتي.

مونږ د گاونډیو هیوادونو په گډون له ټولو هیوادونو نه غوښتنه کوو چې د افغانستان د راتلونکي په اړوند د استعماري لوبو برخه ونه گرځي، ځکه دغه کار د هیچا په گټه نه دی. د افغانستان اسلامي امارت تصمیم لري چې د دوو میلیونو افغانانو د وینو د وارث په توگه به د افغانستان د راتلونکې په هکله د نورو له مداخلې پرته خپلواکې فیصلې کوي، چې په هغه کې به زمونږ د شهیدانو ارمانونه، زمونږ ملي او اسلامي گټې، د افغانانو وقار او عزت نغښتی وي. مونږ ټولو خواوو ته څرگندوو چې افغانان تپل شوي رژیمونه نه مني او نه دغه شان رژیمونه دلته دوام کولی شي.

د کابل د ادارې د چلوونکو په اړه:

د کابل په اداره کې ولاړو افغانانو ته یو ځل بیا بلنه ورکوو چې نور د یرغلگرو له ملاتړه لاس واخلئ! د اسلامي امارت له مجاهدینو سره اوږه په اوږه د اسلام او وطن د دښمنانو په مقابل کې ودریږئ! له مجاهدینو سره ستاسې یو ځای کیدل به نور هم اشغالگر ځواکونه زمونږ د خاورې لا ژر پریښودلو ته اړکړي، چې په دې کارسره به زمونږ د مظلوم ملت قربانۍ رنگ راوړي او هیواد به مو د خپلواکۍ، سوکالۍ او اسلامي نظام په گاڼه ښکلی او سمسور شي او دا د ټولو په گټه ده.

د حق د سنگر ساتونکو مجاهدینو ته:

الف: د شرائطو حساسیت ته په پام سره لازمه ده تربل هروخت زیات خپلو جهادي دندو ته متوجه واوسئ! ستاسو په هڅو اوس د هیواد ډیرې سیمې د دښمن له ناپاک وجود څخه پاکې شوې دي. کوشش وکړئ چې د هیواد پاتې سیمې هم د دښمن له وجود څخه پاکې شي او په جهادي امورو کې هیڅ ډول غفلت مه کوئ! په خپلو

پوځي فعالیتونو کې له قوي عزم، لوړ تدبیر او منظم پلان نه کاراخلئ! په هر کار کې خپل نصب العین د الله (ج) رضا وګرځوئ!

ب: د جهاد د یوه مهم رکن په توګه د خپل امیر او درکړل شوې لائحې د اطاعت اصل په بشپړه توګه په پام کې ونیسئ!، د هیواد په ګوټ ګوټ کې زمونږ لخوا تعین شوي جهادي مسؤلین ستاسو شرعي آمرین دي، تاسو باید د دوئ پوره اطاعت وکړئ.

ج: کوم احتیاطي تدابیر چې وخت په وخت تاسو ته د خپلو مشرانو لخوا وړاندې کیږي تاسو یې باید په کلکه عملي کړئ، او که په دې برخه کې غفلت کوئ او د خپل وس په اندازه احتیاط نه کوئ، نو کیدای شي چې هم په دنیا کې د دښمن لخوا زیان در ورسیږي او هم به عندالله مسئول یاستئ.

د: له عام ولس سره د چلند په برخه کې باید ډیر هوښیار واوسئ، په ښو اخلاقو او نیک چلند سره د خلکو زړونه لاس ته راوړئ، زمونږ ولس مسلمان او مجاهد ولس دی او د اسلام په خاطر یې تر هر چا ډیرې قربانۍ ورکړې او ډیر ځوریدلی دی، تاسو باید د دې ولس هر عام وګړی، سپین ږیری، ځوان، ماشوم او ښځې ته په درنه سترګه وګورئ! کله چې د چا په هکله راپور درته رسیږي، نو لومړی ښه تحقیق پکښې کوئ، په غلطو او غرضي راپورونو چاته تکلیف مه ورکوئ. د ولس د نیکو مشورو او نظریاتو پوره خیال وساتئ! تاسو چې له عامو خلکو سره برخورد کوئ، نوله ځان سره دا فکر وکړئ چې که چیرې له ما سره وسله نه وای او یو عام سړی وای له خلکو سره به مې چلند څنګه وو؟ یا هغه څوک چې زه ورسره مخامخ یم که مي پلار، ورور، یا بل نژدې قریب وای نو څه ډول برخورد به مې ورسره کاوه؟ مجاهدین دې په هر حال له خلکو سره همداسې له عطوفت او مهربانۍ ډک چلند وکړي، او په هیڅ وجه دې ځان له خلکو لوړ او پر هغوئ برلاسی نه بولي.

هـ: ترڅو چې د امارت د مشرتابه لخوا درته د کوم کار په باره کې امر نه وي شوی، یا خپلو ولایتي مسؤلینو اجازه نه وي درکړې، په خپل سر په خلکو امرونه او بندیزونه مه تحمیلوئ! دغه کار جهاد او مجاهدین بدناموي، دښمن ته د منفي تبلیغاتو موقع په لاس ورکوي او د ولس او مجاهد ینو تر مینځ درز پیدا کوي. دغه راز تروسه وسه

درکول شوي اوامر باید د سیمې له خلکو او سیمیزو علماء کرامو سره په مشوره عملي کړئ.

و: د اسلامي امارت مربوط هیڅا ته دا اجازه نشته چي په زور له چا څخه پیسې واخلي، نو که د مجاهد یا په کوم بل نامه څوک له ملي تجارانو، زمیندارانو او شتمنو خلکو څخه د ټوپک په زور پیسې اخلي او د پیسو لپاره خلک تښتوي په کلکه یې مخنیوی وکړئ! او که مو لاس پرې برشو نو لازمه شرعي سزا ورکړئ! د خلکو د سر او مال ساتنه د جهاد له سترو اهدافو څخه ده.

ز: په پای کې باید ووایو چې په جهادي عملیاتو سربیره علمي مطالعه او زده کړه، دیني دعوت، مأثوره اذکار او وظائف، بدني تربیه او جهادي تدریب ته هم خاص وخت ورکوئ، صورت او سیرت مو باید په مقدس شریعت برابر وي او د ولس په منځ کې د سپیڅلیو، خداپپالو، مصلحو، او خیرخواه انسانانو په توګه ژوند غوره کړئ!

ح: د مجاهدینو لائحه اوس هرې جبهې او ولایت ته رسیدلې ده، د هر ولایت مسئول باید یقیني کړي چې مجاهدین یې د لائحې په موادو پوه شوي او عمل پرې کوي.

د هیواد په دننه او بهرکې د پوهنتونونو استادانو، محصلینو، منورینو او لیکوالو ته:

درنو! زموږ مستقبل زموږ په هر اړخیز استقلال پورې تړلی دی، که موږ یو مستقل هیواد ونه لرو زموږ مستقبل به غلامي وي او بادار هیڅکله غلام ته هغه څه نه غواړي کوم چې ځان ته یې غواړي، بلکې یوازې د یوې حربې او وسیلې په توګه یې استعمالوي، له همدې امله خو په تیره یوه لسیزه کې راغلو یرغلګرو دې خاورې ته سترې او ستراتژیکې پروژې چې په هغو کې د اوبو لوی بندونه، د برق د تولید ملي نظام او ستر صنایع شامل دي نه دي بشپړې کړې چې هغه زمونږ د هیواد د اقتصاد لپاره حیاتي اهمیت لري، بلکې برعکس یې د سمتي او قومي توپیرونو اور ته په پټه او ښکاره لمن وهلې او ځوانان یې د ژبنیو او سمتي جګړو لورته هڅولي، چې دا زموږ د هیواد د مستقبل د تباهۍ په معنا ده، دا زموږ او تاسو ګډه اسلامي او ملي فریضه ده، چې خپل نوی نسل د دښمن د مغرضو تبلیغاتو له تاثیره وساتو.

لکه څنګه چې زموږ مجاهد ولس د سپيڅلي جهاد په برکت د غربيانو له لوري د هيواد د سياسي او نظامي اشغال مخه ونيوله همدارنګه په کار ده چې په ټول جديت سره په دې مسلمان او غيرتي هيواد کې د غرب د بې لارې او مفسد فرهنګ او د هغه ورانوونکو فکري تاثيراتو د خپريدو مخه هم ونيول شي او په پوره مينه، اخلاص او افغاني لوړ همت د خپلو راتلونکو نسلونو ژوند د اسلام د سپيڅلي فرهنګ په غيږ کې خوندي کړو او که داسې ونه شي خداى مه کړه زموږ غيّور ولس به هم د غرب زهرجن فرهنګ د تاثير لـه امله لـه خپلې ځلانـده اسلامي مـاضي څخه پـردى شي. استادان، محصلين، ليکوال او روڼ انـدي ټـول بايـد پـه فـردي او اجتماعـي ډول د هيـواد د بشـپړ استقلال، د ملي او اسـلامي ارزښـتونو د سـاتلو او د افغانـانو د متحـد کولـو لپـاره عملي مبارزه وکړي، موږ تاسو ټول بايد د يوه مشترک هدف لپاره يو مـوټى واوسـو، او تـرمينځ مو هر ډول فرضي او مصنوعي فاصلې ختمې کړو. يوازې اسـلامي ارزښـتونه کـولى شي چې د افغانانو تر مينځ هر ډول، سمتي او ژبني توپيرونه له مينځه يـوسي، خـو د دې کـار لپاره عملي قرباني ته اړتيا ده.

د افغانستان او نړۍ ولسونو ته:

د افغاني ټولنې مختلف قشرونه چې روان اسلامي جهاد يوه ديني وجيبه بولي، ترهرڅه وړاندې ترې مننه کوو چې له تيرو لسوکلونو راهيسې يې د جهاد او مبارزې پـه لاره کې ډيرې ستړې او ستوماني وګاللې، لـه مجاهـدينو سره يـې هـر اړخيـزه همکـاري کـړې او جهادي فريضه يې ادا کړې ده، خو د دې لپاره چې د تيرو لسوکلونو قربـانۍ مـو نـه وي ضايع شوې، بايد نور هم خپلو همکاريو ته دوام ورکـړئ! کـه د چا پـه لاس او ټوپـک سره جهاد په وس پوره وي، بايد خپله فريضه سرته ورسوي، د قلم څښتن بايد خپل قلم د خپل دين د دفاع په لاره کې وکاروي او د مال خاوندان بايد خپله شتمنۍ پـه جهـادي ضروورياتو مصرف کړي.

د نړۍ له مسلمانانو څخه غوښتنه لرو چې په خپلو مادي او معنوي مرستو د مجاهـدينو همکاري وکړي، او همداراز د نړۍ له خپلواکو ولسـونو او شخصـيتونو څخه هيلـه لرو چې د افغانانو له دغې برحقې دفاعي مبارزې څخه حمايت وکـړي او پـرې نـږدي چې

مستبد زورواکـان د خپـل زور او تشـدد پـه مـټ د نـړۍ مستضعف ولسـونه د خپلو استبدادي ناوړه عزائمو ښکار کړي.

په آخر کې يو ځل بيا د نړۍ ټولو مسلمانانو، ټولو ځوريـدلو افغانـانو، د سنگر غازيـانو، زنداني مجاهدينو، د شـهيدانو کورنيـو او د جهـاد دلارې ټولـو يتيمانـو، کونډو او نـورو متأثرينو ته د اختر مبارکي وړاندې کوم، او د ټولنې په شتمنو وږغ کوم چې پـه دې ورځـو کې محتاج او اړ کسان هير نه کړي. په پاي کې دعا کـوم چې الله تعالي مـو راتلونکې اخترونه د سولې، خپلواکۍ او اسلامي شـرعي نظام تر سيوري لاندې نصيب کړي.

والسلام

د اسلام خادم اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد

۲۹/۹/۱۴۳۲ هـ ق

۱۳۹۰/٦/۸هـ ش

۲۸/۸/۲۰۱۱ م

## د مرحوم امیر المؤمنین شخصي ځانګړنې

نوم

د ملا صاحب اصلي نوم محمد عمر و، په ځوانۍ کې او د روس ضد جهاد په کلونو کې د ملا محمد عمر آخند په نوم یادېده، د اسلامي امارت له تأسیس وروسته یې (مجاهد) تخلص هم د نوم برخه شو او په ملا محمد عمر مجاهد یې شهرت وموند. د پلار نوم یې مولوي غلام نبي، د نیکه نوم یې مولوي محمد رسول او د غور نیکه نوم یې مولوي محمد ایاز و.

ترونه یا اکاګان

ملا صاحب څلور ترونه یا اکاګان درلودل: مولوي محمد انورصاحب، ملا محمد ولي صاحب، ملا محمد حنیفیا او مولوي محمد جمعه صاحب، چې د دې متن د لیکلو تر وخته یې یو اکا مولوي محمد جمعه صاحب ژوندی او نور وفات شوي دي.

ورونه

ملا صاحب یو سکنی او درې مورني ورونه درلودل. سکنی ورور یې شیر علي نومیده چې په ماشومتوب وفات شوی دی. مورني ورونه یې شهید ملا عبدالخالق آخند، شهید ملا عبدالسلام آخند اود اسلامي امارت د رهبري شوری غړی ملا عبدالمنان عمري دی. ملا عبدالخالق آخند او ملا عبدالسلام آخند په کندهار ښار کې د ملا صاحب پر کور په لویه چاودنه کې په شهادت ورسیدل.

اولادونه

ملا محمد عمر مجاهد ته الله تعالی اتلس اولادونه ورکړي چې څلور یې لونې او ۱۴ زامن دي. دوې لونې او یو زوی یې په کوچنيوالي وفات شوي دي او نور اولادونه یې ژوندي دي. د زامنو نومونه یې په ترتیب سره په دې ډول دي:

مشر زوی یې د اسلامي امارت مرستیال او د نظامي کمیسیون مشر مولوي محمد یعقوب مجاهد دی. ورپسې حافظ محمد ادریس، مولوي محمد یونس، حافظ محمد

ابراهیم، ملا محمد اسرائیل، مولوي محمد اسحاق، ملا محمد یوسف، حافظ محمد هارون، ملا محمد داود، ملا محمد الیاس، ملا محمد موسی، ملا محمد ایوب او ملا احمد.

شخصي سرمایه او مصارف

ملا محمد عمر مجاهد په ټول افغانستان کي کومه شخصي سرمایه لکه بانکي حساب، ځمکه، شخصي کور، دوکان یا کوم بل جایداد نه درلود او نه یې تر پایه د شخصي-پانګې مونډلو هوس وکړ. کومه وداني چې په وروستیو کې په کندهار کې جوړه شوه او اوس د ملا صاحب په کور شهرت لري، هغه یوه امارتي وداني او د بیت المال ملکیت و چې امیر المؤمنین په کې اوسیده.

ملا صاحب له امارت څخه معاش نه اخیست، د کور مصارف یې د ځینو اهل خیر او مخلصو مسلمانانو له هغو شخصي مرستو څخه پوره کیدل چې له ملا صاحب سره به یې د ده د کور د مصرف لپاره کولې، ملا صاحب له دې جملې هغه پیسې چې د امیر په حیث یې ده ته اخیستل جائز نه و بیت المال ته سپارلې او هغه هدایا چې مصرف به یې ورته جائز و په کورنیو ضروریاتو لګولې. دا چې د نوموړي کورني لګښتونه د نورو حاکمانو په شان ډېر نه و، بلکې د عامو هیوادوالو په شان درمیانه ژوند یې درلود نو ځکه یې د کور چلښت کومې ځانګړې یا فوق العاده بودیجې ته اړتیا نه درلود.

کورنی ژوند

ملا صاحب د ژوند د نورو اړخونو غوندې په کورني ژوند کې هم د اعتدال پیرو و. خپلو ورونو، اولادونو او قریبانو ته یې د عیش او هوس امکانات نه برابرول. د کورني خدمت لپاره یې ځانګړي خادمان نه درلودل، بلکې کور یې د عامو افغانانو په شان یو عادي کور و. حتی کله به یې خپله هم په کورنیو کارونو کې د کورنی له غړو سره مرسته کوله، خصوصا کله چې به یې میلمانه درلودل. له اولادونو، میرمنو او د کور له ټولو اعضاوو سره یې د نرمي او مهرباني چلند کاوه. د قریبانو او خپلوانو د حال پوښتنه

به يې کوله او کورونو ته به يې ورتلو، د امارت له درنې وظيفې سره سره يې د صله رحمی رشتې پالنې ته متوجه و.

لباس

ملا صاحب د لوی کندهار د عامو وګړو په شان نسبتا د پنډ ټوکر څخه جوړ اوږده کالي اغوستل چې کميس به يې ترخزي جوړ شوی و. کالي به يې اکثر له خړ يا تور ته نږدې رنګ ټوکر څخه جوړ شوی وو. کندهاری صدری او څادر يې هم هميشه اغوست او د تور پاچ نسبتا غټه لنګوټه يې تړله. زياتره وخت يې بوټونه په پښو کول. لباس يې د شوروي ضد جهاد په مهال په کندهار کې د مجاهدو طالبانو لباس ته ورته و، چې وروسته همدې لباس د اسلامي امارت له پراختيا سره ډېر شهرت وموند او تر اوسه ډېر مجاهدين همدا ډول لباس اغوندي.

نورې ځانګړنې

ملا صاحب هميشه لمونځ په جماعت کاوه او په جماعت کې به يې پخپله امامت کاوه. که به په دفتر کې و يا په کور کې لمونځ يې په مسجد کې اداء کاوه.د جمعې لمونځونه به يې ډېر ځله د کندهار ښار په مختلفو مساجدو کې اداء کول او د اختر لمونځ به يې د کندهار په مرکزي عيدګاه کې په خپل امامت اداء کاوه.

دفتر ته د رسيدو سره سم يې لومړنی کار د عامو خلکو د عريضو کتل او اجراء کول وو. د غرمې له ډوډۍ وروسته يې لږ شيبه قيلوله (غرمنی خوب) کوله. راډيو يې په مواظبت اوريده، خصوصا د هغه وخت دوه مشهورې راډيوګانې بي بي سي او امريکا غږ يې هميشه اوريدې.

ملا صاحب په موټر کې د ګرځيدو په وخت هميشه خپل موټر پخپله چلاوه، چې څو نور ملګري به هم ورسره په موټر کې و. عموما يې لنډکروزر موټر استعمالاوه او هيڅکله يې مرمی ضد موټر نه دی کارولی.

د اسلامي امارت د بهرنيو چارو وزير مولوي وکيل احمد متوکل چې ډېره موده د ملا صاحب د دفتر مسؤل پاته شوی د ملا صاحب په اړه خپل خاطرات داسې بيانوي.

لوی ملا صاحب به کله کله مازدیگر مهال څو شیبي د خپلو ملګرو سره د تفریح لپاره بېلابېلو شنو ځایونو ته وتی هلته به یې سیمه ییزي لوبي کولې لکه غېږ نیونه، ډبره غورځونه یا داسي نور او ښه پکښې تکړه و. همداراز یې وخت ناوخته د نورو مروجو لوبو ننداره کوله لکه پهلواني او کراټه. یوه ورځ یې د شهید مولوي اخترمحمد عثماني سره د تېزوالي په مسابقه کې وړاندیوالی وګاټه.

زما په یاد دي چې یوه ورځ له لوی ملاصاحب او نورو انډیوالانو سره په پسرلي کې شنه دښت ته ووتو، د ځان سره مو د پخو غوښو بخاردیګ، ګرمه د تناره ډوډۍ، تازه میوه او پلاستیکي فرشونه هم وړي وو، هلته یو اړخ ته د کوچیانو کېږدۍ هم وې، کوچیان هم راغلل وروسته یې خپل تیار خوراکونه لکه مستې او سوړسکونه راوړل، په ګډه مو ډېر ښه مجلس وکړ او تیار شوي خوراکونه مو وخوړل، د ملا صاحب برخورد دومره عادي و چې هغوی تر پایه پوه نه شول چې دا کوم لوړ رتبه حکومتي شخص دی، ملا صاحب له دوی سره عادي مجلس وکړ او د هغوی له حاله یې ځان خبر کړ. چې رخصتېدلو ما د کوچیانو مشر ته ویل دا عام طالبان نه دي. دا د افغانستان پاچا دی. د کوچیانو مشر وویل: دا څومره ښه پاچا دی چې پر موږ یې د نږدې پوښتنه وکړه نو ملاصاحب بیا یوه اندازه نقدي کومک هم ورسره وکړ او په خوشحالۍ ورڅخه ستانه سوو.

د ملا صاحب یو مهم صفت بې تکلفي وه، عموما معاصر سیاسي مشران ډېر تشریفات او آرګاه بارګاه لري، هغوی هر څه د یوه پروټوکول له مخې کوي. خو ملا صاحب د صدر اسلام د خلفاوو په شان ډېر ساده ژوند درلود. هغه په دفتر کې د کار پر مهال په تخت یا څوکۍ نه کیناست بلکې پر ځمکه او یا کټ کې به ناست و. د تشریفاتو کومه قطعه یې نه درلوده.

مفتي عبدالحکیم صاحب کیسه کوي چې یو وخت د پاکستان څخه علماء کرام د ملاصاحب ملاقات ته راغلي وو په دوی کې د پاکستان د مدارسو د لویې اتحادیې وفاق المدارس مشر شیخ الحدیث مولانا سلیم الله خان صاحب هم و. کله چې دوی د ملا صاحب ځای ته ورغلل، دا وخت ملا صاحب له خپل ځای څخه راوتلی و. له

روغبړ وروسته ملا صاحب د دفتر مخته پر ځمکه خپل څادر وغوړاوه او لـه میلمنـو یـې غوښتنه وکړه چې پر څادر کیني. ملا صاحب هم همدلته کیناست او لـه میلمنـو سره یـې مجلس وکړ. له مجلس وروسته کله چې علـماء راووتـل نـو د وفـد د ځینـو اعضاوو لـه حالته داسې معلومیـده چـې د مـلا صـاحب دې سـاده او بـې تکلفـه چلنـد خونـد نـه و ورکړی. خو مولانا سلیم الله خان صاحب چې لـوی عـالم و، ویـې ویـل: مـلا صـاحب عجیب کار وکړ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم یو سنت چې لـه مـوږ څخـه هیـر و نـه یوازې موږ ته یې را په زړه کړ بلکې عملي یې هم کـړ. رسـول الله صـلی الله علیـه وسلم چې په حنین کې و، کله یې چې رضاعي خور (شیماء) ورته راغله، نـو نبـی علیـه السلام ورته خپل څادر په ځمکه وغوړاوه او هغه پرې کیناسـته. پـه دې کـې دا تعلیم دی چې میلمه ته پر ځمکه له کیناستو مخکې بایـد څـادر وغـوړوو، چـې نـن مـلا صـاحب هم همداسې وکړل.

ملا صاحب چې د افغان ولس په سوچه ماحول کې را ستر شـوی و، فطـري ځـوانمردي یې درلوده او کله به یې د خپلې ځوانمردی له املـه داسـې چلنـد کـاوه چـې پـه مروجـو قاعدو کې به نه ځایېده.

پـه هلمنـد کـې د طالبـانو پـه وړانـدې جنګیـدونکي د غفـار اخنـدزاده او شیر محمـد اخندزاده کورنۍ وه. د دې کورنۍ وروستي مشر شیر محمـد اخنـدزاده چـې پـه هلمنـد کې یې شکست خوړلی و طالبانو د روزګان د چارچینو ولسوالی په سراب سیمه کـې لـه ۳۰ کسانو سره ونیو او د بندیانو په شکل یې کندهار تـه انتقـال کـړل. خلکـو فکـر کـاوه چې دې مهم مخالف مشـر ته به ملا صاحب سـ ـ سزا ررکړي خـو مـلا صـاحب دغـه ټول کسان آزاد کړل، د هغوی مشـر شیر محمد اخندزاده ته یې یو موټر او یو څه مقـدار پیسې هم ورکړې او ورته ویې ویل چې ورځه د خپلو ماشومانو ساتنه او پالنه دې وکړه. شیر محمد اخندزاده څه موده په کور ناست و خو وروسته بیـا مخـالف شـو او ایـران تـه وتښتید.

برتانوی خبریاله ایوان ریډلي په داسې حال کې افغانستان ته په پټه راغلې او نیول شـوې وه چې د برتانیې حکومت له امریکا سره په ګـډه د افغانسـتان پـر خـلاف جګـړه اعـلان

کړې وه او وروسته يې په بمباريو کې مهمه برخه درلوده. نړيوالو رسنيو اټکل کاوه چې ملا صاحب به د ايوان ريډلي د اعدام فيصله وکړي. اما ملا صاحب ته چې کله معلومه شوه چې ايوان ريډلي واقعا خبرياله ده او جاسوسي ماموريت نه لري، نو بلا قيد او شرطه يې د نوموړې د خلاصون فيصله وکړه. دې له ځوانمردۍ ډکې فيصلې دومره اغيز درلود چې ايوان ريډلي له خلاصون وروسته د اسلام مطالعه شروع کړه، بالاخره يې د اسلام مقدس دين ومانه، نوم يې مريم شو او اوس په غربي دنيا کې د يوې مشهورې دعوتګرې په حيث ديني وظيفه اجراء کوي.

ملا عبدالسلام محبور چې د اسلامي امارت د واکمنۍ په وخت کې يې د هوايي ځواکونو په برخه کې مسؤليت درلود وايي: کله چې احمد شاه مسعود ووژل شو او په پنجشير کې يې د جنازې مراسم ترسره کيدل، دې مراسمو ته د مخالفينو ټول مهم مشران او قومندانان را يوځای شوي وو. د اسلامي امارت هوايي ځواک د دې تياري نيولې وه تر څو په دې مراسمو درنه بمباري وکړي او د مخالفينو مهم مشران له منځه يوسي. خو کله چې دا خبره له ملا صاحب سره شريکه کړه. ملا صاحب وويل: بس دی په مرګ يې لاهم نه پريږدئ، نور کارمه په لرئ او مه جنازه بمباروئ.

له قومي، سمتي او لساني تعصب څخه د کرکې په اړه عبدالشکور مطمئن چې د کابل اوسيدونکی دی او د اسلامي امارت د واکمنۍ په وخت کې د اولمپيک د ملي کميټې مسؤل و، وايي: زه په لومړي ځل د دې لپاره کندهار ته لاړم او د ملا صاحب دفتر ته ورغلم تر څو د ورزشي پروګرامونو په اړه ورسره خپل نظر شريک کړم. د ورتګ په وخت يو چا راته وويل چې د ملا صاحب تر مخ په فارسي ژبه خبرې مه کوه ځکه فارسي ژبه خوند نه ورکوي. عبدالشکور مطمئن وايي زما سره له دې چې پښتو زده وه، خو قصدا مې ځکه له ملا صاحب سره فارسي ژبه شروع کړه تر څو وپوهيږم چې آيا واقعا ملا صاحب ژبنی تعصب لري او که څنګه؟

ما ملا صاحب ته وويل چې زه غواړم له تا سره په فارسي خبرې وکړم. ملا صاحب راته وويل: که په فارسي خبرې کوې يا په ازبکي، بلوچي، پښتو، عربي او يا بله هره ژبه، زما مسلمان ورور يې، زموږ ميلمه يې او بل ځل دلته د ژبني توپير خبره مه کوه. ما ورته د

ځينو خلکو د خبرې يادونه وکړه چې ملا صاحب له نورو ژبو سره نه دی جوړ. ملا صاحب وويل هر چا چې دا خبره کړې، هغه د اسلام او مسلمانانو دښمن دی او غواړي زموږ اسلامي صف بدنام کړي. دلته دا مسائل قطعا مطرح نه دي.

ملا صاحب چې کله د کندهار په نساجۍ کې ميشت و، نو د کورامنيتي ساتونکې يې د بدخشان او تخار ولايتونو طالبان وو چې اکثره يې له تاجک او ازبک قومونو سره تړلي وو. هغه وخت د امارت يوه چارواکي ملا صاحب ته ويلي وو چې ساتونکي دې له خپل قوم څخه تعين کړي. په ملا صاحب دا مشوره دومره درنه تمامه شوې وه چې له ملاقات څخه وروسته يې د دې خبرې کوونکي په باب خپلو ساتونکو ته ويلي و چې بل وخت دغه کس دلته مه راپرېږدئ .

ملا صاحب طبعا خبرې ډيرې نه کولې، خو که به غږيده خبرې يې د زړه له تله ، لنډې او مؤثرې وې. د شهيد ملا سيف الرحمن منصور د خولې حکايت دی چې يو وخت په جهادی صف کې د ځينو منکراتو له ليدو سره ډېر مايوس شوم، کلکه اراده مې وکړه چې ملا صاحب ته به ورشم او خپله استعفاء به ورته تقديموم او نور به د اسلامي امارت په صف کې له خدمت څخه لاس اخلم. کله چې کندهار ته لاړم، د ملا صاحب ملاقات ته ورغلم او په ډېر تفصيل مې خپل بيان ورته وکړ. چې په امارت کې ځينې فاسد افراد ننوتي او ځينې ناروا کارونه کوي نور زه دا حالت نه شم برداشت کولای او له دې صف څخه وځم. ملا صاحب زما خبره واوريده او په ځواب کې يې راته وويل چې اخندزاده صاحب! که د اسلام په صف کې دې ناروا ليدله نو ترې غورځه مه، بلکې پرې ورغورځه او مخه يې نيسه. د منصور صاحب له قوله د ملا صاحب دا لنډه خبره دومره له معنی ډکه وه چې د تل لپاره زما قناعت ورباندې وشو او بيا هيڅکله د صف د پريښودو فکر راسره پيدا نه شو.

ملا عبدالمنان عمري حکايت کوي چې يو وخت د امارت د محاکمو يو لوړرتبه قاضي ورته راغی او ورته ويې ويل چې د قاضي لپاره په صورت دعوا او ځينو تحريراتو اجرت اخيستل جائز دي. ملا صاحب ورته وويل چې آيا نه اخيستل يې جائز

دي او کنه؟ هغه قاضي ورته وويل هو نه اخيستل يې هم جائز دي. ملا صاحب ورته وويل بس په همدې نه اخيستلو عمل کوئ.

دا څو لنډې خاطرې د ملا صاحب د شخصيت هغه ځانګړنې راښيي چې هغه يې له نورو بېلاوه.

الله تعالی دې وربانديې ورحمېږي او د دين لپاره ترسره کړې خدمتونه دې الله تعالی ترې قبول کړي.

آمين يا رب العلمين

# د اميرالمؤمنين د پيغامونو څو نمونې

د افغانستان اسلامي امارت
ISLAMIC EMIRATE OF AFGHANISTAN



No.
Date

د اميرالمؤمنين دفتر
The Amir ul-Mominin's Office

۱۴
۱۰ – ۴ – ۱۴۲۲

دافغانستان د اسلامی امارت په قلم رو کی دبهرنیو اتباعو داستوګنی دلاربنوونو په هکله

فرمان

اول بهرنی اتباع مکلف دی چی دافغانستان داسلامی امارت قلمرو ته دننوتلو په وخت کی په دغه لاربنود پانه کی درج شوی مواد په کلکه په پام کی ونیسی

دوهم بهرنی اتباع مکلفیت لری چی دافغانستان داسلامی امارت په قلمرو کی به داستوګنی په وخت کی دغه لاندی اعمال نه کوی.

۱ . دممنوعه مالونو قاچاق به نه کوی.

۲ . دافغانی ښځو سره به ملاقات او مصاحبه نه کوی.

۳ . د ذی الروح ساندونکی، شیانو عکسونه به نه اخلی

۴ . غیر اخلاقی جامی به نه اغوندی او بربنډ به نه ګرځی.

۵ . ناقوس او سرود به په زوره نه پږغوی.

۶ . په ښکاره سره به دخنځیر او نورو مردارو حیواناتو غوښی نه خوری، په ښکاره سره به شراب نه چښی، چرس به نه څکوی او نور مخدره مواد به نه استعمالوی او نه به یی پلوری( البته په دی مورد کی دمسلمان حکم له نا مسلمان سره فرق لری)

۷ . داسلام او اسلامی امارت دپالیسیو پر خلاف مجلی، ورځپانی، کتابونه، کیسټونه او نور پرهنګی مواد به نه توزیع کوی نه به یی تکثیروی او نه به یی پلوری

۸ . افغانی اتباع به له اسلام څخه پرته نورو باطلو ادیانو ته نه دعوت کوی.

۹ له افغانی ښځو سره به ناروا جنسی قرابت نه کوی .

۱۰ . دبهرنیو اتباعو په اره دافغانستان داسلامی امارت نافذه قوانین په کلکه رعایت کوی.

۱۱ . دافغانستان دخلکو مذهبی ،عقیدتی ملی او فرهنګی دودونو ته به پوره پوره احترام کوی او دهیواد دملی مصلحتونو او دینی حکمونو پر خلاف به فعالیت نه کوی

دریم : کچیری بی لاندی اعمال تر سره کړل نو دافغانستان داسلامی امارت مسئول مقامات کولی شی د (۴۸) ساعتونو په ترځ کی یې دبهرنیو چارو دوزارت له لاری دافغانستان له قلمرو څخه خارج کړی.

۱ الحاد ته ددعوت په صورت کی.

۲ . داسلامی حکمونو او دینی اخلاقو دنه درناوی په صورت کی

۳ . دامنیت او عمومی نظم دګډوډلو او جاسوسی داشتباه په صورت کی.

۴ . که چیری دیو مصلحت په خاطر یی او سیدل دافغانستان په قلمرو کی منع شی.

څلورم : داسلامی امارت مسئول مقامات کولی شی ددی لاربنود لیک په (۱.۲.۳.۴.۵ او ۶) اجزاو کی دسرغړونی په صورت کی یی له لسو ورځو څخه تر یوی میاشتی پوری بندی کړی

پنځم : امارتی مسئول مقامات کول شی ددی لاربنودلیک په (۷.۸.۱۰ او ۱۱) اجزاو کی دسرغړونی په صورت کی یی له دری ورځو څخه تر لسو ورځو پوری بندی کړی او بیا یی د (۴۸) ساعتونو په ترځ کی دبهرنیو چارو وزارت له لاری له هیواد څخه وشړی.

شپږم : که چیری یی پر افغانی یا غیر افغانی ښځی باندی جنسی تیری وکړ هره سزا چی اسلامی شریعت تعین کړی وی هغه به وربانذی تطبیقیږی

اووم : (دمسلمانی ښځی لپاره) که یی سفر یا اوسیدنه دورسره محرم په ملتیا نه وی اخراجیدلای شی.

پورته لاربنودلیک دی دهغه ژمنلیک په عوض چی دامر بالمعروف اونهی عن المنکر وزارت په مقرره کپنی وو ابلاغ شی.

والسلام
داسلام خادم امیرالمؤمنین
ملامحمد عمر (مجاهد)



# د افغانستان اسلامي امارت

د اميرالمؤمنين حفظه الله خصوصي دفتر

گڼه: ٥۳[redacted] ..........	No: ......................

لېږه: ۲٥-۱۱-۱۴۱۹ هـ ق	Date: ..................

## فرمان

محترم رياست الوزراء ته

السلام عليكم ورحمت الله وبركاته

داسامه بن لادن دموضوع دحل په غرض ز مونږ مخكنى موقف هم داسى وو چه دافغانستان داسلامى امارت سعودى اويو بل اسلامى هيواد علماء دى غونډه وكړى اوپه دى هكله دى شرعى پريكړه صادره كړى دريم هيواد تاسى تعين كړى ترڅو د بهرنيو چارو وزارت له لورى هغوى ته بلن ليكونه واستول شى اوهغوى خپل علماء كرام معرفى كړى په دى هكله دى مناسبه طريقه ترتيب اومنظورى دى ترسره شى

والسلام

داسلام خادم اميرالمؤمنين

ملامحمد عمر(مجاهد)



د افغانستان اسلامي امارت
ISLAMIC EMIRATE OF AFGHANISTAN

No. ______     گڼه : ______
Date ______     نېټه : ______

د اميرالمؤمنين حفظه الله دفتر
The Amir-ul-Momineen's (May Allah Protect Him) Office

**له ۱۳۵۷ ه ش کال څخه تر ۱۳۷۱ ه ش کال پورې دنيول شوو سياسي بنديانو او ورکو شوو مجاهدينو دسر نوشت دټاکنې په هکله دافغانستان داسلامي امارت دمقام**

## فرمان

څرنګه چې محترمو هېواد والو ته معلومه ده چې دڅور له کمونيستي کودتا وروسته خلقيانو او پرچميانو دخپلو روسي بادارانو په امر زمونږ په زرګونو مجاهدين، علماء کرام ،مشايخ او نور مسلمان هېواد وال، له خپلو کورونو څخه وبستلي او يا په جنګونو او کمينونو کې لادرکه شوي د ۱۳۷۱ ه ش کال دڅور دالمي نيټې څخه راپه دې خوا دمسلسلو څېړنو وروسته دراجحو قرائينو او بينو دلائلو په نتيجه کې داثابته شوه چې څه شمير يې دلارو په اوردو کې شهيدان کړي او څه شمير بيا زندانونو ته لېږل شوي او له يو څه مودې وروسته په شهادت رسېدلي دي خو ددغو شهيدانو دکورني باني کسانو له لاتر اوسه پورې هم ددوی دشهادت يا ژوند په پوره نده معلومه ، چې په دې خاطر کوندې ئې بې سر نوشته او مال او جايدادونه ئې هم دورثه وو تر منځ شرعاً لاتر اوسه هم ندي ترکه شوي .

اګر چې د ذکر شوبو څېړنو په نتيجه کې داثابته شوه چې د ۱۳۵۷ ه ش کال دڅور داومې نيټې دکودتا څخه د۱۳۷۱ ه ش کال دڅور تر اتمې نېټې يعنې دمجاهدينو تر کاميابۍ پورې چې زمونږ کوم مسلمان ورونه ترې تم شوېدي ، هغه دخلقيانو ، روسانو او پرچميانو لخوا په شهادت رسېدلي دي خو بيا هم احتياطاً دافغانستان اسلامي امارت دهدايت په اساس څه موده مخکې ستري محکمي دهېواد دټولو ولايتونو څخه جيد جيد علماء کرام کابل ته راوغوښتل تر څو له کمونيستي کودتا څخه دمجاهدينو تر کاميابۍ پورې دورکو شوو کسانو دقيقه څېړنه داسلامي شريعت په رڼاکې وکړي ددغه هيئت دڅېړنو په نتيجه کې جوته شوه چې زمونږ دغه مسلمان ورونه په شهادت رسېدلي دي او ددوی دژوند هيڅ اميد نشته . نو په دې خاطر چې زمونږ ددغو شهيدانو کونډې بې سر نوشته او جايدادونه يې له شرعي ترکې او تقسيم څخه او نور شرعي حکمونه معطل پاتې نه وي، لاندې مراتب منظوروم:

لومړۍ ماده : د ۱۳۵۷ ه ش کال له کمونيستي کرغېړني کودتا څخه د ۱۳۷۱ ه ش کال دڅور تر اتمې نيټې پورې زمونږ هغه مسلمان ورونه چې ترې تم شوي او دژوند او مرګ پته ئې نده معلومه ، هغه ټول شهيدان بلل کيږي .

دويمه ماده : ددې فرمان په لومړۍ ماده کې درج شوي دشهيدانو کونډې کولی شي دشريعت دحکمونو مطابق په خپله خوښه نکاح وکړي .

دريمه ماده : ددې فرمان په لومړۍ ماده کې درج شوي دشهيدانو جايدادونه او ملکيتونه دشريعت دحکمونو مطابق ددوی پر ورثه وو باندې دترکې او تقسيم وړ بلل کيږي .

څلورمه ماده : دغه فرمان دهېواد دجيدو علماء کرامو دشرعي فتوی او دخپلو معلوماتو او څېړنو په اساس ابلاغوو که خوک ... دخپلو قربانانو دژوند په هکله موثق معلومات ولري هغو ی ددغه فرمان څخه مستثنی دي .

پنځمه ماده : دهېواد ټول محاکم او نوري حقوقي اداري دې ددغه فرمان دحکمونو مطابق اجراآت وکړي .

شپږمه ماده : دغه فرمان دتوشيح له نېټې څخه نافذ او په رسمي جريده کې دې خپور شي .

والسلام

داسلام خادم اميرالمؤمنين

ملامحمدعمر(مجاهد)

د افغانستان اسلامي امارت
ISLAMIC EMIRATE OF AFGHANISTAN

د اميرالمؤمنين حفظه الله دفتر
The Amir-ul-Momineen's May Allah ... Office

ګڼه: ۳۰۹۰
نېټه: ۱۴۲۲/۴/۲۳

د اسلامي امارت په قلمرو کې د ځينو غير شرعي اقلامو او اجناسو له واردېدو او صادرېدو څخه د مخنيوي او په ګمرکونو کې د هغو د نه محصولولو په هکله

## فرمان

څرنګه چې د اسلامي امارت عمده مهمه وظيفه د منکراتو ازاله او د معروف اقامه ده، نو د دغه شرعي حکم د نافذېدو په منظور لاندې مراتب منظوروم:

لومړۍ ماده: د اسلامي امارت قلمرو ته: ۱. بالذات خوګ ۲. د خوګ غوښې ۳. د خوګ غوړي ۴. د انسان له وېښتو څخه جوړ شوي شيان ۵. په طبيعي صورت سره د انسان وېښته ۶. ډيش انتن ۷. د سينماتوګرافي دستګاه د غږ ثبتولو د پروجکټور په شمول ۸. د ميکروتوګرافي دستګاه په هغه صورت کې چې په سينما کې په کار وړل کېږي ۹. ټول هغه آلات چې بالذات موسيقي توليدوي لکه پيانو، هارمونيه، توله، بېلا، تنبور، رباب، سارنګ، په خلاصه ډول د موسيقي په آلاتو کې مندرج ټولې هغه آلې چې په بله د موسيقي مولدې وي او د هغوی حفاظتي پوښونه او برخې ۱۰. د بلياړد ميز او لوازم يې ۱۱. د سطرنج تخته ۱۲. کرم بورډ ۱۳. قطعې (پلي کارډ) ۱۴. ماسک (څېره) ۱۵. خالص الکولي مشروبات ټول اقسام ۱۶. د ټيپ، کمپيوټر، ويډيو او تلويزيون هغه کسټونه چې سکسي ولنج له سره څخه ډک وي ۱۷. سرپ (زنځه) ۱۸. لبستر (يو نوعه حيوان دی) ۱۹. رنګ ناخون ۲۰. د لويو پتاقي ۲۱. د ښوونو لپاره د اتش بازۍ مواد ۲۲. د سينماتوګرافي په فلمونه په هر ډول کې چې وي ولو که خارج ته هم ځي ۲۳. باندهوم د ذيروح مجسمې ۲۴. د خياطي ذيروح تصوير لرونکي کتلاګونه ۲۵. چاپ شوي فيلم کاني (عکسونه) ۲۶. د کرسمس پوست کارتونه ۲۷. ذيروح تصوير لرونکي د تبريکي کارتونه ۲۸. مکتابي ۲۹. پوډر نيکټايي د نيکټکولوشي ۳۰. د نيکټايي خاص پن.

دويمه ماده: د هېواد سرحدي امنيتي مسئولين مکلف دي چې د دغه فرمان په لومړۍ ماده کې درج شوو اجناسو او اقلامو له واردېدو او صادرېدو څخه په کلکه مخنيوی وکړي.

درېيمه ماده: (۱) ګمرکونه د دغه فرمان په لومړۍ ماده کې درج شوي اجناس او اقلام دستګير شي. مربوطه مسئولين مکلف دي چې هغه د ولايت مرکز ته په امانت طور ور انتقال کړي.

(۲) د هر ولايت والي مکلف دی چې نوموړي اجناس او اقلام د ولايت د امر بالمعروف او نهې عن المنکر د مسئول په مشرۍ د يوې هيئت په ذريعه چې په ترکيب کې يې د استخباراتو، مرافعه څارنوالۍ او د ولايت مقام استازي ګډون ولري تثبيت کړي او د انسداد قاچاق د قانون مطابق اجراات ترسره کړي.

څلورمه ماده: دغه فرمان د توشيح له نېټې څخه نافذ دی او په رسمي جريده کې دې خپور شي.

والسلام

اسلام خادم اميرالمومنين
ملامحمد عمر (مجاهد)

وارده ۵۱۰۰
۱۴۲۲-۴-۲۶



۱۶ - ۱۱ - ۴۲۰

# د افغانستان اسلامی امارت

No: ...................

Date: ...................

گڼه ...............

نېټه ...............

## فرمان

د دارالافتاء علماو د ۱۴۲۰/۱۰/۲۴ نیټی دفتوی او دستری محکمی د ۴۲۴ - ۱۴۲۰/۱۱/۸ نیټی تصویب په تائیدچه داسلامی امارت دقضائیه قوی داستقلال په هکله صادراو په شرعی مسائلوناوولاندی مراتب منظوردی.

۱- دافغانستان داسلامی امارت قضائیه قوه داجرائیه قوی (ریاست الوزراء) اونوروقواووپه ردیف کی داسلامی امارت یومستقل رکن دی چه خپلی مربوطه چاری سرته رسوی اوپواخی دامارت مقام ته خپل گذارش وراندی کوی.

۲- دمظنون قاضی یادمحکمی دنورپرسونل گرفتاری به دامارت دمقام په هدایت اویادهدایت سره سم دستری محکمی لخوا کیږی اوبل هیڅوك حق نه لری چه هغه توقیف یااذیت کړی.

۳- دکورنیوچاروو زارت امنیتی ارگانونه مکلفیت لری چه دمحاکمواوقضاتوامنیت تامین کړی.

پورتنی فرمان دتوشیح له نیټی څخه منظوردی فرمان ۴۲۴ - ۱۴۲۰/۱۱/۸ تصویب او د ۱۰/۲۴/ ۱۴۲۰ فتوی دی په رسمی جریده کی خپاره شی.

والسلام

داسلام خادم امیرالمومنین

ملا محمد عمر (مجاهد)





# د افغانستان اسلامی امارت

د امیرالمؤمنین حفظه الله خصوصي دفتر

گنه: ٤٤

نیته: ٥-٩-١٤٢٠ هـ ق

No: ١٤٢٠-٩-١٨

Date:

## فرمان

دکانواوصنائعو محترم وزارت ته

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته

په افغانستان کی دی دتیلو دتصفیی فابریکی جوړی شي اوددغوفابریکو دماشین آلاتودخریداری لپاره دی دهغوعوائدوڅخه کارواخستل شي چه د هیواد په ځینو سیموکی دکورونواومارکیټونودجوړیدلوپه خاطر کومی ځمکی پلورل کیږی که ترکمنستان خپلی تصفیه خانی لیری کوی اوپه ارزانه بیه یی پلوری تاسو باید غورپری وکړی که دغو مستعملوماشینانومونږته دڅه وخت لپاره کارکاوه ورڅخه خریداري یی کړئ اویاکه ترکمنستان دی ته حاضرشی چه دسنګ رخام اویاکوم بل مناسب توکی په بدل کی اسلامی امارت ته دتیلوکومه نوی عصری تصفیه خانه ورکوی نوسودادی وشی.

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمدعمر(مجاهد)

( )



# د افغانستان اسلامی امارت

د امیرالمؤمنین حفظه الله خصوصي دفتر

گڼه: ۴۳

No: ۱۴۲۰-۹-۱۸

نېټه: ۵-۹-۱۴۲۰ هـ ق

Date:....................

## فرمان

دوزیرا نو شورا ته

السلام علیکم ورحمت الله وبرکا ته

دتیلودفابریکودخریدارئ په خاطر د ی دښاروالیو څڅکی دکوررونو اومارکیټونو دجوړولوپه خاطر په خلکو وېلورل شي او ددی کارلپاره دی ستا سو لخوا یوخاص هیئت تعین شي نو موړی هیئت دی ددی کارلپاره پروګرام جوړکړی اوچه په کوم ځای کی یې عملی کوی دامارت مقام ته به داجراآتو مشخصا ت وراندی کړ ی اومنظوری به یې اخلی

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمدعمر(مجاهد)



# د افغانستان اسلامي امارت

د امیرالمؤمنین حفظه الله خصوصي دفتر

No: ....................

Date:....................

گڼه: ....... ............

نېټه: ۱۸/ ۷/ ۱۴۲۰ هـ ق

## فرمان

دافغانستان داسلامی امارت دسر پرستی شوری پرځای به ریاسة الوزراء وی

اودپخوانی سرپرستی شوری رئیس به رئیس الوزراوی

همداراز څنګه چې سرپرست وزیران وواوس به هغه وزیران وی

له پورتنی فرمان سره سم دی اجرات ترسره شی

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمدعمر (مجاهد)



# د افغانستان اسلامي امارت

د امیرالمؤمنین حفظه الله خصوصي دفتر

No:......................
Date:....................

گڼه: ....................
نیټه: ....................

## حکم

د چارو د ښه نظم او سمون په خاطر دی د ټولو ولایتونو د اداری شعبو اداری چاری دی د اداره امور د عمومی ریاست تابع و ګرځی او ددی کار د تنظیم په غرض دی دچارو د اداری عمومی ریاست په کابل کی د ولایتونو داداری شعبو د مسئولینو غونډه (سیمینار) ترتیب کړی تر څو اړونده چارو ته مناسبه کړنلاره جوړه شی .

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمد عمر(مجاهد)

( )

بسم الله الرحمن الرحيم

## طلباء کرامو ته د عالیقدر امیر المؤمنین

# پیغام

**السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته . وبعد :**

هر مشر که لوي مسؤلیت لری ؛ که کوچنی چی د طالبانو اکمالات ، اعاشه او نور د ضرورت وړشیان یی ترلاس لاندی وی که یی د ډلی د غتهولو یا نورو مقاصدو لپاره په مجاهدینو کی فرق کړی وی او یا یی کوی ماته به اطلاع راکوئ چی چاره یی وکړم تاسی دا فکر ونکړئ چی یو څوك ښه شهرت لری او یا جنگی وی هغه به هر څه کولای شی زه د حق په مقابل کی د چا هیڅ پروا نلرم واقعی مسلمان که مشر وی که فرد ، څرنگه چی خدای (ج) ته معتبر دی ؛ ماته هم اعتبار لری او دا هم ضروری ده چی ناحقه شکایت به څوك نکوی . شکایت به سره له ثبوته وی او په مُربوطه اصولي چارو کی به د مشرانو مکمل اطاعت کوی

والســــــــــــــــلام

د اسلام خادم ملامحمد عمر «مجاهد»

( ملامحمد عمر )

۱۴۱۸/۱۲/۳ هـ ق



د افغانستان اسلامي امارت

ISLAMIC EMIRATE OF AFGHANISTAN

د امیرالمؤمنین حفظه الله دفتر

The Amir-ul-Momineen's (May Allah Protect him) Office

No. ............

Date ............

گڼه: ۲۰۶۷۳

نیټه: ۲۸/ ۶/ ۱۴۲۲

پر افغانستان باندي د امریکا د متحده ایالاتو د احتمالي برید په اړه
دافغانستان داسلامی امارت دمقام

## اعلامیه

سره له دې چه د افغانستان اسلامی امارت خپل رغنده او پر حقیقت ولاړ مثبت موقف روښانه کړي دی، خو بیا هم د نیویارك او واشنگټن د تروریستي پیښو په هکله د ځیني امریکائي مقاماتو څرگندونی او اشارات د اسامه بن لادن پر نوم تمرکز کوي. په داسي حال کي چه د افغانستان اسلامي امارت د امریکي د استخباراتو د خان خلاصولو دغه بې اساسه تورونه خکه د عنلو وړ نه بولي چي دغه حملی د امریکا په دننه کي ترسره شوي دي او اسامه بن لادن په هیڅ ډول دومره امکانات او وسائل په واك کي نلري چي پیلوټان وربانديڅ وروزي او بیادا ډول حملی تر سره کړي او نه داسي سترد پروسه له شرقه څخه په غرب کي په کار اچولای شی.
داچی ځینی امریکایی مقامات په افغانستان باندی دحملو گواښ کوی سره له دی چی نه یوازي مونږ ته بلکي د نړي ډیرو هیوادونو ته په ډاگه ده چي داسي ظالمانه احتمالي اقدام به د یوه آزاد هیواد پر استقلال تیري وي نو که گاونډي یا د سیمي نور هیوادونه په تیره بیا اسلامي هیوادونه د امریکا د نظامي اډو د غوښتني ته مثبت ځواب ووائي دا به فوق العاده خطر وي.
همدا راز که هر گاونډي هیواد زمونږ د خاوري پر خلاف خپل مځکني یا هوائي قلمرو امریکایانو ته په واك کي ورکړي نو مونږ به په یوه تحمیلي جگړي کي له خانه سره ښکیل کړی، نا ممکنه نه ده چه د لاره ورکوونکي ملك په خلاف به د مجبوریت له مخي هجوم ور وړو ، او مجبوراً به مجاهدین د هغوي خاوري ته ننوځي او د ناوړو عواقبو او د سیمي د بي ثباته کیدلو مسوولیت به هم د هغوي په غاړه وي.

دملگروملتونوسرمنشی ښاغلی کوفی عنان

دایوحقیقت دی‌چه په دنیاکی په مختلفوخایونوکی قسم قسم واقعات پیښ‌ښوی اوپاروان دی اوتاسی په داسی یو مقام کی قرار لری چه ددنیاحکومتونوپه تاسی باندی اعتمادکړی دی اوتاسی ئی ددومره لوی حیثیت خاوندان کړی یاست ترڅوتاسی ددنیا دمسائلو په اړه یوشان اوبی‌طرفه موقف ولری اودنیاته دهمدی مسائلوحقائق بیان کړی خواوس مونږوینواواوروچه دافغانستان په اړه ستاسی موقف دهغه موقف څخه چه دچچنیا فلسطین او کشمیر په اړه ئی‌لری فرق لری دچچنیا فلسطین او نورو په اړه تاسی یاخو بلکل خاموش یاست او یا مو داسی معتدل موقف غوره کړیدی چه هیڅ اصرار اوخواشنی پکښی نشته خو دافغانستان په اړه ستاسی موقف د اصرار اوشدت څخه ډك دی تاسی هغه بی اساسه راپورونه چه زمونږ دمخالفینو ( ربانی اومسعود) لخوا درکول کیږی بیله تحقیق څخه نشر کو ی او هغه داسی یو پیښه وی چه یاخو هیڅ حقیقت نلری اویا داچی تش په نامه پیښه وی لکه ستاسو دکال (۱۹۹۹) په راپور کی چه مو کوم تور په اسلامی امارت لګولی وو چه هغه د طالبانو جنګیالیانو کی دماشوما نو موجودیت وو چه ستاسی هغی خبری هیڅ حقیقت نه درلودی او په کابل کی ستاسی د خپل نماینده لخوا رد شول اویا داچه په شمال کی په ملکی خلګود بمباری راپورونه دی د داسی تش په نامه پیښو داعلان څخه چه تاسوئي کوی داسلامی امارت سره ستاسی خصوصی بد بینی څرګندوی اودغه قسم بیانونه ستاسی طر فداری ښیی‌اوستاسی دحیثیت دلوړوالی پر ځای ستاسی دبی حیثیتی سبب ګرځی تاسی باید دنړی په مسا ئلو کی د دوومعیارونو او جانبداری څخه کاروانخلی اوحقایق معلوم او وروسته ئی ملا تړ اویاغندنه وکړی خکه چه ستاسی دحیثیت اومقام تقاضاهمدغه ده

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمدعمر(مجاهد)



۱۴۲۰۱۱۱۱۶ هق 2000\2\21

# د افغانستان د اسلامي امارت د مقام خبرتیا

ځرنګه چې اوس لیدل کیږي داسلام د مقدس دین دښمنان په ټوله نړۍ کې ددغه سپیڅلي دین د له منځه وړلو دپاره هلي ځلي پیل کړي او د مسلمانانو په لباس کې په مسلمانانو کې داخل شوي دي او په ډول ډول چلونو او دنیوي مادیاتو باندي غواړي چې مسلمانان د اسلام د مقدس دین څخه بې لارې کړي ځوك غواړي چې مسلمانان د عیسویت او یهودیت په منسوخو ادیانو اخته کړي . ځوك غواړي چې د مسلمانانو دین یعني اسلام نورو لارو ته تحریف کړي چې دا اوس هم یو شمیر مسلمانان د پیسو او نورو مادیاتو په وسیله د عیسویت دین ته اوښتي او خپل مقدس دین یې پریښی دی نو له همدې امله ټولو هیوادوالو ته جدا خبر ورکول کیږي که چیري کوم افغان مسلمان د عیسویانو عقیده قبوله کړي وه او یا دغه منسوخ دین ته ور واوښت او یا هم په د سي حال کې ونیول شي چې د عیسویت یا یهودیت دین ته یې خلك دعوت کول او د هغوی په ګټه یې تبلیغات کول یا یې د هغوی د عقیدي کتابونه او نشرات توزیع کول هغه به د مرګ په سزا محکوم شي او دغه راز که په کومو کتاب پلورنځیو کې داسي کتابونه چې په هغه کې د غلطي عقیدي مواد او یا هم د صحابه کرامو سپکاوی پکښې موجود وو ونیول شي د هغو کتاب پلورنځیو مالکان به په پنځه کاله بند محکوم شي .

## دافغانستان لپاره دهجری قمری تاریخ درسمي گرځولو په اړه دعالیقدر امیرالمومنین دمبارکي پیغام

مسلمانو او مجاهدو هیوادوالو ترهرڅه مخکې

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته :

داچي دنبوی سنت سره سم قمری سنه دافغانستان رسمي سنه وټاکل شوه زه ټولو مسلمانو او متدینو هیوادوالو ته دزړه له کومي مبارکي وایم لوي خدای (ج) دی دافغانستان اسلامي امارت ته لا توفیق ورنصیب کړي چې دنورو نبوی سنتونو په احیاء کي هم زیات موفق شي . ترڅو دزرگونو هغه قربانیو چې دطالبانو داسلامی تحریك په دوران کی مو ورکړي او دسلگونو زرو هغو قربانیو چې دروسانو په وړاندی په مقدس جهاد کی مو ورکړي نتیجه یی نوره هم مثبت راووزي مسلمانو ورونو او خویندو ! پاك الله (ج) شپې ورځې میاشتې او فصلونه ددې لپاره پیداکړي چې موږ او تاسو دخپل رب بنده گي پکښې وکړو او ټول کړه وړه مو خاص دالله (ج) لپاره وی او په هر څه کی مونیت دالله (ج) رضا او دهغه ددین ساتل وي دناکامي ستر علت دنیت خرابیدل دی داسلام دمقدس دین ساتل پکار دی نه دځان ساتل.که څوك ددنیا او اخرت سرلوړي غواړي په هر څه کي دی نیت پاك ولري خصوصا مجاهدین کرام باید ټول ژوند دخدای (ج) په دین برابر کړي او هر کار چې دامیر له لوري ورسپارل شوي وي په هغه نقشه یې سرته ورسوي . او یو دبل سره پوره محبت وساتی ځکه چې اسلام دمیی او محبت دین دی . محترم هیوادوال باید دکفری ممالکو او دهغوی دمزدورانو تر اغیزی لاندی رانشي مسلمانانو ته په کار ده چې دکفارو تبلیغات ورسره بدرگه نکړی . دافغانستان اسلامی امارت تعلیم او تربیې ته پوره توجه لری او غواړی چې داسلام دمقدس دین په رڼاکي تعلیم ته وده ورکړي ځکه په پخوانی حکومتونو کي چې تعلیم داسلام دمقدس دین مطابق نه وو جوړ شوی دهغه نتیجه وه چې زموږ هیوادوال تر اوسه لا ځوربږی . محترمو هیوادوالو دنوی کال د رارسیدو له امله لوی خدای (ج) ته زاری او دعاوي وکړي چې زموږ په هیواد کښې په بشپړه توگه اسلامی نظام حاکم کړی او ټول هیوادوال باید داسلامی امارت دمجاهدینو لاننګ او ملاتړ وکړي او د یاکو او نازکو طالبانو دقربانیو شکر گذار شي . ترڅو لوي خدای (ج) ته مسؤل نشي . صبر او حوصله چې دمسلمانو ابدی توښه ده باید په ټولو چارو کی صابرواو سو . دا دخداي (ج) هغه امر دي چې که څیری عملي شي ناکامی نشته ځکه خدای (ج) وعده کړي چې تاسو غم او سستی مه کوی تاسو کامیا به یاست که چیری پوره ایمان ولري .

په اخیر کی ټولو مسلمانانو ته اخروي خوشحالی غواړم تربله همدغه شرعی کال پوری مو په ټولو شرعی کارونو کی خدای (ج) کامیابه لره .

ستاسی داسلامی ژوند په هیله

ستاسی عقیدوی ورور ملامحمد عمر ( مجاهد)

خلافت ٦٨ دوه میاشتنۍ خپرونه

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# امیرالمؤمنین مجاهد ملامحمد عمر آخند توصیه او نصیحت نامه

محترمو طالبانو !

دغه ټوله ناکامي دبې اعتمادۍ څخه پیښې دي یو اوبل ته نه گوري اوداگناه کبیره ده . ددې بعد چه هر تکلیف پیښ سي که هرڅوک خپل انډیوالان دجنګ دځایه څخه راویستل بیلـه مشـورې دهغـه به سلاح او موټر څني اخلي اوبندي کوي به ئې مطلقاً ..زمـا دغـه امر دې اول بـاید ددې کـاره څخـه جـداً .. اجتنـاب وسـې داتفـاق پـه صورت کې دونه تکلیف نه راځي .

**نوټ :** *دغه نصیحت نامه باید هرې دلګۍ ته ورسیږي .*

والسلام:

داسلام خادم امیرالمؤمنین (مجاهد) ملامحمد عمر آخند



# د افغانستان اسلامی امارت

د امیرالمؤمنین حفظه الله خصوصي دفتر

گڼه ۱۱ No:....................

سنه Date:....................

د کوکنارو دکښت دمخنیوی په هکله دافغانستان داسلامی امارت دمقام

## فرمان

لومړی ماده :

۱ په ټول هیواد کی دکوکنارو کرل مطلقا منع دی

۲ کوم اشخاص چی دکوکنارو په کرلو لاس پوری کوی او له پورتنی امر څخه سرغړونه وکړی سخته شرعی سزابه ورکړل شی .

دوهمه ماده :

اړونده امارتی مسئولین مکلف دی چی په خپلو مربوطه سیموکی دکوکنارو دکرلو دمخنیوی په خاطر لازم تدابیر ونیسی .

دغه فرمان دتوشیح له نیټی څخه نافذ دی او په رسمی جریده کی دی خپورشی .

والسلام

داسلام خادم امیرالمؤمنین

ملامحمدعمر(مجاهد)

( )

بسم الله الرحمن الرحيم

# دامیر المؤمنین مجاهد ملا محمد عمر آخند

# (توصیه)

## محترمو عامو طالبانو!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!

وبعد: اول:- داخبره ده چه یو څه تقوا وکړي په متاعو پسی ددنیا مه گرځی. الله یادوی.

دوهم:- دهرچا چه مشر زخمی شی یا شهید شی بیانه جنگ کوی او نه بیا دچا په قول کوی. آیا دغه جهاد تاسو دچا دپاره کوی؟ او په محشر به هم دغه خبره کوی؟ چه زموږ مشر نه ؤو او تاسو چه یو څه کوشش کولای مشران به دیر نه تاوانیان کیدلای. یو څه ایمانی غیرت پکاردی.

محترمو داجهاد دی باید دجهاد په طریقه وشی. په هر وطن، هر قوم اوهره موقع کی چه یاست باید هرڅه مو دشریعت مطابق وی او دهر نوع ظلم څخه باید ځان وساتی او دنفس په تقاضا ولاړ نه شی. خو مقصد می دادی چه په داخپل تجارت(جهاد) کښی تاوانیان نه شی. یو څه فکر خو ووهی چه شپه او ورځ مرگ ته ولاړ یاست. دغه علتونه تول په اکثرو کی موجود دی. خدای دی داصلاح توفیق راکړی.

وما علینا الا البلاغ کفا بالله حسیبا.

والسلام:

داسلام خادم مجاهد ملا محمد عمرآخند.

# د کتاب معلوماتي منابع

**الف: هغه اشخاص چې د دې کتاب لپاره ورسره مرکې شوي دي.**

ـ مولوي محمدجمعه صاحب د مرحوم ملا صاحب اکا

ـ د مرحوم ملا صاحب والده شریفه

ـ ملا عبدالمنان عمري د رهبري شورى غړى د ملا صاحب ورور

ـ مولوي محمد يعقوب مجاهد د اسلامي امارت مرستيال، د ملا صاحب مشر زوى

ـ مولوي عبدالرحمن د ملا صاحب استاد او اوښي

ـ مولوي عبدالحبيب د ملا صاحب استاد

ـ ملا عبدالغني برادر د ملا صاحب نږدې ملګرى او د اسلامي امارت مرستيال

ـ ملا محمد حسن آخند د اسلامي امارت د رياسة الوزراء مرستيال

ـ ملا محمد فاضل اخند د اسلامي امارت لوى درستيز

ـ مولوي نور محمد ثاقب صاحب د اسلامي امارت د سترې محکمې رئيس او قاضي القضات

ـ ملا عبدالسلام کاتب د ملا صاحب د دفتر ځانګړى محرر

ـ ملا نور الدين ترابي د اسلامي امارت دعدليې وزير

ـ مولوي عبدالکبير د اسلامي امارت د رياسة الوزراء مرستيال او د ننګرهار والي

ـ ملا خير الله خيرخوا د اسلامي امارت د کورنيو چارو وزير او د هرات والي

ـ مولوي امير خان متقي د اسلامي امارت د معارف وزير

ـ قاري دين محمد حنيف د اسلامي امارت د پلان وزير

ـ ملا عبدالقيوم ذاکرد اسلامي امارت د رهبري شورى غړى

ـ مولوي شهاب الدين دلاور په رياض کې د اسلامي امارت سفير

ـ ملا نور الله نوري د شمال ولاياتو تنظيمه رئيس

ـ ملا عبدالحق وثيق د استخباراتو د عمومي رياست مرستيال

ـ ملا عبداللطيف منصور د اسلامي امارت د زراعت وزير

ـ مولوي شمس الدين پهلوان د پکتيا والي

ـ حاجي خليل حقاني جهادي قومندان

ـ ملا عبدالجبار عمري په وروستيو دوولسو کلونوکې د ملا صاحب کوربه او هميشنى ملګرى

ـ ملا عزيز الله آخند په مخفي ژوندکې د ملا صاحب قاصد

ـ حاجي عبدالاحد په مخفي ژوند کي د ملاصاحب لومړنى کوربه او ساتونکى

ـ ملا شيرين آخند د امارت د مقام د امنيتي چارو مسؤل

ـ ملا حيات الله حاجي لالا د امارت د مقام د مخابرې عمومي مسؤل

ـ ملا مير حمزه د روس ضد جهاد په وخت په روزګان کې د هغې جبهې قومندان چې ملا صاحب په کې جهاد پيل کړ.

ـ ملا عبدالرحمن د روس ضد جهاد په وخت کې د ملا صاحب ملګرى

ـ ملا يارانه د روس ضد جهاد په وخت کې د ملا صاحب ملګرى

ـ ملا ګل اغا بدري د ملا صاحب د دفتر د مالي چارو مسؤل او د اسلامي امارت د اقتصادي کميسيون مشر

ـ ملا جمعه خان د تنظيمي دور څخه د ملا صاحب ملګرى

- ملا محمد غوث آخند د اسلامي امارت د بهرنیوچارو سرپرست وزیر
- مولوي وکیل احمد متوکل د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر
- ملا عبدالرزاق آخند د اسلامي امارت د کورنیو چارو وزیر
- مفتي محمد معصوم افغاني د علماوو شورى گانو د مرکزي دفتر مشر
- ملا سعدالله د روس ضد جهاد له وخته د ملا صاحب ملگری
- ملا عبدالاحد جهانگیروال د ملا صاحب د دفتر کارکوونکی
- ملا محمد آخند د اسلامي امارت د واکمنۍ په مهال د کندهار لومړنی امنیه قومندان
- ملا عبدالخالق آخند د قشله جدید مسؤل
- ملا غازي د روس ضد جهاد له وخته د ملا صاحب ملگری

**با: کتابونه او کلکسیونونه**

د شریعت اونیزې کلکسیون

د هیواد ورځپاڼې کلکسیون

د انیس ورځپاڼې کلکسیون

د طلوع افغان ورځپاڼې کلکسیون

د خلافت مجلې کلکسیون

د کندهار مجلې بیلابیلې گڼې

د افغانستان اسلامي امارت د رسمي جریدې بیلابیلې گڼې

د افغانستان پیبنلیک، لیکوال حاجي ولي محمد

د افغانستان معاصر تاریخ، لیکوال محمد ابراهیم عطایي

افغانستان پیژندنه، لیکوال اورنگزیب ارشاد

طالبان - پیلامه - واکمني - او د یرغلگرو په وړاندې جهاد. ناچاپ کتاب

افغانستان و پنج سال سلطه طالبان، لیکوال وحید مژده

جنگ اشباح، لیکوال ستیو کول

بوش په جنگ کې، لیکوال باب ووډ وارډ

سي آی اې په پنجشیر کې، لیکوال گري شرون

۸۸ روز تا قندهار، لیکوال رابرت گرینیر

نړۍ د توپان پر اوږو، لیکوال محمد الله کمال

طالبان چگونه آمدند؟ لیکوال ظاهر عظیمي

افغانستان طالبان و سیاست های جهانی، ویلیام میلی

او بیلابیلې ویب پاڼې

د کتاب له مقدمې څخه

د ملا محمد عمر مجاهد په اړه له دې وړاندې هم ځینو کورنیو او بهــــرنیو لیکوالو کتابونه لیکلي دي. خو اکثر دغه کتابونو د تبلیغاتي مقاصــدو او دښمنانه سیاسي اغراضو په اساس لیکل شوي دي. ځینو په لوی لاس د ملا صاحب د واقعي شخصیت د تشویه او ناسم معرفي کولو هڅه کړې او ځیني بیا د کره معلـــوماتو او مستندو منابعو د نه شتون له امله په غلطه تللي دي.

د دې کتاب د لیکلـو مقصــد دا دی تـر څـو د اســـلامي امارت د زعیم ملا محمد عمر مجاهد ځانګړې دیني او سیاسي کـړنې د اوسنـي او راتلونکـي مسلمان نسـل لپاره یوه ښه بیلګه او د اقتداء نمونه وګرځي. دغه راز د مـرحوم ملا صاحب په اړه لومړی لاس، واقعي او مؤثق معلومات تر لوستـونکـو ورسول شي. تر څـو د تاریخي پیښـو څېړونکي او عام لـوستونکي په خپلـو قضاوتونو کې له همـدې مؤثقو معلـوماتـو استفاده وکړي.

